رَبَّنَا آتِنَا مِن لَّدُنكَ رَحْمَةً وَهَيِّئْ لَنَا مِنْ أَمْرِنَا رَشَدًا (الكهف)

لعثماني كتابتون

# بیانِ یسیر

لعثماني كتابتون

پښتو تقریر

# نحو میر

ازافادات

مولانا اطیع اللہ صاحب

استاد الحدیث جامعہ اسلامیہ (علامہ ٹاؤن)، چمن

ترتیب و تزئین و حاشیہ

مفتی حافظ کلیم اللہ صاحب

فاضل دار العلوم کراچی

استاد جامعہ اسلامیہ (علامہ ٹاؤن) چمن

مکتبہ سلطانیہ الهاشمیہ

کانسی روڈ۔ کوئٹہ

- د کتاب نوم:.......................بیان یسیر
- افادات:......................مولانا اطیع الله صاحب
- ترتیب وتزئین وحاشیه:...............حافظ کلیم الله صاحب
- نظر ثاني:.. مولوی محمد هارون صاحب – حافظ کلیم الله صاحب
- فن:..................................علم النحو
- کمپوز:......................عبدالوهاب "متعلم"
- معاون:..................... طالب العلم موسٰی کلیم




د ملاوېدو ځایونه:

1. مکتبه محمدیه:.............اباسین روډ چمن
2. اسلامي کتب خانه:.........تاج میر خان روډ چمن
3. مکتبه محمودیه:..............سرخاب روډ پشین
4. مکتبه غفاریه:.................ارګ بازار قندهار
5. جامع مسجد حاجي عبدالودود:...........چمن

# د مضامينو تفصيلي فهرست:


| شماره | | صفحه |
|---|---|---|
| ۱. | ◄ سريزه: ........................ | ۱۷ |
| ۲. | ◄ عرض مرتب: ........................ | ۱۹ |
| | (الدرس الاول) | |
| ۳. | ◄ اوله خبره مقدمه او مبادیات د نحو: ........................ | ۲۲ |
| ۴. | ◄ دوهمه خبره د علم نحو اصطلاحي تعريف: ........................ | ۲۳ |
| ۵. | ◄ دريمه خبره د علم نحو فضيلت: ........................ | ۲۴ |
| ۶. | ◄ څلورمه خبره د علم نحو جنسيت: ........................ | ۲۴ |
| ۷. | ◄ پنځمه خبره د علم نحو موجد: ........................ | ۲۵ |
| ۸. | ◄ شپږمه خبره د مصنف حالات: ........................ | ۲۶ |
| | (الدرس الثاني) | |
| ۹. | ◄ اوله خبره سوال او جواب: ........................ | ۲۷ |
| ۱۰. | ◄ دوهمه خبره د "الحمدلله" تحقيق: ........................ | ۲۸ |
| ۱۱. | ◄ دريمه خبره د "رب" تحقيق: ........................ | ۲۹ |
| ۱۲. | ◄ څلورمه خبره د "رب" د لفظ ترکيبي حيثيت: ........................ | ۳۰ |
| ۱۳. | ◄ پنځمه خبره د "العاقبة" د لفظ تحقيق: ........................ | ۳۰ |
| ۱۴. | ◄ شپږمه خبره د "صلوة" تحقيق: ........................ | ۳۱ |
| | (الدرس الثالث) | |
| ۱۵. | ◄ اوله خبره د "محمد" د لفظ تحقيق: ........................ | ۳۲ |

شماره | د مضامینو تفصیلي فهرست: | صفحه


| | | |
|---|---|---|
| ۱٦. | ➢ دوهمه خبره د "آل" د لفظ تحقیق: .................... | ۳۳ |
| ۱۷. | ➢ دریمه خبره سوال او جواب: .................... | ۳۳ |
| ۱۸. | ➢ څلورمه خبره د بعض الفاظو تشریح: .................... | ۳۴ |
| ۱۹. | ➢ پنځمه خبره د مصنف اعلان: .................... | ۳۵ |
| ۲۰. | ➢ حل سوي جملې او تمرین: .................... | ۳۵ |
| | (الدرس الرابع) | |
| ۲۱. | ➢ اوله خبره د لفظ تقسیم: .................... | ۳٦ |
| ۲۲. | ➢ دوهمه خبره وجه د حصر: .................... | ۳۸ |
| ۲۳. | ➢ دریمه خبره د اسم تعریف: .................... | ۳۸ |
| ۲۴. | ➢ څلورمه خبره علامات د اسم: .................... | ۴۰ |
| ۲۵. | ➢ پنځمه خبره د فعل تعریف: .................... | ۴۱ |
| ۲٦. | ➢ شپږمه خبره د فعل علامات: .................... | ۴۳ |
| ۲۷. | ➢ حل سوي جملې او تمرین: .................... | ۴۳ |
| | (الدرس الخامس) | |
| ۲۸. | ➢ اوله خبره د لفظ دوهم قسم: .................... | ۴۵ |
| ۲۹. | ➢ دوهمه خبره د جملې تقسیم: .................... | ۴۷ |
| ۳۰. | ➢ دریمه خبره د جمله اسمیه تعریف: .................... | ۴۷ |
| ۳۱. | ➢ څلورمه خبره د مبتداء او خبر د پېژندلو طریقه: .................... | ۴۸ |
| ۳۲. | ➢ پنځمه خبره د مبتداء اقسام: .................... | ۵۰ |
| ۳۳. | ➢ حل سوي جملې او تمرین: .................... | ۵۱ |
| | (الدرس السادس) | |
| ۳۴. | ➢ اوله خبره د جمله فعلیه تعریف: .................... | ۵۲ |
| ۳۵. | ➢ دوهمه خبره د جمله ظرفیه تعریف: .................... | ۵۳ |

# د مضامينو تفصيلي فهرست:


| شماره | | صفحه |
|---|---|---|
| ۳۶. | ◄ دريمه خبره د جار او مجرور د ترکيب طريقه: | ۵۴ |
| ۳۷. | ◄ څلورمه خبره د ظرف مستقر تعريف: | ۵۵ |
| ۳۸. | ◄ پنځمه خبره د کلمه اعرابيه اقسام: | ۵۷ |
| ۳۹. | ◄ شپږمه خبره د مسند تعريف: | ۵۷ |
| ۴۰. | ◄ اوومه خبره د فضله تعريف: | ۵۸ |
| ۴۱. | ◄ حل سوي جملې او تمرين: | ۵۹ |
| | (الدرس السابع) | |
| ۴۲. | ◄ اوله خبره د جمله انشائيه تعريف: | ٦۱ |
| ۴۳. | ◄ دوهمه خبره د جمله انشائيه علامات: | ٦۲ |
| ۴۴. | ◄ دريمه خبره د مرکب غير مفيد تعريف: | ٦۵ |
| ۴۵. | ◄ څلورمه خبره د مضاف او مضاف اليه علامات. | ٦٦ |
| ۴٦. | ◄ پنځمه خبره د مضاف او مضاف اليه د پېژندلو طريقه: | ٦۷ |
| ۴۷. | ◄ شپږمه خبره اسماء لازمة الاضافت: | ٦۸ |
| ۴۸. | ◄ حل سوي جملې او تمرين: | ٦۹ |
| | (الدرس الثامن) | |
| ۴۹. | ◄ اوله خبره د مرکب توصيفي تعريف: | ۷۰ |
| ۵۰. | ◄ دوهمه خبره د صفت مفرد بيان: | ۷۱ |
| ۵۱. | ◄ دريمه خبره د "ابن" د لفظ تحقيق: | ۷۳ |
| ۵۲. | ◄ څلورمه خبره د مرکب غير تقيدي اقسام: | ۷۳ |
| ۵۳. | ◄ پنځمه خبره د مرکب منع صرف تعريف: | ۷۵ |
| ۵۴. | ◄ شپږمه خبره سوال او جواب: | ۷٦ |
| ۵۵. | ◄ اوومه خبره اعتراض او جواب: | ۷٦ |
| ۵٦. | ◄ حل سوي جملې او تمرين: | ۷۷ |

# د مضامينو تفصيلي فهرست:


| شماره | | صفحه |
|---|---|---|
| | (الدرس التاسع) | |
| ۵۷. | اوله خبره د مطالعې اجمالي طريقه:.......................... | ۷۸ |
| ۵۸. | دوهمه خبره د مطالعې تفصيلي طريقه:.......................... | ۷۸ |
| ۵۹. | دريمه خبره د مرکب د اجراء طريقه:.......................... | ۷۹ |
| ٦٠. | څلورمه خبره د علامې لغوي او اصطلاحي معنى:.......................... | ۸۰ |
| ٦١. | حل سوي جملې او تمرين:.......................... | ۸۴ |
| | (الدرس العاشر) | |
| ٦٢. | اوله خبره د معرب لغوي معنى:.......................... | ۸۳ |
| ٦٣. | دوهمه خبره د معرب او مبني د پېژندلو طريقه:.......................... | ۸۵ |
| ٦۴. | دريمه خبره د مبني اقسام:.......................... | ۸۵ |
| ٦۵. | څلورمه خبره د اسم غير متمکن تعريف:.......................... | ۸۷ |
| ٦٦. | پنځمه خبره د شبه اقسام:.......................... | ۸۸ |
| ٦۷. | حل سوي جملې او تمرين:.......................... | ۸۹ |
| | (الدرس الحادي عشر) | |
| ٦۸. | اوله خبره د ضمير لغوي او اصطلاحي معنى:.......................... | ۹۰ |
| ٦۹. | دوهمه خبره د مرجع معنوي اقسام:.......................... | ۹۲ |
| ۷۰. | دريمه خبره د ضمير تقسيمات:.......................... | ۹۳ |
| ۷۱. | څلورمه خبره د ضمير دوهم تقسيم:.......................... | ۹۴ |
| ۷۲. | پنځمه خبره د ضمير دريم تقسيم:.......................... | ۹۵ |
| ۷۳. | شپږمه خبره د ضمير مستتر اقسام:.......................... | ۹٦ |
| ۷۴. | حل سوي جملې او تمرين:.......................... | ۹۹ |
| | (الدرس الثاني عشر) | |
| ۷۵. | اوله خبره د اسماء اشارات لغوي او اصطلاحي معنى:.......................... | ۱۰۰ |

شماره | د مضامينو تفصيلي فهرست : | صفحه


| شماره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| ۷٦. | ⊳ دوهمه خبره د اسماء اشارات تركيبي حيثيت:........ | ۱۰۱ |
| ۷۷. | ⊳ دريمه خبره د اسماء اشارات اقسام:........ | ۱۰۲ |
| ۷۸. | ⊳ څلورمه خبره فائده:........ | ۱۰۳ |
| ۷۹. | ⊳ پنځمه خبره د اسماء موصولات لغوي او اصطلاحي معنى:........ | ۱۰۳ |
| ۸۰. | ⊳ شپږمه خبره د اسماء موصولات اقسام:........ | ۱۰۴ |
| ۸۱. | ⊳ اوومه خبره د اسماء موصولات عامه وو مختصره تشريح:........ | ۱۰۵ |
| ۸۲. | ⊳ حل سوي جملې او تمرين:........ | ۱۰۷ |
| | (الدرس الثالث عشر) | |
| ۸۳. | ⊳ اوله خبره د "آيٌّ" او "آيَةٌ" د لفظ تحقيق:........ | ۱۰۸ |
| ۸۴. | ⊳ دوهمه خبره د اسماء افعال تشريح:........ | ۱۰۹ |
| ۸۵. | ⊳ دريمه خبره د اسماء افعال دوهم تقسيم:........ | ۱۱۰ |
| ۸٦. | ⊳ څلورمه خبره د اسماء افعال دوهم قسم:........ | ۱۱۱ |
| ۸۷. | ⊳ پنځمه خبره د اسماء افعال دريم قسم:........ | ۱۱۲ |
| ۸۸. | ⊳ شپږمه خبره د اسماء افعال عدد:........ | ۱۱۴ |
| ۸۹. | ⊳ اوومه خبره اسماء اصوات:........ | ۱۱۵ |
| ۹۰. | ⊳ حل سوي جملې او تمرين:........ | ۱۱٦ |
| | (الدرس الرابع عشر) | |
| ۹۱. | ⊳ اوله خبره د اسماء ظروف اصطلاحي معنى:........ | ۱۱۷ |
| ۹۲. | ⊳ دوهمه خبره د ظروف زمانيه وو مختصر وضاحت:........ | ۱۱۸ |
| ۹۳. | ⊳ دريمه خبره د "كيف" د لفظ تحقيق:........ | ۱۲۰ |
| ۹۴. | ⊳ څلورمه خبره د "مذ" او "منذ" معنى:........ | ۱۲۱ |
| ۹۵. | ⊳ پنځمه خبره ظروف مكان:........ | ۱۲۳ |

# د مضامینو تفصیلي فهرست:


| شماره | | صفحه |
|---|---|---|
| ۹۶. | ◄ شپږمه خبره د "حیث" د لفظ تحقیق:...................... | ۱۲۴ |
| ۹۷. | ◄ اوومه خبره اسماء کنایات:...................... | ۱۲۵ |
| ۹۸. | ◄ حل سوي جملې او تمرین:...................... | ۱۲۷ |
| | (الدرس الخامس عشر) | |
| ۹۹. | ◄ اوله خبره د اسم اول تقسیم:...................... | ۱۲۸ |
| ۱۰۰. | ◄ دوهمه خبره فائده:...................... | ۱۳۱ |
| ۱۰۱. | ◄ دریمه خبره د تانیث علامات:...................... | ۱۳۲ |
| ۱۰۲. | ◄ څلورمه خبره فائده:...................... | ۱۳۴ |
| ۱۰۳. | ◄ پنځمه خبره د مؤنث تقسیمات:...................... | ۱۳۵ |
| ۱۰۴. | ◄ شپږمه خبره فائده:...................... | ۱۳۶ |
| ۱۰۵. | ◄ اوومه خبره د چند اوزانو استعمال علی السویه دئ:...................... | ۱۳۸ |
| ۱۰۶. | ◄ حل سوي جملې او تمرین:...................... | ۱۳۹ |
| | (الدرس السادس عشر) | |
| ۱۰۷. | ◄ اوله خبره د اسم دریم تقسیم:...................... | ۱۴۱ |
| ۱۰۸. | ◄ دوهمه خبره د تثنیه مجازي تعریف:...................... | ۱۴۳ |
| ۱۰۹. | ◄ دریمه خبره د جمع حکمي تعریف:...................... | ۱۴۴ |
| ۱۱۰. | ◄ څلورمه خبره د اسم جمع تعریف:...................... | ۱۴۶ |
| ۱۱۱. | ◄ پنځمه خبره د تغیر حکمي د پېژندلو طریقه:...................... | ۱۴۷ |

## د مضامینو تفصیلي فهرست:


| شماره | | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۳۲. | اوله خبره د فعل مضارع اعراب: | ۱۸۱ |
| ۱۳۳. | دوهمه خبره افعال په نزد د نحاتو: | ۱۸۲ |
| ۱۳۴. | دریمه خبره د فعل مضارع اقسام: | ۱۸۳ |
| ۱۳۵. | څلورمه خبره د معتل الفي بیان: | ۱۸۴ |
| ۱۳۶. | پنځمه خبره د عامل لغوي او اصطلاحي معنی: | ۱۸۵ |
| ۱۳۷. | شپږمه خبره د عامل لفظي تقسیم: | ۱۸۶ |
| ۱۳۸. | حل سوي جملې او تمرین: | ۱۸۹ |
| | (الدرس العشرون) | |
| ۱۳۹. | اوله خبره حروف جاره: | ۱۹۱ |
| ۱۴۰. | دوهمه خبره د جار او مجرور مختصره تشریح: | ۱۹۳ |
| ۱۴۱. | دریمه خبره هغه حروف جاره چي متعلق نه غواړي: | ۱۹۵ |
| ۱۴۲. | څلورمه خبره حروف مشبه بالفعل: | ۱۹۶ |
| ۱۴۳. | پنځمه خبره د حروف مشبه بالفعل عملي حیثیت: | ۱۹۸ |
| ۱۴۴. | شپږمه خبره ما و لا مشبهتین بلیس: | ۱۹۹ |
| ۱۴۵. | اوومه خبره د "لا" د عمل دپاره شرائط: | ۲۰۱ |
| ۱۴۶. | حل سوي جملې او تمرین: | ۲۰۲ |
| | (الدرس الحادي والعشرون) | |
| ۱۴۷. | اوله خبره د "اِنَّ" مکسوره او مفتوحه بحث: | ۲۰۳ |
| ۱۴۸. | دوهمه خبره "اَنَّ" مفتوحه مواقع: | ۲۰۴ |
| ۱۴۹. | دریمه خبره لاء نفي جنس: | ۲۰۷ |
| ۱۵۰. | څلورمه خبره د لاء نفي جنس د اسم اقسام: | ۲۰۹ |
| ۱۵۱. | پنځمه خبره: | ۲۰۹ |
| ۱۵۲. | شپږمه خبره د لاء نفي جنس د اسم او خبر حذف: | ۲۱۰ |

| شماره | ډ مضامينو تفصيلي فهرست: | صفحه |
|---|---|---|


| | | |
|---|---|---|
| ۱۱۲. | ◄ شپږمه خبره فائده:........................ | ۱۴۸ |
| ۱۱۳. | ◄ اوومه خبره فائده:........................ | ۱۵۱ |
| ۱۱۴. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........................ | ۱۵۲ |
| | (الدرس السابع عشر) | |
| ۱۱۵. | ◄ اوله خبره د معرب اقسام:........................ | ۱۵۳ |
| ۱۱۶. | ◄ دوهمه خبره د غير منصرف اسباب:........................ | ۱۵۵ |
| ۱۱۷. | ◄ دريمه خبره د عدل اقسام:........................ | ۱۵۶ |
| ۱۱۸. | ◄ څلورمه خبره د وصف تعريف:........................ | ۱۵۷ |
| ۱۱۹. | ◄ پنځمه خبره د تانيث بيان:........................ | ۱۵۹ |
| ۱۲۰. | ◄ شپږمه خبره د عجمه بيان:........................ | ۱۶۰ |
| ۱۲۱. | ◄ اوومه خبره د وزن فعل بيان:........................ | ۱۶۳ |
| ۱۲۲. | ◄ اتمه خبره د انبياء عليهم السلام نومونه باعتبار انصراف او غير انصراف:........................ | ۱۶۴ |
| ۱۲۳. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........................ | ۱۶۶ |
| | (الدرس الثامن عشر) | |
| ۱۲۴. | ◄ اوله خبره د اسماء اعراب:........................ | ۱۶۹ |
| ۱۲۵. | ◄ دوهمه خبره د اعراب تعريف:........................ | ۱۷۰ |
| ۱۲۶. | ◄ دريمه خبره فائده:........................ | ۱۷۰ |
| ۱۲۷. | ◄ څلورمه خبره د اعراب اقسام:........................ | ۱۷۱ |
| ۱۲۸. | ◄ پنځمه خبره د جمع مؤنث سالمي اعراب:........................ | ۱۷۳ |
| ۱۲۹. | ◄ شپږمه خبره د تثنيه حقيقي وضاحت:........................ | ۱۷۵ |
| ۱۳۰. | ◄ اوومه خبره د جمع مذكر سالم حقيقي وضاحت:........................ | ۱۷۶ |
| ۱۳۱. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........................ | ۱۷۸ |
| | (الدرس التاسع عشر) | |

## د مضامينو تفصيلي فهرست:


| شماره | | صفحه |
|---|---|---|
| ۱۵۳. | ≻ اوومه خبره د "لا" مشابهت د "ان" سره: | ۲۱۲ |
| ۱۵۴. | ≻ حل سوي جملې او تمرين: | ۲۱۳ |
| | **(الدرس الثاني و العشرون)** | |
| ۱۵۵. | ≻ اوله خبره حروف نداء: | ۱۱۴ |
| ۱۵۶. | ≻ دوهمه خبره د منادی اقسام: | ۱۱۵ |
| ۱۵۷. | ≻ دريمه خبره منادی معرف باللام: | ۱۱۸ |
| ۱۵۸. | ≻ څلورمه خبره حروف نواصب او جوازم: | ۱۲۱ |
| ۱۵۹. | ≻ پنځمه خبره د "ان" مقدره ځايونه: | ۱۲۳ |
| ۱۶۰. | ≻ شپږمه خبره د "واو صرف" شرطونه: | ۱۲۴ |
| ۱۶۱. | ≻ حل سوي جملې او تمرين: | ۱۲۵ |
| | **(الدرس الثالث و العشرون)** | |
| ۱۶۲. | ≻ اوله خبره د "لَنْ" معنی: | ۲۲۷ |
| ۱۶۳. | ≻ دوهمه خبره د "آنْ" معنی: | ۲۲۸ |
| ۱۶۴. | ≻ دريمه خبره حروف جوازم: | ۲۳۰ |
| ۱۶۵. | ≻ څلورمه خبره د شرط او جزاء صورتونه: | ۲۳۲ |
| ۱۶۶. | ≻ پنځمه خبره د فعل مضارع د جزم ځايونه: | ۲۳۲ |
| ۱۶۷. | ≻ شپږمه خبره د "لم" او "لما" معنی: | ۲۳۴ |
| ۱۶۸. | ≻ اوومه خبره د "لما" ظرفيه بيان: | ۲۳۵ |
| ۱۶۹. | ≻ حل سوي جملې او تمرين: | ۲۳۶ |
| | **(الدرس الرابع و العشرون)** | |
| ۱۷۰. | ≻ اوله خبره د افعال عامله بيان: | ۲۳۸ |
| ۱۷۱. | ≻ دوهمه خبره د فعل څلورم قسم: | ۲۳۹ |

| شماره | د مضامینو تفصیلي فهرست: | صفحه |
|---|---|---|


| | | |
|---|---|---|
| ۱۷۲. | ◄ دریمه خبره د فاعل تعریف:.................... | ۲۴۲ |
| ۱۷۳. | ◄ څلورمه خبره د مفعول مطلق تعریف:.................... | ۲۴۴ |
| ۱۷۴. | ◄ پنځمه خبره د مفعول فیه تعریف:.................... | ۲۴۷ |
| ۱۷۵. | ◄ شپږمه خبره د ظرف مکان مبهم تعریف:.................... | ۲۴۹ |
| ۱۷۶. | ◄ اوومه خبره د مفعول معه تعریف:.................... | ۲۵۰ |
| ۱۷۷. | ◄ حل سوي جملې او تمرین:.................... | ۲۵۲ |
| | (الدرس الخامس و العشرون) | |
| ۱۷۸. | ◄ اوله خبره د مفعول له تعریف:.................... | ۲۵۳ |
| ۱۷۹. | ◄ دوهمه خبره د مفعول به تعریف:.................... | ۲۵۴ |
| ۱۸۰. | ◄ دریمه خبره د مفعول به د عامل حذف وجوبًا:.................... | ۲۵۵ |
| ۱۸۱. | ◄ څلورمه خبره د مفعول به تقدیم وجوبًا:.................... | ۲۵۶ |
| ۱۸۲. | ◄ پنځمه خبره د مفعول به تاخیر وجوبًا:.................... | ۲۵۷ |
| ۱۸۳. | ◄ شپږمه خبره د مفعول به حذف ناجائز دئ:.................... | ۲۵۷ |
| ۱۸۴. | ◄ حل سوي جملې او تمرین:.................... | ۲۵۸ |
| | (الدرس السادس والعشرون) | |
| ۱۸۵. | ◄ اوله خبره د حال تعریف:.................... | ۲۵۹ |
| ۱۸۶. | ◄ دوهمه خبره د ذوالحال معرفه کېدل:.................... | ۲۶۱ |
| ۱۸۷. | ◄ دریمه خبره د حال جامد بیان:.................... | ۲۶۱ |
| ۱۸۸. | ◄ څلورمه خبره د حال اقسام:.................... | ۲۶۳ |
| ۱۸۹. | ◄ پنځمه خبره د تمیز تعریف:.................... | ۲۶۵ |
| ۱۹۰. | ◄ شپږمه خبره د تمیز دوهم قسم:.................... | ۲۶۷ |
| ۱۹۱. | ◄ اوومه خبره د حال او تمیز ما به الاشتراک:.................... | ۲۶۹ |
| ۱۹۲. | ◄ حل سوي جملې او تمرین:.................... | ۲۷۰ |

| شماره | د مضامینو تفصیلي فهرست: | صفحه |
|---|---|---|


(الدرس السابع و العشرون)

| | | |
|---|---|---|
| ۱۹۳. | اوله خبره د فاعل اقسام: | ۲۷۲ |
| ۱۹۴. | دوهمه خبره د فاعل اسم ظاهر د جمع صورتونه: | ۲۷۴ |
| ۱۹۵. | دریمه خبره د فاعل د استعمال صورتونه: | ۲۷۵ |
| ۱۹۶. | څلورمه خبره فعل مجهول: | ۲۷۷ |
| ۱۹۷. | پنځمه خبره د فعل متعدي اقسام: | ۲۷۸ |
| ۱۹۸. | شپږمه خبره افعال تصییر یا تحویل: | ۲۸۱ |
| ۱۹۹. | اوومه خبره د افعال قلوب او افعال تصییر مشترک اقسام: | ۲۸۲ |
| ۲۰۰. | حل سوي جملې او تمرین: | ۲۸۳ |

(الدرس الثامن والعشرون)

| | | |
|---|---|---|
| ۲۰۱. | اوله خبره د فعل قاصر اقسام: | ۲۸۶ |
| ۲۰۲. | دوهمه خبره د افعال ناقصه وو معاني: | ۲۸۸ |
| ۲۰۳. | دریمه خبره افعال مقاربه: | ۲۹۱ |
| ۲۰۴. | څلورمه خبره د افعال مقاربه وو د خبر اقسام: | ۲۹۲ |
| ۲۰۵. | پنځمه خبره افعال مدح و ذم: | ۲۹۴ |
| ۲۰۶. | شپږمه خبره د "حبذا" ترکیب: | ۲۹۵ |
| ۲۰۷. | اوومه خبره افعال تعجب: | ۲۹۶ |
| ۲۰۸. | حل سوي جملې او تمرین: | ۲۹۸ |

شماره | د مضامينو تفصيلي فهرست: | صفحه

(الدرس التاسع والعشرون)

۲۰۹. ◄ اوله خبره اسماء شرطيه: ........ ۳۰۰
۲۱۰. ◄ دوهمه خبره د اسماء تقسيم ثاني: ........ ۳۰۳
۲۱۱. ◄ دريمه خبره د "كيفما" تحقيق: ........ ۳۰۴
۲۱۲. ◄ څلورمه خبره اسماء افعال: ........ ۳۰۵
۲۱۳. ◄ پنځمه خبره اسم فاعل: ........ ۳۰۸
۲۱۴. ◄ شپږمه خبره فائده: ........ ۳۱۰
۲۱۵. ◄ اوومه خبره اسم مفعول: ........ ۳۱۱
۲۱۶. ◄ حل سوي جملې او تمرين: ........ ۳۱۳

(الدرس الثلاثون)

۲۱۷. ◄ اوله خبره صفت مشبه: ........ ۳۱۵
۲۱۸. ◄ دوهمه خبره د صفت مشبه اوزان: ........ ۳۱۷
۲۱۹. ◄ دريمه خبره د صفت مشبه د استعمال صورتونه: ........ ۳۱۹
۲۲۰. ◄ څلورمه خبره د صفت مشبه تفصيل او مثالونه: ........ ۳۲۰
۲۲۱. ◄ پنځمه خبره د معرف باللام صورتونه: ........ ۳۲۱
۲۲۲. ◄ حل سوي جملې او تمرين: ........ ۳۲۱

(الدرس الحادي و الثلاثون)

۲۲۳. ◄ اوله خبره اسم تفضيل: ........ ۳۲۳
۲۲۴. ◄ دوهمه خبره د اسم تفضيل عمل په حال او ظرف كي: ........ ۳۲۵
۲۲۵. ◄ دريمه خبره د اسم تفضيل د استعمال صورتونه: ........ ۳۲۷
۲۲۶. ◄ څلورمه خبره د اسم تفضيل د استعمال دريمه طريقه: ........ ۳۲۸
۲۲۷. ◄ پنځمه خبره د مصدر وضاحت: ........ ۳۳۰

شماره | د مضامینو تفصیلي فهرست: | صفحه


۲۲۸. ⊲ شپږمه خبره د مصدر عمل:........ ۳۰۲
۲۲۹. ⊲ اوومه خبره د مصدر میمي وضاحت:........ ۳۳۳
۲۳۰. ⊲ حل سوي جملې او تمرین:........ ۳۳۴

(الدرس الثاني والثلاثون)

۲۳۱. ⊲ اوله خبره اسم مضاف:........ ۳۳۷
۲۳۲. ⊲ دوهمه خبره د اضافت معنوي تعریف:........ ۳۳۸
۲۳۳. ⊲ دریمه خبره د اضافت معنوي اقسام:........ ۳۳۸
۲۳۴. ⊲ څلورمه خبره د مضاف احکام:........ ۳۳۹
۲۳۵. ⊲ پنځمه خبره د اضافت معنوي اقسام په اعتبار د نسبت سره:........ ۳۴۰
۲۳۶. ⊲ شپږمه خبره د اضافت معنوي احکام:........ ۳۴۲
۲۳۷. ⊲ اوومه خبره د اسم تامّ وضاحت:........ ۳۴۳
۲۳۸. ⊲ حل سوي جملې او تمرین:........ ۳۴۴

(الدرس الثالث والثلاثون)

۲۳۹. ⊲ اوله خبره د اسم عدد تمیز:........ ۳۴۵
۲۴۰. ⊲ دوهمه خبره د عدد اقل بیان:........ ۳۴۷
۲۴۱. ⊲ دریمه خبره اسماء کنایات:........ ۳۴۸
۲۴۲. ⊲ څلورمه خبره "کم" استفهامیه:........ ۳۵۰
۲۴۳. ⊲ پنځمه خبره د "کم" د لفظ اعراب او ترکیب:........ ۳۵۱
۲۴۴. ⊲ شپږمه خبره د "کم" استفهامیه او خبریه تمیز:........ ۳۵۲
۲۴۵. ⊲ اوومه خبره د "کاین" بحث:........ ۳۵۳
۲۴۶. ⊲ حل سوي جملې او تمرین:........ ۳۵۴

(الدرس الرابع والثلاثون)

۲۴۷. ⊲ اوله خبره د عامل معنوي بیان:........ ۳۵۷

شماره — د مضامینو تفصیلي فهرست: — صفحه


| شماره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۴۸. | ➢ دوهمه خبره د مبتداء احکام: | ۳۵۸ |
| ۲۴۹. | ➢ دریمه خبره د مبتداء اقسام: | ۳۶۰ |
| ۲۵۰. | ➢ څلورمه خبره د مبتداء قسم ثاني: | ۳۶۰ |
| ۲۵۱: | ➢ پنځمه خبره د مبتداء د قسم ثاني خلاصه: | ۳۶۲ |
| ۲۵۲. | ➢ شپږمه خبره د خبر احکام: | ۳۶۳ |
| ۲۵۳. | ➢ اوومه خبره د خبر حذف کېدل وجوبًا: | ۳۶۴ |
| ۲۵۴. | ➢ حل سوي جملې او تمرین: | ۳۶۵ |
| | (الدرس الخامس و الثلاثون) | |
| ۲۵۵. | ➢ اوله خبره د تابع تعریف: | ۳۶۸ |
| ۲۵۶. | ➢ دوهمه خبره د تابع او متبوع په مینځ کي فصل: | ۳۶۹ |
| ۲۵۷. | ➢ دریمه خبره د صفت تعریف: | ۳۷۰ |
| ۲۵۸. | ➢ څلورمه خبره د صفت اقسام: | ۳۷۲ |
| ۲۵۹. | ➢ پنځمه خبره د صفت دریم قسم: | ۳۷۳ |
| ۲۶۰. | ➢ شپږمه خبره د صفت او موصوف اقسام: | ۳۷۳ |
| ۲۶۱. | ➢ اوومه خبره د صفت او موصوف نسبت: | ۳۷۵ |
| ۲۶۲. | ➢ حل سوي جملې او تمرین: | ۳۷۶ |
| | (الدرس السادس والثلاثون) | |
| ۲۶۳. | ➢ اوله خبره تاکید: | ۳۷۹ |
| ۲۶۴. | ➢ دوهمه خبره د تاکید اقسام: | ۳۷۹ |
| ۲۶۵. | ➢ دریمه خبره تاکید معنوي: | ۳۸۱ |
| ۲۶۶. | ➢ څلورمه خبره د "کلا" او "کلتا" بیان: | ۳۸۳ |
| ۲۶۷. | ➢ پنځمه خبره د اجمع، جمعاء بیان: | ۳۸۴ |
| ۲۶۸. | ➢ شپږمه خبره بدل: | ۳۸۵ |

| شماره | د مضامينو تفصيلي فهرست: | صفحه |
|---|---|---|


| | | |
|---|---|---|
| ۲۶۹. | ◄ اوومه خبره د بدل بعض او بدل اشتمال مشترک شرطونه:........ | ۳۸٦ |
| ۲۷۰. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........ | ۳۸۸ |
| | (الدرس السابع والثلاثون) | |
| ۲۷۱. | ◄ اوله خبره د بدل او مبدل منه اقسام:........ | ۳۹۱ |
| ۲۷۲. | ◄ دوهمه خبره د بدل او مبدل منه اقسام په اعتبار د تعريف او تنکير:........ | ۳۹۳ |
| ۲۷۳. | ◄ دريمه خبره عطف بالحرف:........ | ۳۹۴ |
| ۲۷۴. | ◄ څلورمه خبره د اسماء افعالو او جملو يو پر بل عطف:........ | ۳۹۵ |
| ۲۷۵. | ◄ پنځمه خبره عطف د جملې پر جملې:........ | ۳۹٦ |
| ۲۷٦. | ◄ شپږمه خبره عطف بيان:........ | ۳۹۷ |
| ۲۷۷. | ◄ اوومه خبره د بدل او عطف بيان فرق:........ | ۳۹۹ |
| ۲۷۸. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........ | ۴۰۰ |
| | (الدرس الثامن والثلاثون) | |
| ۲۷۹. | ◄ اوله خبره حروف غير عامله:........ | ۴۰٦ |
| ۲۸۰. | ◄ دوهمه خبره د حروف تنبيه بيان:........ | ۴۰٦ |
| ۲۸۱. | ◄ دريمه خبره حروف ايجاب:........ | ۴۰۷ |
| ۲۸۲. | ◄ څلورمه خبره حروف تفسير:........ | ۴۰۹ |
| ۲۸۳. | ◄ پنځمه خبره حروف مصدريه:........ | ۴۱۰ |
| ۲۸۴. | ◄ شپږمه خبره حروف توقع:........ | ۴۱۱ |
| ۲۸۵. | ◄ اوومه خبره حروف استفهام:........ | ۴۱۲ |
| ۲۸٦. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........ | ۴۱۳ |
| | (الدرس التاسع والثلاثون) | |
| ۲۸۷. | ◄ اوله خبره د تنوين بيان:........ | ۴۱٦ |
| ۲۸۸. | ◄ دوهمه خبره حروف زيادت:........ | ۴۱۷ |

شماره | د مضامينو تفصيلي فهرست: | صفحه


| شماره | مضمون | صفحه |
|---|---|---|
| ۲۸۹. | ◄ دريمه خبره حروف شرط:........ | ۴۱۹ |
| ۲۹۰. | ◄ څلورمه خبره د "لولا" بيان:........ | ۴۲۱ |
| ۲۹۱. | ◄ پنځمه خبره د "ما" بيان:........ | ۴۲۱ |
| ۲۹۲. | ◄ شپږمه خبره د "ام" بيان:........ | ۴۲۲ |
| ۲۹۳. | ◄ اوومه خبره د "بل" بيان:........ | ۴۲۳ |
| ۲۹۴. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........ | ۴۲۴ |
| | (الدرس الاربعون) | |
| ۲۹۵. | ◄ اوله خبره د مستثنى بحث:........ | ۴۲۸ |
| ۲۹۶. | ◄ دوهمه خبره د مستثنى اقسام:........ | ۴۲۹ |
| ۲۹۷. | ◄ دريمه خبره د مستثنى دوهم تقسيم:........ | ۴۳۰ |
| ۲۹۸. | ◄ څلورمه خبره د مستثنى اعراب:........ | ۴۳۰ |
| ۲۹۹. | ◄ پنځمه خبره د دوهم قسم اعراب:........ | ۴۳۱ |
| ۳۰۰. | ◄ شپږمه خبره د څلورم قسم اعراب:........ | ۴۳۲ |
| ۳۰۱. | ◄ اوومه خبره د لفظ د "غير" معنى:........ | ۴۳۲ |
| ۳۰۲. | ◄ حل سوي جملې او تمرين:........ | ۴۳۴ |
| ۳۰۳. | ◄ د مكمل نحو مير خلاصه:........ | ۴۳۶ |
| ۳۰۴. | ◄ د زنځيري تركيب نمونه:........ | ۴۴۲ |


١

بسم الله الرحمن الرحيم

## سريزه:

حَمِدتُ اللهَ حَمْدًا لَا فَنَاهُ.... وَحَدُّ الْعِلْمِ لَا يَعْلَمُ سِوَاهُ

لَهُ اَسْمَاءٌ وَ صِفَاتٌ قَدْ تَعَالَتْ.... جَلَّتْ وَ انْجَلَتْ فَاطْلُبْ رِضَاهُ

نُصَلِّيْ ثُمَّ بَعْدَ الْحَمْدِ صِدْقًا .... عَلٰى خَيْرِ الْبَرِيَّةِ مُصْطَفَاهُ

دا حقيقت و هر چاته ښکاره دئ چي د علمي سفر په دوران كي پر علم نحو باندي تېرېدل ضروري دي او علم نحو د ډيرو ضروري علومو څخه بلل سوي ده.

صاحب د (مدينة العلوم) او صاحب د (مفتاح السعادة) ليکلي دي چي د علم نحو زده کول د فروض کفايه وو څخه دي، ځکه د کتاب الله، او سنة رسول الله، څخه په استدلال کولو کي و علم نحو ته ډېر احتياج پيدا کيږي.

د حضرت عمر رضي الله عنه قول را منقول دئ چي ده مبارک به فرمايل: "تَعَلَّمُوْا النَّحْوَ كَمَا تَتَعَلَّمُوْنَ السُّنَنَ وَ الْفَرَائِضَ" علم نحو داسي زده کوئ لکه تاسو چي فرائض او سنن زده کوئ.

داغه رنګه د شيخينو يعني ابو بکر صديق او عمر فاروق رضي الله عنهما فرمان دئ چي "اِعْرَابُ الْقُرْآنِ اَحَبُّ اِلَيْنَا مِنْ تَعَلُّمِ حُرُوْفِهِ" د قرآن کريم اعراب صحيح ويل موږ ته د هغه د حروف تر زده کړه ډېر محبوب دئ.

لېکن زموږ د علاقې طالبان که څه هم محنت کونکي دي، خو د هغو په ذهن کي د علم نحو زده کړه دا ده چي د علم نحو د لوی کتابو پر عبارت او حاشيو او نکتو زده کولو باندي خپل طاقت او کوشش ختم کي.

او د عربي ترکيب او په عربي عباراتو کي د علم نحو د قواعدو د اجراء د هغوی سره هيڅ فکر نه وو.

نو د هغه به دا نتيجه وه چي طالب العلم به په خپل علمي سفر کي انتهاء ته ورسېدئ لېکن په عربي عباراتو کي به د ترکيب په لحاظ د غلطئ کولو څخه محفوظ نه وو.

نو بنده د دې کمزورئ ليري کولو په خاطر د کال په آخيري رخصتيو کي يو کال طالبانو ته (نحومير) د خلاصې په شکل کي د څه ضروري قواعدو ور درساوئ، خو په هغه کي به زيات په

بسم اللہ الرحمن الرحیم

## عرض مرتب:

(اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى وَسَلَامٌ عَلٰى عِبَادِهِ الَّذِيْنَ اصْطَفٰى).

احقر العباد بنده ناچیز د هرڅه څخه مخکي د الله تعالی شکر ادا کوي چي الله تعالی محض په خپل فضل و کرم سره بغیر د څه استحقاق او د خپلو محترمو استاذانو او بزرګانو خصوصا د بنده د محبوب شیخ حضرت صوفي شاه فیروز عبدالله میمن صاحب (دامت برکاتہم) خلیفه مجاز بیعت شیخ العرب و العجم عارف بالله حضرت مولانا شاه حکیم محمد اختر صاحب رحمہ اللہ د خصوصي مشورو او دعاګانو په برکت سره د (بیان یسیر) چي تقریر د نحو میر دئ په پښتو ژبه او په کتابي شکل کي یې تکمیل و کړئ.

د دې مسودې د تیارولو وجه او سبب هم هغه دئ کم چي د (بیان الصرف) تقریر ارشاد الصرف په تیارولو کي بیان سوی دئ، بالاخر د بنده مشر ورور او استاذ محترم حضرت مولانا اطیع الله صاحب (دامت برکاتہم) و بنده ته د دې تقریر د تیارولو امر و کړئ.

نو بنده د حضرت (دامت برکاتہم) په امر او حکم باندي د خپل کم علمي او تهی دستی د اعتراف او تدریسي او نورو مصروفیاتو باوجوده صرف د الله د مبارک نوم په ویلو سره د حضرت موصوف (دامت برکاتہم) په نګراني او سرپرستي کي د دغه تقریر په مرتب کولو کي شروع و کړه چي الله تعالی محض په خپل فضل او کرم سره پایه تکمیل ته ورساوئ.

بنده د حضرت موصوف (دامت برکاتہم) د افاداتو یو لیکل سوې مسوده مخ ته کښېښوله او پر هغه باندي یې د تصحیح کار شروع کړئ او په تصحیح کولو کي بنده د مختلفو عربي او اردو شروحو څخه استفاده کړې ده خصوصا د دې تقریر په متن او جاشیه کي د درو قابل الذکر شروحو څخه اخذ سوی دئ هغه لکه: جامع الدروس العربیة (عربی شرح) چي د الشیخ مصطفٰی الغلاییني تالیف دئ.

او دوې اردو شرحي یوه شرح په نامه د (تنویر) چي د حضرت مفتي عطاء الرحمٰن ملتاني صاحب تالیف دئ. او بله په نامه د (نصر الخبیر) چي د بنده د مشتفق استاذ ابو حذیفه حضرت مولانا حسین قاسم صاحب (دامت برکاتہم) استاذ دار العلوم کراچي تالیف دئ. او د اجراء په حل او ترکیب کي اکثر د (اعراب القرآن) څخه استفاده سوې ده، که څوک مراجعت و غواړي نو دغه مذکوره شروحو ته رجوع کولای سي، او د دې څخه علاوه د نورو کتابو حواله په حاشیه کي موجوده ده.

عباراتو کي د قواعدو د اجراء خیال ساتل کېدئ. او بل کال به (ارشاد الصرف) پر داغه ترتیب ویل کېدئ.
او په هغه کي به مبتدي او منتهي طالبانو په ډېر کثرت سره شرکت کاوئ، چي کله طالبانو د هغه فائده زیاته محسوسه کړه نو دوی به همېشه د نحو میر او ارشاد الصرف د تقریرونو سره د اجراء د لیکلو تمنٰی ښکاره کوله.
خو د دوی دا تمنٰی د بنده کشر ورور ذکي او با استعداده فاضل او مُدرس حافظ مُفتي کلیم الله صاحب په ښه طریقه ور پوره کړه.
یو ځل یې هغه د دورې ویل سوي د (ارشاد الصرف) سبقان سره د اجراء او ضروري قواعدو او فوائدو سره را جمع کړل او هغه یې د (بیان الصرف) په نامه چاپ کړل.
او دوهم ځل یې د نحو میر ویل سوي سبقان سره د اجراء را جمع کړل او د هغه سره یې بهترینه حاشیه اضافه کړه او د (بیان یسیر) په نامه یې چاپ ته برابر کړل، الله دي د ده په عمر او علم کي برکت واچوي او الله تعالی دي د ده دا محنت قبول و ګرځوي.
او الله تعالی دي دواړه تقریرونه د طالبانو د "صرفي" او "نحوي" تُشنګی څخه د سېرابولو ذریعه او سبب و ګرځوي.
او په آخر کي د الله تعالی په دربار کي دا تمنٰی پېشوم چي هر چا د دې تقریرونو په را جمع کولو او برابرولو کي په هر قسم سره کوشش کړی وي، الله تعالی دي زموږ او د هغو ټولو دپاره د نجات ذریعه و ګرځوي.

"وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيزٍ"

اطیع الله (عُفی عنہ) (ولد) حاجي مُلا عبدالعزیز (مرحوم)

جامعہ اسلامیہ (علامہ تاؤن) بائی پاس رود چمن

۱۴ ذی الحجۃ ۱۴۳۶ ہجری

مطابق: ۲۹/۸/۲۰۱۵

## د دې کتاب پر خصوصياتو يو نظر:

الحمد لله د (بيان الصرف) په شان باندي په دې تقرير کي هم د هر قسم استعداد لرونکي طالب العلم خيال ساتل سوی دئ، او هر طالب العلم د خپل استعداد مطابق استفاده څني کولای سي، او دا تقرير پر يو څو خصوصياتو باندي مشتمل دئ چي ذکريې په لاندي ډول دئ.

۱. دا تقرير پر څلوېښت سبقانو او درسو باندي ليکل سوی دئ چي د هر سبق خلاصه تقريبا پر اوو خبرو باندي مشتمله ده چي هر استاذ او طالب العلم د هغه څخه د خپل مقصد اخذ په ښه طريقه کولای سي.

۲. د نحو مير د فارسي عبارت آسانه او سليسه پښتو ترجمه په دې تقرير کي ور کول سوې ده. چي د ابتدائي طالب العلم د پاره د نحو مير د فارسي عبارت په يادولو کې د يو ښه معاون حيثيت لري ځکه د عبارت معنی يې ازده وي نو په يادولو کي يې شوق زيات وي.

۳. د دې تقرير پښتو ژبه بالکل آسانه او ساده ژبه ده چي په هغه کي ادبي پښتو ژبه نه ده استعمال سوې نو ځکه د پښتو هر قسم ژبه ويونکی خواه که پشاوری وي او که قندهاری وي او که بل پښتو ژبه ويونکی وي د دې تقرير څخه په ډېر آسانه خپل مقصد حاصلوای سي.

۴. د دغه تقرير متن د اوس موجوده عصر حاضر د طالب علمانو د استعداد مطابق ليکل سوی دئ چي نه ډېر مختصر دئ او نه ډېر مطول بلکه متوسط دئ، چي کم از کم د يو طالب العلم په علم نحو کي څه نا څه په دغه خبرو سر خلاص وي چي بيا دی ځان ته په نحوي اعتبار هم فائده ورسوي، او سريې په ترکيب خلاص سي چي د عربي عبارت صحيح او پُر مقصده ترجمه راوباسي، او بل ته هم فائده ورسوي او بيا د علم نحو په درس کي پرېشاني ورته نه وي.

۵. پر دغه تقرير يو مختصره حاشيه اضافه سوې ده، چي د متن زياته تشريح يې کړې ده، هر طالب العلم خصوصًا ابتدائي مدرسين د نحو مير په درسولو کي بطور تفريح استفاده څني کولای سي.

۶. د دې تقرير آخيري امتيازي خصوصيت دا دئ: چي په دې تقرير کي د هر سبق څخه وروسته د اجراء د پاره دوولس حل شده مثالونه او اته يا لس غير حل شده مثالونه صرف د تمرين د پاره چي اکثره قرآني مثالونه دي ور کول سوي دي، چي هغه د حضرت موصوف (دامت برکاتہم) د محترم استاد حضرت مولانا نصر الله خان صاحب (مرحوم) طرز دئ.

او د اسماء عاملو څخه د حضرت موصوف (دامت برکاتہم) د يو خصوصي مشورې مطابق يو عليحده طرز ور کول سوی دئ چي هغه به په آخر کي د ترکيب په اعتبار سره ډېر مفيد وي انشاء الله تعالی.

## د دې تقرير څخه د استفاده کولو طريقه:

بقول حضرت موصوف (دامت برکاتہم) د دغه تقرير څخه د استفاده کولو طريقه به دا وي چې که چيرې نحو مير په دوره کې درس کيږي نو بيا که چيرې په ثلو ښت ورځې کې د طالب علمانو د استعداد مطابق د دې تقرير د متن او حاشيه څخه په استفاده کولو درس سي نو به ډېر ښه وي.

او که چيرې و ابتدائي طالب علمانو ته په کال کې نحو مير درسيږي نو بيا يې اَوَّلًا د درسولو طريقه د استاد پر صواب ديد باندې موقوفه ده چې په نه (۹) مياشتې کې يې د طالبانو د استعداد مطابق درس کې، او د متن او حاشيې څخه يې د طالب علمانو د استعداد مطابق او د-خپل صواب ديد مطابق اخذ وکې، بيا هم کچيرې په نه (۹) مياشتې کې روزانه په يوه يوه خبره يا په دوه دوه خبرو باندې وويل سي نو به ډېر مفيد وي انشاء الله.

بنده ناچيز هم چونکه د نېکۍ په کار کې د شموليت او قاعده (اَلْاَمْرُ فَوْقُ الْاَدَبِ) په تقاضا سره د دې تقرير په ترتيب او تزئين کې حصه اخستې ده حتى الوسع بنده د دې تقرير په ترتيب ور کولو کې د غلطۍ تصحيح کړې ده، بيا هم که چيرې د بشري کمزورۍ د تقاضا پر بنياد باندې د بنده څخه د دې تقرير په ترتيب او تزئين و غيره کې يو غلطي سوې وي، نو بنده اَوَّلًا د الله تعالى څخه او ثَانِيًا د ټولو مسلمانانو څخه د معافۍ طلب ګار دئ.

او د محترمو ناظرينو پر اطلاع باندې به انشاء الله تعالى په آئنده چاپ کې د هغه غلطۍ اصلاح کيږي.

او په آخر کې د بنده د ټولو مسلمانانو خصوصا د ناظرينو حضراتو څخه غوښتنه او خواست دا دئ چې بنده او د بنده شيخ (دامت برکاتہم) او د بنده والدين، استاذان، شاګردان، او تر قيامته پورې راتلونکې جمله ذُريات په خپلو خصوصي دعاګانو کې ياد وساتي او الله تعالى دې و دې تقرير ته تر قيامته پورې په هر اعتبار سره شرف قبوليت ور نصيب کړي، چې خالص د الله تعالى د رضا سبب و ګرځي. آمين

بنده ناچيز: کليم الله (ابن) ملا عبد العزيز (مرحوم)

مدرس جامعه اسلاميه (علامه ٹاؤن) بائی پاس رود چمن

۸ ذی الحجہ ۱۴۳۶ ہجری

مطابق: ۲۰۱۵-۸-۲۲ اگست

بسم الله الرحمن الرحيم

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ وَالْعَاقِبَةُ لِلْمُتَّقِيْنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَيْرِ خَلْقِهٖ مُحَمَّدٍ وَّ آلِهٖ وَاَصْحَابِهٖ اَجْمَعِيْنَ.

**ترجمه:**

ټول تعريفونه خاص الله پاک لره دي، چي د ټولو جهانو پالونکي دئ، او ښه انجام د پرهېزګارانو دپاره دئ، او درود او سلام دي وي، پر داسي ذات چي تر ټول مخلوق غوره او بهتره دي، يعني پر محمد ﷺ او د ده پر اولاد او پر تمامو صحابه کرامو رضي الله عنهم باندي.

## الدرس الاول:

د نن د سبقه خلاصه شپږ (٦) خبري دي:

### اوله خبره:

### مقدمه:

### مبادیات د نحو:

د هر علم د شروع کولو څخه مخکي د اوو شيانو پېژندل ضروري دي: (١) تعريف د علم. (٢) غرض او غايت د علم. (٣) موضوع د علم. (۴) واضع د علم. (۵) فضيلت د علم. (٦) وجه د تسميه د علم. (٧) جنسيت د علم.

د نحو د لفظ لغوي معنٰى:

لفظ د نحو په لغت کي د مختلفو معناګانو دپاره استعماليږي: (١) جهت، طرف. (٢) مثل. (٣) نوع. (۴) لاره. (۵) مقدار. (٦) ګرځول. (٧) قصد او اراده. (٨) بعضيت. (٩) قبيله. (١٠) اندازه. (١١) پرېښول. (١٢) قِسم. (١٣) صيانت (ساتل). (١۴) فصاحت. (١۵) اعراض، لکه: څنګه چي يو شاعر په دې شعر کي سره راجمع کړي دي.

## شعر:

"لِلنَّحْوِ سَبْعُ مَعَانٍ قَدْ اَتَتْ لُغَةً: جَمَعْتُهَا ضِمْنَ بَيْتٍ مُفْرَدٍ كَمَلًا"

"قَصْدٌ وَمِثْلٌ وَمِقْدَارٌ وَنَاحِيَةٌ: نَوْعٌ وَبَعْضٌ وَصَرْفٌ فَاحْفَظِ الْمَثَلَا"

"نَحَوْنَا نَحْوَ نَحْوِكَ يَا حَبِيْبِيْ: نَحَوْنَا نَحْوَ اَلْفٍ مِنْ رَقِيْبِيْ"

"وَجَدْنَاهُمْ مِرَاضًا نَحْوَ قَلْبِيْ: تَمَنَّوْا مِنْكَ نَحْوًا مِنْ زَبِيْبِيْ"

## ترجمه:

نحو په لغت کي په اوو معناګانو سره راځي، ما دا ټولي معناګاني د يو مفرد بيت (شعر) په ضمن کي را جمع کړي دي: قصد، مثل، مقدار، طرف، نوع، بعضيت، ګرځول او ته دا ټوله مثالونه ياد کړه.

ما قصد و کړئ ستا د قبيلې و طرفته ای زما محبوبه او ما پرېښول اندازًا (تقريبًا) زر (۱۰۰۰) رقيبان. ما دي پيدا کړي ناجوړه زما د زړه په شان او ده آرزو کوله ستا څخه د کشمش د يو قسم.

## دوهمه خبره:

د علم نحو اصطلاحي تعريف:

"اَلنَّحْوُ عِلْمٌ بِاُصُوْلٍ يُعْرَفُ بِهَا اَحْوَالُ الْاَوَاخِرِ الْكَلِمِ الثَّلَاثِ مِنْ حَيْثُ الْاِعْرَابِ وَالْبِنَاءِ وَكَيْفِيَّةُ التَّرْكِيْبِ بَعْضُهَا مَعَ بَعْضٍ".

ترجمه: علم نحو يو داسي علم دئ چي په هغه کي داسي قواعد بيانيږي چي د هغه په ذريعه سره د دوو شيانو معرفت حاصليږي (۱) يو خو د دا درو کلمو يعني د اسم، فعل او حرف د آخر د حالاتو معرفت په دې اعتبار چي معرب دئ او که مبني دئ. (۲) دا چي د بعض کلمو د نورو بعضو کلمو سره د ملاوېدو په وخت کي کمه کلمه مقدمه او کمه کلمه مؤخره سي او کمه يوه معرفه راوړل سي او کمه يوه نکره راوړل سي.

د علم نحو غرض او غايت:

"صِيَانَةُ الذِّهْنِ عَنِ الْخَطَاءِ اللَّفْظِيْ فِيْ كَلَامِ الْعَرَبِ" يعني ذهن (ژبه) په کلام عربي کي د واقع کېدونکي لفظي غلطۍ څخه ساتل.

د علم نحو موضوع:

"اَلْكَلِمَةُ وَالْكَلَامُ".

د علم نحو واضع:

د علم نحو د واضع په باره کي څلور اقوال دي: چي په هغه کي اول قول معتمد دئ.

۱. اول قول: حضرت علي رضي الله عنه.
۲. دوهم قول: حضرت ابو الاسود ظالم بن عمرو بن جندل بن سفیان الدولي.
۳. دریم قول: حضرت عبد الرحمان بن هرمز الاعرج.
۴. څلورم قول: نصر بن عاصم.

## دریمه خبره:

د علم نحو فضیلت:

د عربو یوه مقوله ده: "اَلنَّحْوُ فِي الْكَلَامِ كَالْمِلْحِ فِي الطَّعَامِ". ځکه د کتاب الله او سنة رسول الله ﷺ څخه په استدلال کولو کي د علم نحو ضرورت پیښیږي نو ځکه د دې علم حاصلول د فروضو کفایه وو څخه دئ داغه رنګه د حضرت عمر رضي الله عنه قول دئ: "تَعَلَّمُوْا النَّحْوَ كَمَا تَتَعَلَّمُوْنَ السُّنَنَ وَالْفَرَائِضَ" علم نحو داسي ایزده کړئ لکه څنګه چي تاسو فرائض او سنن ایزده کوئ د ایوب سختیاني قول دئ: "تَعَلَّمُوْا النَّحْوَ فَإِنَّهُ جَمَالٌ لِلْوَضِيْعِ وَتَرْكُهُ هُجْنَةٌ لِلشَّرِيْفِ" تاسو علم نحو ایزده کړئ ځکه دا د کمزوري سړي دپاره باعث د ښائست ده او د شریف دپاره د دې پرېښول لوی عیب دئ.

د علم نحو وجه د تسمیه:

علم نحو ته ځکه علم نحو وایي: چي د نحو یوه معنیٰ ده لاره او طریقه نو دا هم د قرآن کریم د ایزده کولو دپاره یو واضحه او ښکاره لاره ده.

## څلورمه خبره:

د علم نحو جنسیت:

علوم اَوّلًا پر دوه قسمه دي: (۱) علوم عقلیه. (۲) علوم نقلیه. بیا په دوی کي هر یو پر دوه دوه قسمه دئ (۱) عالیه. (۲) آلیه. نو ټوله څلور قسمه سوه.

۱. علوم عقلیه عالیه لکه: فلسفه.

۲. علوم عقلیه آلیه. لکه منطق.
۳. علوم نقلیه عالیه لکه: تفسیر، حدیث، فقه، و غیره.
۴. علوم نقلیه آلیه لکه: علوم عربیت، صرف، و نحو و غیره.
په دې ټولو قسمو کې اشرف او غوره دریم قسم دئ: یعني تفسیر، و حدیث، و فقه و غیره. او اهم او ضروري آخري څلورم قسم دئ یعني نحو صرف و غیره.

## پنځمه خبره:

د علم نحو موجد (جوړونکی):
د دې علم د ایجاد او جوړلو په باره کې بعض مؤرخینو لیکلي دي چې د سیدنا عمر فاروق رضی الله عنه په زمانه خلافت کې د دې علم ایجاد وسو او وجه د ایجاد یې دا بیان کړې ده چې یوه ورځ یو اعرابي د حضرت عمر فاروق رضی الله عنه په خدمت کې حاضر سو نو یو قاري دا آیت کریمه چې "أَنَّ اللَّهَ بَرِيءٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُ" یې د "رَسُولُهُ" د لام د ضمې (پېښ) پر ځای یې د لام په کسره (زېر) سره ووایئ او معنی یې بالکل غلطه راوزي.
ځکه په دې صورت کې بیا د "رَسُولُهُ" عطف پر لفظ د "الْمُشْرِكِينَ" باندې راځي چې مطلب او معنی یې دا راوزي چې الله تعالی د مشرکینو او "نَعُوذُ بِاللَّهِ" د خپل رسول څخه بېزاره دئ نو دا مطلب بالکل خلاف مقصود دئ حالانکه د قرآن کریم د مشهوره قرائت مطابق "رَسُولُهُ" په ضمه د لام سره دئ او دی عطف دئ پر لفظ د "الله" باندې، او لفظ د "الله" محلا مرفوع دئ، نو بیا یې معنی او مقصد دا راوزي چې الله او د ده رسول دواړه بېزاره دي د مشرکینو څخه او دا معنی بالکل صحیح ده او د آیت مبارک د مقصد مطابق ده.
خلاصه: دا چې کله دا معامله د حضرت عمر رضی الله عنه په مخ کې پېش سوه نو په دې وخت کې حضرت عمر رضی الله عنه ته دا فکر ور ولوېدئ چې کم خلک د عربي ژبې سره نابلده او ناواقف وي نو هغه خلک خو به قرآن کریم ډېر غلط وایي.
نو ځکه حضرت عمر رضی الله عنه دا امر و کړئ چې یو داسې قواعد دې وضع سي چې د هغه قواعدو په رڼا کې انسان د اعراب د غلطۍ څخه وساتل سي چنانچه د دې دپاره یو څه قواعد او ضوابط وضع سول او د علم نحو مختصره خاکه تیاره سوه او یو څه اصول او مسائل وضع سول.

چنانچه په بعض تاريخي رواياتو کي راغلي دي: چي لاندي اصول وضع سول:

۱. "اَلْكَلِمَةُ ثَلَاثٌ: اِسْمٌ، فِعْلٌ، حَرْفٌ".

۲. "كُلُّ فَاعِلٍ مَرْفُوْعٌ، كُلُّ مَفْعُوْلٍ مَنْصُوْبٌ، كُلُّ مُضَافٍ اِلَيْهِ مَجْرُوْرٌ". تدريجًا دې علم تدوين او رواج پيدا کوئ حتی چي د خليفه رابع د حضرت علي رضي الله عنه په دور خلافت کي په دې علم کي ډېره ترقي وسو.

چونکه د حضرت علي رضي الله عنه دار الخلافة کوفه وه نو ځکه دغه علم په بصره او کوفه کي ډېره ترقي وکړه او د دې علم کاملين علماء اکثره په دغه علاقو کي پيدا سول او د دوی په خپل مينځ کي د اختلاف رائي په وجه دوه جلا مذهبونه و منل سوه چي يو کوفيين دي او بل بصريين دي.

بالآخر په سنه دوه سوه (۲۰۰) هجري کي علم نحو يو معركة الاراء فن جوړ سو او په کوفه او بصره کي دوې درسگاه وي د دې علم په اشاعت کي قائمي سوې.

## شپږمه خبره:

## د نحو مير د مصنف د ژوند مختصره حالات:

نوم کنيت و نسب: د ده نوم علي بن محمد بن علي وو او د ده کنيت ابو الحسن وو د ده نسبي تعلق د جرجان د خاندان سره وو او د سادات خاندان سره د نسبي تعلق په وجه دی د سيد شريف په لقب سره مشهوره سو او دی ډېر زيات ذکي او فهيم انسان وو.

د ده د پيدائش نېټه او کال:

دی په سنه اووه سوه څلوېښت (۷۴۰) هجري کي د شعبان المعظم د مياشتي پر دوه ويشتمه (۲۲) د جرجان په ښار کي د (طاغو) په کلي کي پيدا سو نو ځکه و ده ته جرجاني ويل کيږي، او ده د شيراز په ښار کي خپله استوګنه اختيار کړه.

## تصنيفات:

د سيد شريف د يو څو مشهورو کتابو نومونه په دې ډول دي:

۱. ترجمة قرآن در فارسي. ۲. حاشيه بيضاوي. ۳. حاشيه مشكوة شريف.

۴. صغری و کبری. ۵. مير قطبي. ٦. نحو مير.

٧. شرح الفرائض السراجيه. ٨. شرح مواقف. ٩. شريفيه.
١٠. تعريف الاشياء. ١١. حاشيه هداية. ١٢. حاشيه مطول.

**وفات:**

٧٥ کاله ٦ مياشتي او ١۴ ورځي الله تعالى ژوند ورنصيب کړئ په ٨١٦ اته سوه شپاړس هجري کي پر شپږمه ٦ د ربيع الاول په ورځ د چهار شنبې باندي سيد صاحب وفات سو.

**استاذان:**

د ده په مشهوره استاذانو کي مبارک شاه، شيخ اکمل الدين، محمد بن محمود بابرتي حنفي، او علي بن قطب الدين رازي موجود وو.

## الدرس الثاني:

د نن د سبقه خلاصه شپږ (٦) خبري دي:

**اوله خبره:**

**سوال:** د مصنف رحمه الله شروع په "بِسْمِ الله" سره پر ځای د دې چي په خپل مقصد سره یې شروع کړې وای دا "اِشْتِغَال بِمَا لَا يَعْنِي" دئ يعني په بې فائدې کار باندي مشغوله کېدل دي او "اِشْتِغَال بِمَا لَا يَعْنِي" عبث دئ. و "كُلُّ عَبَثٍ حَرَامٌ" او هر عبث کار حرام دئ.

**جواب:** چي کله د يو شي د راوړلو لپاره يوه فائده وي نو هغه عبث نه بلل کيږي، د "بِسْمِ الله" د راوړلو لپاره پنځه فائدې دي:

١. تبرک.
٢. استعانت.
٣. موافقت د قران کريم سره.
۴. امتثال په حديث مشهور سره، ﴿كُلُّ اَمْرٍ ذِيْ بَالٍ لَمْ يُبْدَءْ فِيْهِ بِبِسْمِ اللهِ فَهُوَ اَقْطَعُ وَاَبْتَرُ وَاَجْزَمُ﴾ هر هغه د نېکی کار چي شروع یې په "بِسْمِ الله" سره نه وسي هغه بې برکته وي.

۵. پنځمه فائده د "بِسۡمِ اللهِ" د راوړلو لپاره، هغه دفع د وسوسې د شیطان ده.

او بیا یې خاص په کتابت سره "بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ" ولیکه، عملاً بالحدیث ﴿آلَا مَنۡ کَتَبَ کِتَابًا فَلۡیَکۡتُبۡ فِیۡ آوَّلِهٖ بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ﴾ (۱) څوک چې یو خط لیکي په کار دا دئ چې په شروع کې یې "بِسۡمِ اللهِ" ولیکي.

## دوهمه خبره:

په "اَلۡحَمۡدُلِلّٰهِ" (۲) کې درې تعمیمه دي او یو تخصیص دئ:

۱. تعمیم د حمد.

۲. تعمیم د حامد.

۳. تعمیم د زمانې.

تعمیم د حمد د الف لام څخه معلومیږي.

تعمیم د حامد د نه ذکر څخه د فاعل معلومیږي.

تعمیم د زمانې د جملې اسمیې څخه معلومیږي.

تخصیص د لام جاره (۳) څخه معلومیږي، ځکه لام د اختصاص لپاره راځي، لکه: "اَلۡجُلُّ لِلۡفَرَسِ اَیۡ مُخۡتَصٌّ لِلۡفَرَسِ".

(۱) شپږمه فائده پر شیطان باندې تکلیف را وستل دي، ځکه نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: "مَنۡ قَالَ بِسۡمِ اللهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ یَذُوۡبُ الشَّیۡطَانُ کَمَا یَذُوۡبُ الرَّصَاصُ بِالنَّارِ".

یعنې "شیطان" د "بسم الله" په ویلو سره داسې ویلي کیږي لکه: قلعي (یعنې سرف) په اور سره.

(۲) د "اَلۡحَمۡدُلِلّٰهِ" معنی "کُلُّ حَمۡدٍ مِنَ الۡاَزَلِ اِلَی الۡاَبَدِ مِنۡ اَیِّ حَامِدٍ مِنَ الۡخَالِقِ اَوۡ مِنۡ مَخۡلُوۡقِهٖ مُخۡتَصٌّ لِلّٰهِ تَعَالٰی".

د حمد تعریف: "هُوَ الثَّنَاءُ بِاللِّسَانِ عَلَی الۡجَمِیۡلِ الۡاِخۡتِیَارِيِّ نِعۡمَةً کَانَ اَوۡ غَیۡرَهَا".

د مدح تعریف: "هُوَ الثَّنَاءُ بِاللِّسَانِ عَلَی الۡجَمِیۡلِ نِعۡمَةً کَانَ اَوۡ غَیۡرَهَا".

د شکر تعریف: "هُوَ فِعۡلٌ یُنۡبِئُ عَنۡ تَعۡظِیۡمِ الۡمُنۡعِمِ سَوَاءٌ کَانَ بِاللِّسَانِ اَوۡ بِالۡجَنَانِ اَوۡ بِالۡاَرۡکَانِ".

(۳) په لفظ د "الله" کې یا لام د تملیک دپاره دئ یعنې د حمد مالک الله تعالی دئ لفظ الله د صحیح قول مطابق عربي جامد لفظ دئ او علم دئ د هغه ذات چې واجب الوجود دئ او تعریف یې دا دئ "اَللهُ عَلَمٌ لِذَاتِ الۡوَاجِبِ الۡوُجُوۡدِ الۡمُسۡتَجۡمِعِ لِجَمِیۡعِ صِفَاتِ الۡکَمَالِ

## دریمه خبره:

د "رَبٌّ" د لفظ تحقيق:

"رَبِّ الْعَالَمِيْنَ": "رَبٌّ":

۱. یا صیغه د صفت مشبه ده په اصل کي "رَبَبٌ" وو پر وزن د "فَعَلٌ" په معنٰی د تربيت سره، تربيت ويل کيږي: ﴿تَبْلِيْغُ الشَّيْئِ إِلٰى كَمَالِهٖ بِحَسَبِ اِسْتِعْدَادِهٖ شَيْئًا فَشَيْئًا﴾ يو شی د خپل صلاحيت مطابق درجه په درجه و كمال ته رسول.

**سوال**: "رَبٌّ" كه چيري د صفت مشبه صيغه سي، نو بيا د "رَبٌّ" اضافت و "اَلْعَالَمِيْنَ" ته اضافت لفظي دئ، چي نه مفيد د تعريف دئ او نه مفيد د تخصيص دئ، بلكه صرف تخفيف في اللفظ فائده كوي، او دلته دَی د لفظ الله د پاره صفت واقع سوی دئ، او لفظ الله معرفه دئ، نو نكره صفت د معرفه جوړيږي او دا هيڅ كله جائز نه دي.

**جواب**: دغه قاعده صرف د هغه صفاتو په باره کي ده چي په کمو صفاتو کي معنٰی د تجدد او حدوث وي، چونكه په دغه صفاتو كي معنٰی د دوام او استمرار ده نو ځكه اضافت مفيد د تعريف دئ. "فَلَا يَرِدُ مَا وَرَدَ" او د الله تعالی په ټولو صفاتو كي معنٰی د دوام او استمرار سته.

۲. او يا "رَبٌّ" صيغه د مصدر ده د "رَبَّ، يَرُبُّ، رَبًّا" يعني د "نَصَرَ، يَنْصُرُ" د باب څخه هم په معنٰی د تربيت سره.

**سوال**: "رَبٌّ" كه چيري د مصدر صيغه سي او مصدر صرف وصف دئ او دلته دی حمل دئ پر لفظ د الله باندي او لفظ د الله ذات دئ، نو حمل د صرف وصف پر ذات باندي لازميږي او حمل د صرف وصف پر ذات باندي باطل دئ.

**جواب**:

۱. يا خو دلته حمل مبالغةً دئ لكه په "زَيْدٌ عَدْلٌ" كي (گويا زيد په خپله سراسر عدل دئ).

---

وَالْمُنَزَّهِ عَنِ النَّقْصِ وَالزَّوَالِ" لفظ "الله" په اصل كي "اِلٰهٌ" وو همزه ئې حذف سو او بيه شروع كي لام تعريف راوړل سو او بيا لام په لام كي مدغم سو "الله" سو، او د لفظ "الله" په همزه كي دوه اعتباره دي:

۱. تعويض: يعني عوضي لكه په "يَا اللهُ" كي نو ځكه نه حذف كيږي.

۲. تعريف: لكه په "فَاللهُ خَيْرٌ حَافِظًا" غير منادی كي چي حذف كيږي، (مختصر المعاني).

۲. او یا حمل مجازًا دئ، چي "رَبٌّ" مصدر په معنٰی د "رَابِبٌ" مشتق سره اخستل په طریقه د مجاز سره دئ، نو حمل د ذات مع الوصف پر مطلق ذات باندي جائز دئ.

## څلورمه خبره:

د "رَبٌّ" د لفظ ترکیبي حیثیت:

پر لفظ د "رَبٌّ" باندي درې قسم اعراب ویل جائز دي:

۱. یا مرفوع بنا برخبریت دئ چي دَی د "هُوَ" مبتداء محذوف دپاره خبر دئ "اَیْ هُوَ رَبُّ الْعَالَمِیْنَ".

۲. یا منصوب بنا بر مفعولیت دئ چي د "اَحْمَدُ" یا "اَعْنِيْ" فعل دپاره مفعول دئ "اَیْ اَحْمَدُ رَبَّ الْعَالَمِیْنَ".

۳. یا مجرور بنا بر بدلیت یا بنا بر عطف بیان دئ، د لفظ د "الله" څخه "اَیْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِیْنَ".

د "اَلْعَالَمِیْنَ" د لفظ تحقیق:

"اَلْعَالَمِیْنَ" جمع د "عالم" ده او "عالم" صیغه د اسم آله (۱) ده په معنٰی د "مَا یُعْلَمُ بِهٖ" سره راځي لکه: "خَاتَمٌ" په معنٰی د "مَا یُخْتَمُ بِهٖ" سره راځي او دا دواړي صیغې د اسم آله دي.

## پنځمه خبره:

د "اَلْعَاقِبَةُ" د لفظ تحقیق:

---

(۱) اسم آله و دې ته ویل کیږي چي د هغه باب د مصدر د حصول ذریعه او آله وي لکه "خاتم" چي د حصول "ختم" یعني د مهر د لګولو ذریعه ده نو "عَالَم" د لغوي معنی په اعتبار سره عام سو کم شی چي هم په کائناتو کي د بل شي د عِلم د حصول ذریعه جوړه سي نو هغه ته "عَالَم" ویل کیږي، لیکن اوس د "عَالَم" اطلاق پر "جَمِیْعُ مَاسِوَا اللهِ کُلُّ مَا خَلَقَ اللهُ فِي الدُّنْیَا وَالْاٰخِرَةِ" باندي کیږي ځکه د جمیع کائنات څخه د صانع عِلم حاصلیږي او "عالمین" په اعتبار د انواعو سره جمع راوړل سوی دئ، یعني عالم انس، عالم جن، عالم ملائکه ټولو له شامل دي.

د "اَلْعَاقِبَةُ" الف لام خو یا عهد خارجي دئ او یا د مضاف محذوف په عوض کي دئ نو بیا تقدیر د عبارت "حُسْنُ الْعَاقِبَةِ یا خَیْرُ الْعَاقِبَةِ" را وځي (۱).

"وَالْعَاقِبَةُ" صیغه د مصدر ده او مصدر کله کله پر وزن د "فَاعِلَةٌ" هم راځي، لکه: "کَاذِبَةٌ" او کله پر وزن د "فَعِیْلٌ" راځي، لکه: "حَرِیْقٌ" او کله پر وزن د "مَفْعُوْلٌ" راځي، لکه: "مَفْتُوْنٌ".

د "مُتَّقِیْنَ" د لفظ تحقیق:

"مُتَّقِیْنَ" جمع د "مُتَّقِيْ" ده، شرعًا د "مُتَّقِيْ" درې معناوي دي (۲).

۱. "مَنْ یَّتَّقِيْ نَفْسَهُ مِنَ الشِّرْکِ وَکَسْبِ الْکَبَائِرِ" متقي هغه دئ چي خپل ځان د شرک او د کبیره ګناهونو څخه وساتي.

۲. "مَنْ قَالَ قَالَ لِلّٰهِ وَسَکَتَ سَکَتَ لِلّٰهِ" متقي هغه دئ چي وینا او خاموشي یې دواړه د الله دپاره وي.

۳. "مَنْ لَّایَرٰی نَفْسَهُ خَیْرًا مِّنْ اَحَدٍ" متقي هغه دئ چي خپل ځان تر هیڅ چا ښه نه ویني.

مقصود د دې جملې څخه و طلباء کرامو ته د تقوٰی او د عمل ترغیب ور کول دي، ځکه چي نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: ﴿لَوْ کَانَ لِلْعِلْمِ شَرَفٌ بِدُوْنِ التَّقْوٰی لَکَانَ الشَّیْطَانُ اَعْلٰی مَنْزِلَةً﴾ که چیري بغیر د تقوی څخه علم لره یو څه اعتبار یا شرافت وای نو شیطان به تر ټولو لوی مرتبې والا وای.

## شپږمه خبره:

د "صَلٰوةٌ" د لفظ تحقیق:

"صَلٰوةٌ" یا خو مصدر دئ، د تفعیل د باب او د ده ماده د مجردو څخه نه ده مستعمله او یا اسم مصدر دئ، د تصلیه دپاره نوم دئ.

د لغوي معنی په اعتبار سره یا خو مشترک لفظي دئ په معنٰی د رحمت، دعاء، استغفار، تسبیح.

---

(۱) لکه د دې مثال په قرآن کریم کي د الله تعالی قول دئ: "وَجَاءَ رَبُّکَ: اَیْ اَمْرُ رَبِّکَ".

(۲) په بل تعبیر سره تقوی پر درې قسمه ده: (۱) تقوای د عوامو. (۲) تقوای د خواصو. (۳) تقوای د اخص الخواص. (تنویر)

## دوهمه خبره:

د "آلْ" د لفظ تحقیق:

"آلْ" په اصل کي "اَوَلْ" یا "اَهْلْ" دئ علی اختلاف القولین د "آلْ" نسبت همېشه و اشرافو ته کیږي خواه شرافت دنیوي ورته حاصل وي، او که اُخروي لکه آل فرعون.

او "اَهْلْ" عام دئ، په اشرافو او ارزالو دواړو کي استعمالیږي.

او د "آلْ" په مصداق کي شپږ اقوال دي:

۱. "کُلُّ تَقِيٍّ نَقِيٍّ فَهُوَ آلِيْ" هر متقي او پرهېزګاره زما آل دئ.
۲. عند الشوافع بنو هاشم دي.
۳. عند الاحناف بنو هاشم او بنو عبد المطلب دي.
۴. عند الروافض د نبي کریمﷺ لوني خاص بیبي فاطمهؓ او د ده یو زوم حضرت عليؓ.
۵. ازواج مطهرات او بعضو علماء لوني هم کي داخلي کړي دي.
۶. ټوله قریش دي. لیکن راجح اول قول دئ.

## دریمه خبره:

اما بعد: بدان اَرْشَدَکَ الله تعالیٰ فی الدارین که این مختصریست مضبوط در علم نحو که مبتدی را بعد حفظ مفردات لغت الخ:.....الی قوله بتوفیق الله و عونه.

**ترجمه:** پوه سه! الله تعالی دي تا نیک بخته کړي چي دغه مختصره رساله ضبط سوې ده په علم نحو کي چي و مبتدي ته د لغات مفرده د یادولو او د اشتقاق د پېژندلو او د علم الصرف د اهمو قواعدو یادولو وروسته د عربي د ترکیب د کیفیت و طرفته ډېره رهنمائي کوي، او ژر په هغه کي د معرب او مبني د پېژندلو استعداد پیدا کوي، او بل د عربي عبارت په ویلو کي ملکه ورته حاصلیږي د الله تعالی په توفیق او مدد سره.

**سوال:** مصنف "بدان" د څه غرض لپاره ویلی دئ؟

**جواب:** د طالب د اګاهی او بیداری لپاره.

**سوال:** کتاب فارسي دئ نو دعاء یې ولي په عربي ژبه سره راوړې ده؟

او يا مشترک معنوي دئ، وضع يې د معنٰى كلي (الامه خیر) دپاره ده كله چي يې نسبت و الله ته وسي مراد ځني رحمت دئ، او كله چي يې نسبت و انسان ته وسي، مراد ځني دعاء ده، او كله چي يې نسبت ملائكو ته وسي، مراد ځني استغفار دئ، او كله چي يې نسبت و حوش او طيور ته وسي، مراد ځني تسبيح و تهليل دئ.

"صَلوٰةٌ" يې پر نبي كريمﷺ باندي كتابةً ځكه ويلى دئ عملًا بالحديث ﴿مَنْ صَلّٰى عَلَيَّ فِيْ كِتَابٍ لَمْ تَزَلِ الْمَلٰئِكَةُ تَسْتَغْفِرُ لَهُ مَادَامَ اِسْمِيْ فِيْ ذَالِكَ الْكِتَابِ﴾ څوک چي پر ما باندي په كتاب كي درود ووايي: نو ملائكه همېشه د ده دپاره بخښنه غواړي تر څو چي زما نوم په دې كتاب كي وي.

او سلام يې ورسره ملګری کړی دئ "لِمُتَابَعَةِ الْقُرْاٰن" ﴿صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا﴾.

# الدرس الثالث:

د نن دسبقه خلاصه پنځه (۵) خبري دي:

## اوله خبره:

د "مُحَمَّدٌ" د لفظ تحقيق:

"مُحَمَّدٌ" صيغه د اسم مفعول ده د تفعيل د باب څخه د مبالغې دپاره د "حَمْدٌ" څخه مشتق سوى دئ، او په تفعيل كي يوه خاصه د تكثير هم سته نو معنٰى يې دا ده چي محمد هغه ذات دئ، چي د ده ډېر اوصاف بيان سوي دي، او د محمد ﷺ صفت هم په مځکو او آسمانو كي سوى دئ.

د "مُحَمَّدٌ" د لفظ تركيبي حيثيت:

كله چي د لقب څخه وروسته عَلَم ذكر سي نو بيا په هغه كي درې سره اعرابه ويل جائز دي:

۱. يا مجرور بنا بر بدل كل يا بنا بر عطف بيان دئ د "رَسُوْلِهٖ" د لفظ څخه يا د "خَيْرِ خَلْقِهٖ" د لفظ څخه.
۲. يا منصوب بنا بر حاليت يا منصوب على سبيل المدح دئ "اَیْ اَمْدَحُ مُحَمَّدًا".
۳. يا مرفوع بنا بر خبريت دئ د مبتداء محذوف دپاره "اَیْ هُوَ مُحَمَّدٌ".

**جواب**: په عربي ژبه دعاء ژر قبليږي، ځکه نبيﷺ فرمايلي دي: ﴿اَلدُّعَاءُ بِاللِّسَانِ الْعَرَبِيَّةِ اَسْرَعُ لِلْاِجَابَةِ﴾ دعا په عربي ژبه ژر قبليږي. او بل نبيﷺ د دې ژبې فضيلت داسې بيان کړی دئ: ﴿اَنَا عَرَبِيٌّ وَالْقُرْاٰنُ عَرَبِيٌّ وَلِسَانُ اَهْلِ الْجَنَّةِ فِي الْجَنَّةِ عَرَبِيٌّ﴾ (مفهوم) زه عربي يم قرآن عربي دئ او د جنتيانو ژبه په جنت کې عربي ده.

## څلورمه خبره:

که این مختصریست مضبوط در علم نحو که مبتدی را بعد حفظ مفردات لغت الخ: ............ الی قوله بتوفیق الله وعونه.

په عبارت کې د بعضو الفاظو تشريح:

يو مختصر دئ، يو مطول دئ [1] يوه رسالة ده او يوه فتاوٰی ده.

1. مختصر: "قَلِيْلُ الْاَلْفَاظِ كَثِيْرُ الْمَعَانِيْ".
2. مطول: "كَثِيْرُ الْاَلْفَاظِ قَلِيْلُ الْمَعَانِيْ".
3. رسالة: "قَلِيْلُ الْاَلْفَاظِ قَلِيْلُ الْمَعَانِيْ".
4. فتاوٰی: "كَثِيْرُ الْاَلْفَاظِ كَثِيْرُ الْمَعَانِيْ".
5. مبتدي: "مَنْ شَرَعَ فِيْ اَوَّلِ الْجُزْءِ مَعَ قَصْدِ تَحْصِيْلِ بَاقِي الْاَجْزَاءِ" څوک چې د کتاب په اول جزء کې شروع وکړي سره د ارادې د حاصلولو د باقي اجزاؤ.
6. منتهي: "مَنْ وَصَلَ اِلٰى آخِرِ الْاَجْزَاءِ" څوک چې و آخر جزء ته رسېدلی وي.

---

[1] مصنف رحمة الله عليه مختصر ذکر کړئ ودې خبرې ته يې اشاره وکړه چې زما کتاب پر مطالب کثيره باندې مشتمل دئ، او د حشوې او تطويل څخه محفوظ دئ.

حشوه ودې ته ويل کيږي چې په هغه کې زيادت بلا فائده وي، او زيادت متعين وي. او تطويل ودې ته ويل کيږي. چې پر اصل مراد باندې زياتوب بلا فائده وي، او زيادت متعين نه وي.

اختصار ايجاز او تلخيص درې سره د قلت پر معنی دلالت کوي، ليکن فرق يې دادئ چې "اختصار" په کمو الفاظو سره زياته معنی اداکول، او "ايجاز" چې د مقصود په بيانولو کې څومره عبارت استعمالول مشهور وي، د هغه څخه په کمو الفاظو کې مقصود بيانول، "تلخيص" مقصود په ښه انداز واضح کول.

او د دوی مقابل دوه لفظونه مشهور دي، چې پر کثرت باندې دلالت کوي، (۱) اطناب (۲) تطويل. اطناب چې په څومره الفاظو باندې مقصود اداکول مشهور وي، د هغه څخه په زياتو الفاظو باندې مقصود ادا کول. تطويل چې اصل مراد په څومره عبارت باندې ادا کيږي د هغه څخه زائد عبارت راوړل. (تنوير)

## پنځمه خبره:

مصنف رحمه الله و طالبانو ته يو اعلان کوي، که چيري تاسو زما کتاب په ښه طريقه وواياست نو دري فائدې به و تاسو ته حاصلي سي:

۱. اوله فائده: په عربي عبارت کي به ترکيب ښه کولای سئ.
۲. دوهمه فائده: معرب او مبني به و پيژنئ.
۳. دريمه فائده: په عربي عبارت کي به ملکه پيدا کړئ. يعني عربي عبارت به په ښه طريقه او په روانه ګي سره ويلای سئ.

خو دا دري فائدې مشروطه په درو شرطو سره دي.

۱. اول شرط يې دا دئ: حفظ به دي د مفرداتو د علم لغت کړی وي. يعني د الفاظو معاني به دي زده وي.
۲. دوهم شرط يې دا دئ: اشتقاق به دي زده کړی وي.
۳. دريم شرط يې دا دئ: د علم الصرف اهم قوانين به دي ياد کړي وي.

خو دا ټوله کارونه چي کيږي په توفيق د الله جل جلاله سره "وَبِعَوْنِهٖ" او په مدد د الله ﷻ سره.

## جملې:

| عنوان | مستعمل، مہمل | مفرد، مرکب | اسم، فعل، حرف | علامات |
|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ | مستعمل | مفرد | اسم | علم، (نوم) |
| مُحَمَّدٌ | مستعمل | مفرد | اسم | علم، (نوم) تنوين |
| دِيْنٌ | مستعمل | مفرد | اسم | تنوين |
| آمَنَ | مستعمل | مفرد | فعل | مبنی بر فتحه |
| لَيْتَ | مستعمل | مفرد | حرف | خالي والی د علامو څخه |
| دَيْزٌ | مہمل | + | + | + |
| يُنْفِقُوْنَ | مستعمل | مفرد | فعل | حروف اتين |
| رَسُوْلٌ | مستعمل | مفرد | اسم | تنوين |
| جَسَقٌ | مہمل | + | + | + |
| مِنْ | مستعمل | مفرد | حرف | خالي والی د علامو څخه |
| لَمْ نَجْعَلْ | مستعمل | مفرد | فعل | حروف جوازم |

| عنوان | مستعمل، مہمل | مفرد، مرکب | اسم، فعل، حرف | علامات |
|---|---|---|---|---|
| اَلْاَرْضُ | مستعمل | مفرد | اسم | الف لام |
| اِمْرَءَةٌ | مستعمل | مفرد | اسم | تاء مدورہ، تنوین |
| عَنْ | مستعمل | مفرد | حرف | خالي والی د علامو څخه |
| اَفْغَانِيٌّ | مستعمل | مفرد | اسم | تنوین، یاء نسبتی |

## التمرين:

"يَخْتَلِفُوْنَ، مِهَادًا، اَلنَّبَأُ، كَلَّا، ذَهَبَ، قَلَمٌ، كِتَابٌ، قُرَيْشٌ، قَامَ، حَتّٰى، اِشْتَرٰى، مَسْجِدٌ، صَبَرُوْا، بَابٌ، لٰكِنَّ".

فصل: بدانکہ لفظ مستعمل در سخن عرب الخ:........................الی قولہ چنانکہ در تصریف معلوم شدہ است.

## ترجمه:

پوه سه! په کلام د عربو کي چي کم الفاظ استعمالیږي هغه پر دوه قسمه دي، اول مفرد، دوهم مرکب. مفرد هغه لفظ دئ، چي يواځي يو لفظ وي او پر يوه معنٰی دلالت کوي، و داسي لفظ ته کلمه هم ویل کیږي (چونکه دغه نوم زیات مشهور وو نو ځکه مصنف رحمہ اللہ د اقسامو په ذکر کولو کي دغه نوم ذکر کړی دئ) کلمه پر درې قسمه ده: (۱) اسم لکه "رَجُلٌ" (۲) فعل لکه "ضَرَبَ" (۳) حرف لکه "هَلْ". لکه څنګه چي په علم صرفو کي دغه خبره معلومه سوې ده.

## الدرس الرابع:

د نن د سبقه خلاصه شپږ (٦) خبري دي:

### اوله خبره:

د لفظ تقسیم:

لفظ پر دوه قسمه دئ: (۱)

(۱) لفظ په لغت کي "رَمْي" یعني غورځولو ته وايي: او په اصطلاح کي لفظ هغه بې معنی یا با معنی آواز ته ویل کیږي چي انسان یې د خپلي خولې څخه را باسي یا یې را ایستلای سي حقیقتًا وي لکه: "زَيْدٌ" یا تقدیرًا وي لکه: "اِضْرِبْ" چي د "اَنْتَ" ضمیر پکښي مستتر دئ. (نصر الخبیر)

۱. لفظ با معنٰی.
۲. لفظ بې معنٰی.

و لفظ با معنٰی ته لفظ مستعمل، موضوع، او غیر مهمل هم وایي: لکه "زَیْدٌ".
و لفظ بې معنٰی ته لفظ غیر مستعمل، غیر موضوع، او مهمل هم وایي: لکه: "دَیْزٌ".

**فائده:**

چونکه په کلام عربي کي د لفظ مهمل څخه بحث نه کیږي نو ځکه مصنف رحمه الله د لفظ مستعمل په تقسیم سره شروع وکړه.

**د لفظ مستعمل تقسیم:**

لفظ مستعمل پر دوه قسمه دئ:

۱. مفرد [۱].
۲. مرکب.

**د مفرد تعریف:**

مفرد یو لفظ دئ تنها چي پر یوه معنٰی دلالت کوي لکه: "زَیْدٌ". د مفرد دوهم نوم کلمه ده.

**د کلمې اقسام:**

کلمه پر درې قسمه ده:

۱. اسم لکه "رَجُلٌ".

---

(۱) مفرد په لغت کي تنها شده ته وایي او په اصطلاح کي یو لفظ چي پر یوه معنی دلالت کوي، یعني جزء د لفظ یې پر جزء د معنی دلالت نه کوي لکه: "زَیْدٌ".
مفرد د پنځو شیانو مقابل راځي:
۱. مفرد بمقابله تثنیه او جمع.
۲. مفرد بمقابله مرکب.
۳. مفرد بمقابله جمله.
۴. مفرد بمقابله مضاف.
۵. مفرد بمقابله شبه مضاف.
دلته مفرد مقابل د مرکب او جملې دئ. (نصر الخبیر)

۲. فعل لکه "ضَرَبَ".

۳. او حرف لکه "هَلْ".

## دوهمه خبره:

وجه د حصر:

وجه د حصر یې داده (۱) چې دا کلمه به خالي نه وي یا به دلالت پر خپله معنٰی بلا ضم د کلمې اُخرٰی کوي یا به یې نه کوي که یې دلالت نه کوئ هغه حرف دئ لکه: "مِنْ و اِلیٰ". که یې دلالت بلا ضم د کلمې اُخرٰی کوئ بیا به خالي نه وي یا به اقتران په یوه د درو زمانو پوري لري، یا به یې نه لري، که یې نه درلودئ هغه اسم دئ لکه: "رَجُلٌ". که یې اقتران درلودئ هغه فعل دئ لکه: "ضَرَبَ".

مختصره وجه د حصر یې داده: چې دا کلمه به خالي نه وي یا به دلالت پر ذات کوي یا به دلالت پر وصف کوي یا به دلالت پر ربط کوي. که یې دلالت پر ذات کوی هغه اسم دئ لکه: "رَجُلٌ". که یې دلالت پر وصف کوی هغه فعل دئ لکه: "ضَرَبَ، شَرِبَ، اَکَلَ". که یې دلالت پر ربط کوی هغه حرف دئ لکه: "مِنْ واِلیٰ".

## دریمه خبره:

د اسم تعریف:

اسم په لغت کې "عُلُوٌ" یعنې لوړ والي ته وایي او په اصطلاح کې دا یوه کلمه ده چې دلالت کوي پر خپله معنٰی بلاضم د کلمې اُخرٰی او معنٰی یې مقترنه نه وي په یوه د دې درو زمانو پوري لکه: "رَجُلٌ".

---

(۱) ابن الانباري د دې حصر علت او حکمت دا لیکلی دئ، چې کله په دغه اقسام ثلاثو سره د جمیع مافي الضمیر تعبیر کېږي او خپل ټول خیالات په ادا کېدای سي نو بیا د څلورم قسم ضرورت نسته نو دا ضرورت نه پیدا کېدل د حصر دلیل دئ.
او ابو جعفر نحوي (اسم فعل) څلورم قسم جوړ کړئ دئ، او د هغه نوم یې "خالفه" ایښی دئ.

## د اسم علامات (۱):

د اسم لپاره زموږ د استاد په طبق پنځه دېرش (۳۵) علامې دي:

۱. الف لام دئ (۲) لکه: "اَلْحَمْدُ".

۲. حروف جاره دي، لکه: "بِرَبِّ النَّاسِ".

او حروف جاره اولس (۱۷) دي:

بَا، وتَا، وكَاف، ولَام، وَاو، مُنْذ، ومذ، خَلَا
رُبَّ، حَاشَا، مِنْ، عَدَا، فِيْ، عَنْ، عَلٰى، حَتّٰى، اِلٰى

۳. ميم زائده غالبًا دئ لکه: "مَضْرُوْبٌ".

۴. نوم د يو شخص وي يا د يو ځای وي لکه: "عُمَرُ، بَصْرَةُ".

۵. تنوين دئ (۳) لکه: "زَيْدٌ".

٦. حروف النداء دي لکه: "يَا عَبْدَ اللهِ".

او حروف نداء پنځه دي: يَا، اَيَا، هَيَا، وايْ، وهَمْزَة مَفْتُوحَة.

۷. تصغير دئ (۴) لکه: "رُجَيْلٌ".

---

(۱) علامه او خاصه د مصداق په اعتبار سره يو دي يعني "مَا يُوْجَدُ فِيْهِ وَلَا يُوْجَدُ فِيْ غَيْرِهٖ" او په مجموعي لحاظ باندي د علامې شپږ قسمونه دي: (۱) شامله (۲) غير شامله. (۳) لازمه. (۴) غير لازمه. (۵) باالقوه. (٦) باالفعل. دلته مراد خاصه غير شامله ده چي بعضي لفظي دي او بعضي معنوي دي.

(۲) ابن هشام رحمه الله ليکلي دي، چي د الف لام د تعبير پر ځای "اَلْ" ويل په کار دي، لکه: "هَلْ" "قَدْ" چي ويل کيږي ځکه د حرف تعريف فائده او اثر تعريف د معرفه دئ او دا د اسم څخه ماسوا بل ځای نه پيدا کيږي. (همع الهوامع)

(۳) د امام سبويه په نزد باندي د تنوين وضع د منصرف او غير منصرف د فرق کولو دپاره سوې ده او د امام فراء په نزد باندي د اسماء او د افعالو د فرق دپاره ده، او عند الکوفيين د مفرد او مضاف د فرق دپاره ده او دا غه رنګه د الفاظو عجميو د تعريف او تنکير په مينځ کي د فرق کولو دپاره ده يعني کچيري معرفه وي نو به غير منون وي لکه: "صَهْ" او که چيري نکره وي، نو تنوين را وړل کيږي لکه: "صَهٍ" او داغه رنګه د حرف او کلمې او جملې په عوض کي را وړل کيږي لکه: "جَوَارٍ. غَوَاشٍ. کُلًّا بَعْضًا. يَوْمَئِذٍ".

(۴) تصغير هغه اسم دئ چي په هغه کي زيادت وسي د قلت، حقارت، عظمت، او شفقت د معنی حاصلولو دپاره او علامه يې دا ده چي اول حرف مضموم دوهم مفتوح دريم ځای ياء علامه د تصغير وي.

۸. یاء نسبتي ده (۱) لکه: "جُرْجَانِيٌّ".
۹. تاء متحرکه مدوره ده لکه: "ضَارِبَةٌ".
۱۰. الف مقصوره دئ (۲) لکه: "حُبْلٰی".
۱۱. الف ممدوده دئ (۳) لکه: "حَمْرَاءُ".
۱۲. جمع الاقصٰی ده (۴) لکه: "مَصَابِيْحُ".
۱۳. مضاف دئ (۵) لکه: "غُلَامُ زَيْدٍ".
۱۴. موصوف دئ (۶) لکه: "رَجُلٌ عَالِمٌ".
۱۵. مسند الیه دئ لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ".
۱۶. تثنیه ده (۷) لکه: "ضَارِبَانِ".
۱۷. جمع ده لکه: "ضَارِبُوْنَ".

## څلورمه خبره:

۱۸. حروف مشبهه بالفعل دي لکه: "اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ".
او حروف مشبه بالفعل شپږ دي: اِنَّ، بااَنَّ، کَاَنَّ، لَيْتَ، لٰكِنَّ، لَعَلَّ.

---

(۱) د اسم په آخر کي د یاء نسبتي څخه مقصود د یو اسم د بل شي سره تعلق ښکاره کول وي، لکه: پاکستاني، افغاني.
(۲) هغه الف چي د کلمې په آخر کي راسي د ده څخه وروسته همزه نه وي.
(۳) هغه الف چي د کلمې په آخر کي راسي د ده څخه وروسته همزه وي. (النحو الوافي)
(۴) چي په جمعیت کي انتهاء ته رسیدلې وي، بیا دوباره په جمع تکسیره سره نسي جمع کېدای لکه د "قَوْلٌ" جمع مکسره "اَقْوَالٌ" او د "اَقْوَالٌ" جمع منتهی الجموع "اَقَاوِيْلُ" ده.
(۵) د صحیح قول مطابق مطلق اضافت د اسم خاصه ده خواه که مضاف وي او که مضاف الیه وي.
(۶) د صفت په ذریعه په موصوف کي تخصیص، تعریف، یا توضیح راځي. او دا ټولي خاصې د اسم دي. نو صفت هم خاصه د اسم ده.
(۷) د "ضَرَبَا، ضَرَبُوْا" په وجه سره باید اعتراض وارد نسي ځکه هلته ضمیر تثنیه او جمع کیږي نه فعل او ضمیر اسم دئ. (از مرتب عفي عنه)

۱۹. تنوین مقدر دئ (۱) لکه: "اَضْرَبُ".

۲۰. کسره ده (۲) لکه: "غُلَامِ".

۲۱. لا التي لنفي الجنس دئ، لکه: "لَارَجُلَ فِي الدَّارِ".

۲۲. ما ولا مُشبهتان بِلیس دي لکه: "مَازَيْدٌ قَائِمًا. وَلَا اَمَةٌ جَالِسَةٌ".

۲۳. مکبر دئ لکه: "ضَارِبٌ".

۲۴. منصرف دئ لکه: "مَسْجِدٌ".

۲۵. غیر منصرف دئ لکه: "اَحْمَدُ، عُمَرُ".

۲۶. مستثنی ده لکه په "جَائَنِيْ الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا" کي "زَيْدًا".

۲۷. مستثنی منه ده لکه: په "فَمَا جَائَنِيْ اَحَدٌ اِلَّا بَكْرًا" کي "اَحَدٌ".

۲۸. معرفه ده لکه: "اَلرَّجُلُ".

۲۹. نکره ده لکه: "رَجُلٌ".

۳۰. ذو الحال دئ لکه: په "جَائَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا" کي "زَيْدٌ".

۳۱. مذکر دئ لکه "رَجُلٌ".

۳۲. مؤنث دئ لکه: "اِمْرَاَةٌ".

۳۳. فاعل دئ لکه: په "قَامَ زَيْدٌ" کي "زَيْدٌ".

۳۴. مفعول دئ لکه: په "ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًوا" کي "عَمْرًوا".

۳۵. منادیٰ ده لکه: "يَا زَيْدُ".

## پنځمه خبره:

د فعل تعریف:

---

(۱) "اَضْرَبُ" چي کله راسي نو د وزن فعل او وصفیت په وجه باندي غیر منصرف دئ، نو ځکه پر ده باندي تنوین مقدر وي.

(۲) د یا د مناسبت په وجه د ده پر آخر کسره راځي ځکه دا په اصل کي "غُلَامِيْ" وو بیا یاء حذف سوه پر میم باندي کسره پاته سوه. (الموجز في قواعد اللغة العربية)

فعل په لغت کې حدث او کار ته ویل کیږي. په اصطلاح کې دا یوه کلمه ده چې دلالت کوي پر خپله معنی او مقترنه وي په یوه د درو زمانو پوري (۱) لکه: "ضَرَبَ".

## د فعل علامات:

د فعل یویشت (۲۱) علامې دي:

۱. حروف اَتَین دي، لکه: "یَضْرِبُ، تَضْرِبُ، اَضْرِبُ، نَضْرِبُ".

۲. حرف قَد دئ (۲) لکه: "قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ".

۳. سین دئ (۳) لکه: "سَیَعْلَمُوْنَ".

۴. سوف دئ، لکه: "سَوْفَ تَعْلَمُوْنَ".

۵. حروف جوازم دي، لکه: "لَمْ یَضْرِبْ".

او حروف جوازم شپږ (٦) دي: اِنْ، وَلَمْ، لَمَّا، وَلَامِ امر، لَاءِ نهی.

٦. حروف نواصب دي، لکه: "لَن یَضْرِبَ".

او حروف نواصب څلور دي: اَنَ، لَنْ، کَیْ، اِذَنْ.

۷. امر دئ، لکه: "اِضْرِبْ".

۸. نهي دئ لکه: "لَاتَضْرِبْ".

۹. لا نافیه دئ، لکه: "لَایَضْرِبُ".

(۱) درې زمانې (۱) ماضي. (۲) حال. (۳) استقبال.

(۲) حرف "قَدْ" د تقریب فائده ورکوي چې کله د ده مدخول ماضي وي، لکه: "قَدْ کَانَ". او د تقلیل فائده ورکوي چې کله د ده مدخول فعل مضارع وي، لکه: "قَدْ یَضْرِبُ" او کله کله د تحقیق فائده ورکوي خواه مدخول یې ماضي وي او که مضارع لکه: "قَدْ نَرٰی تَقَلُّبَ".

(۳) "سین" د استقبال قریب دپاره راځي او دَی پر اووه قسمه دئ، (۱) طلب. (۲) تحقیق. (۳) تحویل (۴) استقبال. (۵) زیادت. (٦) اتصاف (۷) سکته صرف دغه آخرنی قسم په اسم پورې خاص دئ، باقي ټوله په فعل پورې خاص دي.(همع الهوامع)

۱۰. نون ثقیله دئ، لکه: "اِضْرِبَنَّ".

۱۱. نون خفیفه دئ، لکه: "اِضْرِبَنْ".

## شپږمه خبره:

۱۲. مبني بر فتحه وي، لکه: "ضَرَبَ، دَحْرَجَ".

۱۳. الف ضمیري دئ، لکه: "ضَرَبَا".

۱۴. واو ضمیري دئ، لکه: "ضَرَبُوا".

۱۵. تاء ساکنه مطوله دهٔ، لکه: "ضَرَبَتْ".

۱٦. نون ضمیري دئ، لکه: "ضَرَبْنَ".

۱۷. تاء متحرکه مطوله ده، لکه: "ضَرَبْتَ".

۱۸. تُمَا ضمیر دئ، لکه: "ضَرَبْتُمَا".

۱۹. تُمْ ضمیر دئ، لکه: "ضَرَبْتُمْ".

۲۰. تُنَّ ضمیر دئ، لکه: "ضَرَبْتُنَّ".

۲۱. نَا ضمیر دئ، لکه: "ضَرَبْنَا".

د حرف تعریف:

حرف په لغت کي و طرف ته وایي او په اصطلاح کي: دا یوه کلمه ده چي دلالت نه کوي پر خپله معنٰی باندي بلاضم د کلمې اُخرى لکه: "مِنْ و اِلٰى".

د حرف علامه داده: چي د اسم او فعل علامې نه وي پکښې هغه حرف دئ.

## جملې:

| عنوان | مفرد، مرکب | مفید، غیر مفید | خبریه، انشائیه | اسمیه، فعلیه |
|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ وَاحِدٌ | مرکب | مفید | خبریه | اسمیه |
| مُحَمَّدٌ رَسُوْلٌ | مرکب | مفید | خبریه | اسمیه |
| دَرَسَ خَالِدٌ | مرکب | مفید | خبریه | فعلیه |

| عنوان | مفرد، مرکب | مفيد، غير مفيد | خبريه، انشائيه | اسميه، فعليه |
|---|---|---|---|---|
| اَلْقُرْآنُ كِتَابُنَا | مرکب | مفيد وغير مفيد جز اضافي | خبريه | اسميه |
| وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ حَكِيْمٌ | مرکب | مفيد | خبريه | اسميه |
| اَلْمَدْرَسَةُ جَمِيْلَةٌ | مرکب | مفيد | خبريه | اسميه |
| قَضٰى زَيْدٌ مِنْهَا وَطَرًا | مرکب | مفيد | خبريه | فعليه |
| شَرِبَتْ لَيْلٰى | مرکب | مفيد | خبريه | فعليه |
| نَامَ مَجْنُوْنٌ | مرکب | مفيد | خبريه | فعليه |
| تَهَجَّدَ الطَّالِبُ | مرکب | مفيد | خبريه | فعليه |
| اَلْجَنَّةُ حَقٌّ | مرکب | مفيد | خبريه | اسميه |
| اَلْاِنْسَانُ حَائِرٌ | مرکب | مفيد | خبريه | اسميه |
| اَلنَّارُ حَقٌّ | مرکب | مفيد | خبريه | اسميه |
| ضَرَبَ زَيْدٌ | مرکب | مفيد | خبريه | اسميه |
| صَلّٰى بَكْرٌ | مرکب | مفيد | خبريه | فعليه |

## التمرين:

"هُمُ الْفَائِزُونَ.. يُؤْمِنُونَ بِالْغَيْبِ.. أَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ.. قَالَتْ نَمْلَةٌ.. اَللّٰهُ الصَّمَدُ.. وَوَصَّيْنَا الْإِنْسَانَ.. لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ.. أَنَا نَذِيرٌ مُبِينٌ.. يَنْصُرُ مَنْ يَشَاءُ.. هُمْ غَافِلُونَ.. ظَهَرَ الْفَسَادُ.. وَأَنْهَارٌ مِنْ عَسَلٍ مُصَفًّى.. يَدُ اللّٰهِ فَوْقَ أَيْدِيهِمْ.. وَأَعْتَدْنَا لِلْكَافِرِينَ سَعِيرًا.. سَيَقُولُ الْمُخَلَّفُونَ".

اما مرکب لفظی باشد الخ:............الی قوله بدانکه جمله خبریه آن است.

## ترجمه:

لېکن مرکب هغه لفظ ته ویل کیږي چي د دوو یا تر دوو زیاتو کلمو څخه جوړ سوی وي، مثلاً (عَبْدُاللّٰهِ، اَللّٰهُ مَوْجُوْدٌ، وغیره) بیا مرکب پر دوه قسمه دئ: (۱) مرکب مفید (۲) مرکب غیر مفید. مرکب مفید هغه ته ویل کیږي چي کله خبري کونکی خبره وکړي او خاموشه سي نو اورېدونکی د هغه څخه یو خبر یا طلب معلوم کړي. (د مرکب غیر مفید تعریف وروسته راځي) مرکب مفید ته جمله هم ویل کیږي او کلام هم (چونکه د مرکب مفید مشهوره نوم جمله دئ، نو ځکه مصنف رحمه الله علیه د

مرکب مفيد پر ځای په هر مقام کی د جملې لفظ استعمالوي) جمله پر دوه قسمه ده (۱) خبريه، (۲) انشائيه.

## الدرس الخامس:

د نن د سبقه خلاصه پنځه (۵) خبري دي:

### اوله خبره:

د لفظ مستعمل دوهم قسم مرکب دئ:

او د مرکب لپاره درې شيان دي:

۱. تعريف.
۲. تقسيم.
۳. نومونه.

د مرکب تعريف (۱):

مرکب هغه لفظ دئ، چي د دوو يا تر دوو زياتو کلمو څخه جوړ سوی وي پر دوو يا تر دوو زياتو معناوو باندي دلالت کوي.

د مرکب تقسيم:

مرکب پر دوه قسمه دئ:

۱. مفيد.
۲. غير مفيد.

---

(۱) عقلاً د ترکيب شپږ (٦) صورتونه جوړيږي (۱) اسم و اسم. (۲) فعل و اسم. (۳) فعل وفعل (۴) فعل و حرف (۵) حرف و حرف. (٦) اسم و حرف په اول او دوهم صورت کي د مرکب څخه جمله جوړيږي او په باقي څلورو صورتو کي جمله نه جوړيږي.

سوال: د مرکب تعريف جامع خپلو افرادو لره نه دئ ځکه لفظ د "عبدالله" چي عَلم سي پر ذات معين باندي دلالت کوي، يعني جزء د لفظ يې پر جزء د معنی دلالت نه کوي، مفرد دئ، حالانکه په ده کي علامه د مرکب موجوده ده چي هغه اجراء د اعرابينو يو پر مضاف او بل پر مضاف اليه دئ.

جواب: په اعلامو جمع د علم (نوم) کي کله کله د وضع سابقي د لحاظ کولو په وجه باندي دوه اعرابه جاري کيږي او لفظ "عبدالله" چونکه د علميت څخه مخکي مرکب اضافي وو نو ځکه پر ده باندي د اضافت د لحاظه دوه اعرابه جاري سوي دي، نه د مرکب والي په وجه باندي. (جامي)

د مرکب غیر مفید تعریف وروسته راځي.

مرکب مفید هغه مرکب ته وايي چي قائل پر هغه سکوت وکړي سامع ته خبر په جمله خبریه کي او طلب په جمله انشائیه کي معلوم سي.

د مرکب مفید نومونه:

د مرکب مفید پنځه نومونه دي:

۱. مرکب مفید.
۲. مرکب تام یعني (اسناد تام).
۳. مرکب اسنادي.
۴. جمله [1].
۵. کلام.

پس جمله بر دو قسم است خبریہ وانشائیہ فصل بدانکه جمله خبریه آن است الخ: : ................ الی قوله دوم انکه جزء اول.

## ترجمه:

وروسته جمله پر دوه قسمه ده: خبریه و انشائیه.

پوه سه! چي جمله خبریه و هغه جملې ته ویل کیږي چي د هغه قائل (ادا کونکي) (د هغه جملې په وجه) په صدق او کذب سره موصوفه کېدای سي. او جمله خبریه پر دوه قسمه ده، اول دا چي جزء اول یې اسم وي نو دغي جملې ته جمله اسمیه ویل کیږي. لکه: "زَيْدٌ عَالِمٌ" [2] یعني زید عالم (پوه) دئ. د دې جزء اول مسند الیه دئ او هغه ته مبتداء ویل کیږي، دوهم جزء یې مسند دئ و هغه ته خبر ویل کیږي.

---

(۱) عند البعض جمله او کلام مترادف دي. او د دوی په مینځ کي نسبت د مساواة دئ. لیکن "عند النحاة" د دوی په منځ کي نسبت د عموم خصوص مطلق دئ. کلام اخص مطلق دئ، او جمله اعم مطلق ده. ځکه د دوی په نزد په کلام کي نسبت مقصودي شرط دئ، او په جمله کي شرط نه دئ، خواه که نسبت مقصودي وي او که غیر مقصودي وي، نو هر کلام جمله ده او هره جمله کلام نه دئ. (مغنی اللبیب)

(۲) "زَيْدٌ عَالِمٌ" "زَيْدٌ" مبتدا، "عَالِمٌ" خبر جمله اسمیه خبریه.

## دوهمه خبره:

جمله پر دوه قسمه ده:

۱. خبريه.
۲. انشائيه.

جمله خبريه: هغه جملې ته وايي چي قائل (ويونکی) يې په صدق (رشتيا) او کذب (دروغو) سره موصوفه کېدای سي (۱) لکه "زَيْدٌ قَائِمٌ".

## فائده:

ځکه چي په جمله خبريه کي حکايت (واقعه) د محکی عنه (د کم شي څخه چي حکايت کيږي او واقعه يې بيانيږي) څخه کيږي. که حکايت د محکی عنه سره برابر وو بيا قائل په صدق سره موصوف کيږي. که حکايت د محکی عنه سره نه وو برابر بيا قائل په کذب سره موصوف کيږي.

د جملې خبريې اقسام:

جمله خبريه پر څلور قسمه ده:

۱. اسميه.
۲. فعليه.
۳. ظرفيه.
۴. شرطيه.

## دريمه خبره:

د جملې اسميه تعريف:

---

(۱) په جمله خبريه کي د قائل د صدق او کذب فيصله و نفس کلام ته په کتلو سره کيږي. قطع نظر د واقع او امر خارج څخه کچيري په نفس کلام کي د قائل په صدق او کذب سره موصوفه کول صحيح وو نو هغه جمله خبريه ده خواه که په واقع او نفس الامر کي هغه جمله صادقه وي او که کاذبه وي. نو ځکه بيا اعتراض په "اَللهُ وَاحِدٌ. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ. اَلْاَرْضُ فَوْقَنَا . وَالسَّمَاءُ تَحْتَنَا" سره نه وارديږي. (نصر الخبير)

جمله اسمیه هغه جمله ده ([1]) چي د اجزاءوو اصلیه وو څخه یې اول جزء اسم وي او اجزاء اصلیه د جملې مسند او مسند الیه دي لکه: "زَیْدٌ عَالِمٌ" (زید عالم دئ) یا لکه "اَلشَّمْسُ طَالِعَةٌ" (لمر را ختونکی دئ).

## فائده:

د جملې اسمیې اول جزء مسند الیه دئ چي مبتداء ورته ویل کیږي او دوهم جزء یې مسند دئ چي خبر ورته ویل کیږي.
د جملې اسمیې د جزء اول نور نومونه هم سته: (۱) مبتداء (۲) مسند الیه (۳) محکوم علیه (۴) مخبر عنه (۵) موضوع (٦) مقدم مشهور ترکیبي نوم یې "مبتداء" ده ([2]).
د جملې اسمیې د دوهم جزء نومونه: (۱) خبر (۲) مسند. (۳) مسند به (۴) محکوم (۵) محکوم به (٦) مخبر (۷) مخبر به (۸) حکم (۹) محمول (۱۰) لي مشهور ترکیبي نوم یې خبر دئ.

## څلور مه خبره:

په جمله اسمیه کي د مبتداء او خبر د پېژندلو طریقه او علامات:
۱. ضمیر مرفوع منفصل همېشه مبتداء واقع کیږي د ده څخه وروسته لفظ خبر راځي کله چي دَی د فصل او تاکید دپاره نه وي لکه: "هُوَاللهُ" یا "اَنَازَیْدٌ".

---

([1]) جمله اسمیه پر څلور قسمه ده (۱) کله مصدره په مبتداء سره وي، مثال یې لکه: "هُوَ الْاَوَّلُ وَالْاٰخِرُ" (۲) کله مصدره په حروف مشبه بالفعل سره وي مثال یې لکه: "اِنَّ اللهَ عَلِیْمٌ حَکِیْمٌ". (۳) کله مصدره په "مَا" او "لَا" مشبهتین بلیس سره وي، مثال یې لکه: "مَا هٰذَا بَشَرًا" "لَا رَجُلٌ اَفْضَلَ مِنْکَ" (۴) کله مصدره په لا نفي جنس سره وئ، مثال یې لکه: "لَا رَجُلَ فِيْ الدَّارِ". (العلامات النحویه)

([2]) عمومًا مبتداء او خبر په حالت رفعي کي وي، کله کله مبتداء یوه وي، او خبرونه یې متعدد وي، لکه: "اَللهُ سَمِیْعٌ بَصِیْرٌ" او کله کله مبتداء متعدده وي او خبر یې یو وي، لکه: "مُحَمَّدٌ و اَحْمَدُ خَائِفَانِ" او بعض وخت مبتداء او خبر دواړه مفرد وي، لکه: "خَالِدٌ مُتَعَلِّمٌ" او کله دواړه مرکب وي، لکه: "بَیْتُ اللهِ قِبْلَتُنَا" او کله یو مفرد بل مرکب وي، لکه "رَسُوْلُ اللهِ شَفِیْقٌ". (نصر الخبیر)

۲. د كلام په شروع كي د الف لام والا اسم چي كله راسي او د ده څخه وروسته بغير الف لام والا اسم وي يا فعل وي يا جار و مجرور وي نو اول مبتداء او دوهم خبر واقع كيږي لكه: "اَللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ" "اَلْبَيْعُ يَنْعَقِدُ" "اَلشِّرْكَةُ عَلٰى ضَرْبَيْنِ".

۳. چي كله د اسم اشاره څخه وروسته بغير الف لام والا اسم راسي نو اسم اشاره مبتداء دا وروسته لفظ خبر واقع كيږي (بِشَرْطِ صِحَّةِ الْمَعْنٰى) لكه: "هٰذَا ذِكْرٌ" "هٰذَا كِتَابٌ".

۴. د جزاء په مقام كي د "فاء" جزائيه څخه وروسته او د "اِنَّ، اَنَّ" څخه وروسته متصل او د "لَيْسَ" څخه وروسته او د "استئناف" د علامې څخه وروسته چي جار و مجرور راسي نو جار و مجرور خبر مقدم وي او وروسته لفظ يې مبتداء يا اسم مؤخر وي لكه: "مَنْ جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهٗ عَشْرُ اَمْثَالِهَا" "اِنَّ مِنَ الْبَيَانِ لَسِحْرًا" "لَيْسَ فِي الْوَدِيِّ وَ الْمَذِيِّ غُسْلٌ" "وَفِي اللِّسَانِ الدِّيَةُ" "وفِي شَعْرِ الرَّأْسِ الدِّيَةُ".

۵. چي كله يو مبهم جار او مجرور يا لفظ د حرف يا لفظ د فعل ذكر سي او مقصود د دوى څخه لفظ وي نه معنٰى او د دوى څخه په وروستو الفاظو باندي د دوى تفسير يا اصطلاحي معنٰى يا د دوى معرفت ذكر سي نو دوى مبتداء او وروسته الفاظ يې خبر واقع كيږي لكه: "فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مُنْقَطِعُ الْغُزَّاةِ" "اِنْ لِلشَّرْطِ وَالْجَزَاءِ" "ضَرَبَ صِيْغَةُ مَاضٍ".

٦. په كتابو كي چي څومره عنوانات دي عام طور دوى خبر واقع كيږي د مبتداء محذوفي دپاره يا مبتداء واقع كيږي د خبر محذوف دپاره. لكه: "كِتَابُ الصَّلٰوةِ" "هٰذَا كِتَابُ الصَّلٰوةِ" يا "كِتَابُ الصَّلٰوةِ هٰذَا".

۷. د "عَلَم" څخه وروسته چي كله بغير الف لام والا اسم راسي خواه كه معرفه وي او كه نكره وي اول مبتداء دوهم خبر وي، لكه: "مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ" "مُحَمَّدٌ رَسُوْلٌ".

## پنځمه خبره:

۸. کله چي د یو شي تقسیم وي او وروسته یې تفصیل وي نو په تفصیل کي هر لفظ خبر وي د مبتداء (¹) محذوفي دپاره لکه: "اَلاِسْمُ عَلٰى نَوْعَيْنِ: مُعْرَبٌ وَ مَبْنِيٌّ: اَىْ اَحَدُهُمَا مُعْرَبٌ وَ ثَانِيْهُمَا مَبْنِيٌّ".

۹. "مُعَرَّفَات" (د کمو شیانو چي تعریف کیږي) ټول‌ه مبتداء واقع کیږي او مکمل تعریفونه یې خبر واقع کیږي لکه: "اَلْكَلِمَةُ (مُعَرَّف) لَفْظٌ وُضِعَ لِمَعْنًى مُفْرَدٍ (تعریف)" "اَلْكَلَامُ" مَا تَضَمَّنَ الْكَلِمَتَيْنِ بِالْاِسْنَادِ".

۱۰. د "اِنَّمَا" څخه وروسته لفظ مبتداء وي او مابعد یې خبر وي، لکه: "اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ" د "اَمَّا" څخه وروسته اسم مبتداء قائم مقام د شرط وي، او د فاء څخه وروسته اسم خبر قائم مقام د جزاء وي په دې شرط چي د "اَمَّا" څخه وروسته اسم به ظرف یعني "بَعْدُ" و غیره نه وي، لکه: "اَمَّا الْمُقَدِّمَةُ فَفِي الْمَبَادِيْ".

۱۱. د "نَحْوُ" لفظ د ماقبل مبتداء محذوفي دپاره خبر او ما بعد ته مضاف وي، او د ده مبتداء "مِثَالُهُ یا مِثَالُهَا" محذوفه را وزي لکه: "نَحْوُ قَوْلِهٖ تَعَالٰى اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ اَىْ مِثَالُهُ نَحْوُ قَوْلِهٖ تَعَالٰى".

---

(¹) د "مبتداء" او "خبر" په مینځ کي مطابقت په پنځو شیانو کي ضروري دئ او په هر ترکیب کي به په یوه وخت کي دوه شیان موجود وي، لېکن د مطابقت دپاره نه (۹) شرطونه دي، (۱) "مبتداء" او "خبر" به دواړه اسم ظاهر وي، احترازي مثال یې لکه: "هِيَ اِسْمٌ. وَ فِعْلٌ و حَرْفٌ" (۲) خبر به مشتق وي، احترازي مثال یې لکه: "اَلْكَلِمَةُ لَفْظٌ" (۳) خبر به حامل وي "لضمیر المبتداء" احترازي مثال "زَيْنَبُ وَ سَقَرُ و مَاهُ و جُوْرُ مُمْتَنِعٌ مِنَ الصَّرْفِ". (۴) خبر به اسم تفضیل مستعمل په "مِنْ" سره نه وي، احترازي مثال یې لکه: "اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ". (۵) خبر به د الفاظو مشترکوو بین المذکر او المؤنث څخه نه وي، احترازي مثال یې لکه: "اَلْاِمْرَاَةُ جَرِيْحٌ صَبُوْرٌ". (٦) خبر به د الفاظو مختصوو باالمؤنث څخه نه وي، احترازي مثال یې لکه: "اَلْاِمْرَءَةُ طَالِقٌ حَائِضٌ" (۷) خبر به د اسماء متوغله في الابهام څخه نه وي یعني هغه اسماء چي د اضافت الى المعرفې باوجوده نه معرفه کیږي لکه: "غَيْرُ. شِبْهُ. مِثْلُ. قَبْلُ. بَعْدُ. يَمِيْنٌ. شِمَالٌ. فَوْقَ. او تَحْتَ". (۸) خبر به صیغه د مبالغې نه وي احترازي مثال لکه: "زَيْدٌ ظَلَّامٌ". (۹) د خبر فاعل به اسم ظاهر نه وي، احترازي مثال لکه: "هٰذِهٖ اِمْرَءَةٌ قَائِمٌ اَبُوْهَا" ځکه په دې وخت کي رعایت د فاعل کیږي. (کاشفه شرح کافیه)

۱۲. د مثال په شروع کي چي د "کاف" لفظ راسي هغه د "ثَبَتَ" یا "ثَابِتٌ" پوري تعلق نیسي خبر جوړيږي د مبتداء محذوفي "مِثَالُهٗ" یا د "مِثَالُهَا" دپاره لکه: "کَا الخَلِّ: اَیْ مِثَالُهٗ کَا الخَلِّ".

۱۳. د مبتداء وروسته چي "اَنْ" راسي نو دَی سره د فعل په تاویل د مصدر سره خبر جوړيږي د مبتداء دپاره لکه: "اَفْضَلُ الصَّدَقَةِ اَنْ تُشْبِعَ کَبِدًا جَائِعًا".

۱۴. کله چي د کلام په شروع کي مضاف او مضاف الیه راسي او د دوی څخه وروسته بغیر د الف لام والا اسم وي، نو مضاف او مضاف الیه مبتداء او وروسته اسم خبر وي، لکه: "صَدَقَةُ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ".

## جملي:

| عنوان | مفرد، مرکب | مفید، غیر مفید | خبریہ، انشائیہ | اسمیہ، فعلیہ |
|---|---|---|---|---|
| اَلْعِلْمُ نُوْرٌ | مرکب | مفید | خبریہ | اسمیہ |
| قَرَئْتُ الْکِتَابَ | مرکب | مفید | خبریہ | فعلیہ |
| وَاللّٰهِ اُجَاهِدُ فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ | مرکب | مفید | انشائیہ | اسمیہ |
| اَللّٰهُ یُطْعِمُنِیْ | مرکب | مفید | خبریہ | اسمیہ |
| اَللّٰهُ اَکْبَرُ | مرکب | مفید | خبریہ | اسمیہ |
| وَاللّٰهُ قَدِیْرٌ | مرکب | مفید | خبریہ | اسمیہ |
| تَرَکْتُ الْجُبْنَ | مرکب | مفید | خبریہ | فعلیہ |
| اَلشَّمْسُ طَالِعَةٌ | مرکب | مفید | خبریہ | اسمیہ |
| یَا اَیُّهَا النَّبِیُّ | مرکب | مفید | انشائیہ | اسمیہ |
| اَلْمَاءُ بَارِدٌ | مرکب | مفید | خبریہ | اسمیہ |

## التمرين:

"اَلطَّعَامُ لَذِیْذٌ.، عَبْدُاللّٰهِ مُتَعَلِّمٌ.، اٰمَنْتُ بِاللّٰهِ.، اَلسَّمَاءُ مُمْطِرَةٌ.، اَلْمَسْجِدُ وَاسِعٌ.، اَلرِّجَالُ قَوَّامُوْنَ.، لَیْتَ الشَّبَابَ یَعُوْدُ. اَلْاِنْسَانُ جَمِیْلٌ".

دوم آنکہ جزء اولش فعل باشد الخ: ............ الی قولہ بدانکہ جملہ انشائیہ.

## ترجمه:

دوهم هغه جمله ده: چي د هغه جزء اول فعل وي، هغه ته جمله فعليه ويل کيږي لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ" (١) د دې جزء اول مسند دئ هغه ته فعل ويل کيږي او دوهم جزء يې مسند اليه دئ، هغه ته فاعل ويل کيږي.
او پوه سه! چي مسند محکوم به دئ او مسند اليه ذات دئ چي پر ده باندي حکم کيږي، (او د دريو کلمو) يعني اسم، فعل، حرف څخه "اسم" مسند او مسند اليه دواړه راتلای سي او "فعل" مسند راتلای سي مسند اليه نسي راتلای او "حرف" نه مسند راتلای سي نه مسند اليه.

# الدرس السادس:

د نن د سبقه خلاصه اووه (٧) خبري دي:

## اوله خبره:

د جملې فعليه تعريف:
د جملې خبريه دوهم قسم جمله فعليه ده (٢): جمله فعليه هغه جمله ده چي د اجزاء اصليه وو څخه يې اول جزء فعل وي، لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ" (زيد وهل کړي وه) يا "صَلّٰى حَامِدٌ" (حامد لمونځ کړی وو).

---

(١) "ضَرَبَ زَيْدٌ" "ضَرَبَ" فعل "زَيْدٌ" فاعل جمله فعليه خبريه.
(٢) **فائده:**
د جملې "اسميت" او "فعليت" په خبريه پوري نه دئ خاص بلکه جمله انشائيه هم اسميه او فعليه راتلای سي.
**فائده:**
د جملې اسميې او فعليې د جزء اول د اعتبار کولو دا مطلب نه دئ چي د ټولو څخه مخکي کم لفظ آدا سي نو ته به هغه جزء اول بولې ځکه کله کله حرف جزء اول واقع سي نو بايد جمله حرفيه وبلل سي لېکن دا جمله نسته بلکه کچيري د يوې جملې په شروع کي حرف وي، نو د حرف څخه وروسته "لفظ" ته په کتلو سره د جملې د اسميت او فعليت فيصله کيږي. لکه: "مَا قَامَ زَيْدٌ" "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ". (نصر الخير)

## فائده:

د جملې فعليه اول جزء مسند دئ چي فعل ورته ويل کيږي او دوهم جزء يې مسند اليه دئ، چي فاعل ورته ويل کيږي. او د جملې فعليه د اول جزء هغه نومونه دي، کم چي د جملې اسميه د دوهم جزء دي، او د دوهم جزء يې هغه نومونه دي کم چي د جملې اسميه د اول جزء دي، ماسوای د يو څو نومو څخه.

د جملې فعليې اقسام:

جمله فعليه پر دوه قسمه ده: اول هغه چي "مُصَدَّره" (شروع سوې) په افعالو مطلقوو سره وي دوهم هغه چي "مُصَدَّره" بغير د افعالو مطلقوو سره وي.

او "مُصَدَّره" په افعالو مطلقوو سره بيا پر دوه قسمه ده:

۱. کله "مُصَدَّره" په فعل معلوم سره وي لکه "ضَرَبَ زَيْدٌ".
۲. او کله "مُصَدَّره" په فعل مجهول سره وي لکه "ضُرِبَ زَيْدٌ".

دوهم قسم د جملې فعليه چي "مُصَدَّره" په غير د افعال مطلقوو سره وي، هغه پر پنځه قسمه ده:

۱. کله "مُصَدَّره" په افعال قلوب سره وي لکه: "وَلَا تَحْسَبَنَّ اللهَ غَافِلًا عَمَّا يَعْمَلُ الظَّالِمُوْنَ".
۲. کله "مُصَدَّره" په افعال ناقصه وو سره وي لکه: "وَكَانَ اللهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا".
۳. کله "مُصَدَّره" په افعال مقاربه وو سره وي لکه: "عَسٰى رَبُّنَا اَنْ يُّبْدِلَنَا خَيْرًا مِّنْهَا".
۴. او کله "مُصَدَّره" په افعال مدح و ذم سره وي لکه: "فَنِعْمَ الْمَوْلٰى وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ".
۵. او کله "مُصَدَّره" په افعال تعجب سره وي لکه: "اَسْمِعْ بِهِمْ وَاَبْصِرْ".

## دوهمه خبره:

د جملې ظرفيې تعريف:

جمله ظرفيه هغه جمله ده چي د اجزاء اصليه وو څخه يې اول جزء ظرف وي، لکه: "عِنْدِيْ دَارٌ" "فِيْ الدَّارِ رَجُلٌ". ددې جملو درې قسمه ترکيب کېدای سي:

۱. اول ترکیب: "عِنْدِیْ" ظرف مضاف سره د خپل مضاف اليه دا به تعلق تر "ثَابِتٌ" پوري ونيسي، "ثَابِتٌ" صيغه د اسم فاعل سره دخپل فاعله چي د "هُوَ" ضمير دئ سره دخپل "مُتَعَلِّقْ" چي "عِنْدِيْ" دئ خبر مقدم، "رَجُلٌ" دا به مبتداء مؤخره سي، خبر مقدم سره دمبتداء مؤخري دا به جمله اسميه سي.
۲. دوهم ترکیب: "عِنْدِیْ" ظرف مضاف سره د خپل مضاف اليه دا به تعلق تر "ثَبَتَ" پوري ونيسي، "رَجُلٌ" دا به فاعل د "ثَبَتَ" سي، "ثَبَتَ" فعل سره دخپله فاعله چي "رَجُلٌ" دئ سره دخپله متعلقه چي "عِنْدِيْ" دئ دا به جمله فعليه سي.
۳. دريم ترکیب: "عِنْدِی" مضاف سره د خپل مضاف اليه دا به ظرف قائم مقام دفعل سي، "رَجُلٌ" دا به يې فاعل سي، ظرف سره دخپله فاعله دا به جمله ظرفيه سي. په "فِي الدَّارِ رَجُلٌ" کي بعينه داغه دري (۳) ترکيبونه کيږي.

## دريمه خبره:

د جار او مجرور د ترکيب طريقه او د ظرف اقسام:

ظرف پر دوه قسمه دئ:

۱. ظرف حقيقي يعني زمان او مکان.
۲. ظرف مجازي يعني جار او مجرور (۱).

ظرف مجازي (او داغه رنګه بعضي ظروف حقيقي لکه "قَبْلُ" و "بَعْدُ" و غيره) پر دوه قسمه دي:

۱. ظرف لغو (۲).
۲. ظرف مستقر (۱).

(۱) جار او مجرور ته ځکه ظرف وايي: ظرف په معنی د برتن او لوښي سره دئ، نو د حرف جر مدخول هم د فعل او شبه فعل د معنی دپاره په منزله د برتن او لوښي وي. لکه: "خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ".

(۲) ظرف لغو ته ځکه ظرف لغو وايي: لغو په معنی د محروم سره دئ نو دَی هم د خپل عامل د ځای نيولو څخه محروم دئ. ځکه د ده عامل په لفظ کي ذکر وي. (العلامات النحوية)

ظرف لغو: هغه ظرف دئ چي د هغه متعلق په لفظ کي ذکر سوى وي خواه که د افعال عامه وو څخه وي او که د افعال خاصه وو څخه وي.

د ظرف لغو د پېژندلو طريقه:

کله چي د فعل او اسم فاعل، اسم مفعول، اسم تفضيل، صفت مشبه، او د مصدر څخه وروسته جار او مجرور راسي نو دغه جار او مجرور په دغه مذکوره شيانو پوري تعلق نيسي (۲) لکه: "خَتَمَ اللهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ" "اِنِّي جَاعِلٌ فِي الْاَرْضِ خَلِيْفَةً".

## څلورمه خبره:

د ظرف مستقر تعريف:

ظرف مستقر هغه ظرف دئ چي د هغه متعلق محذوف وي، خواه که د افعال عامه وو (۳) څخه وي او که د افعال خاصه وو څخه وي.

---

(۱) ظرف مستقر ته ځکه ظرف مستقر وايي مستقر د استقرار څخه دئ په معنى د قرار نيولو سره نو دَى هم په لفظ کي د خپل عامل ځاى نيسي ځکه ده عامل په لفظ کي محذوف وي.

(۲) کچيري د جار او مجرور څخه مخکي متعدد عوامل يعني فعل، اسم فاعل او اسم مفعول و غيره ذکر وي نو بيا چي د جار او مجرور معنى د کم عامل سره په تعلق نيولو سره صحيح کيږي نو دَى په هغه پوري تعلق نيسي لکه: "قَدْ نَرٰى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَآءِ".

(۳) د افعال عامه وو تعريف:

افعال عامه "مَا لَا يَخْلُوْا عَنْهُ فِعْلٌ" يعني چي د دوى څخه يو فعل هم خالي نه وي، افعال عامه اته دي، څلور مشهور څلور غير مشهور.

مشهوره: افعال عامه چهار اند نزد ارباب عقول........ کون است وجود است ثبوت، حصول.

غير مشهوره: تلبس، لصوق، لسوق، لذوق، څلور سره په معنى د ملاوېدلو راځي.

د افعال خاصه وو تعريف:

افعال خاصه "مَا يَخْلُوْا عَنْهُ فِعْلٌ" يعني چي د دوى څخه يو فعل خالي وي، د دې اتو افعال عامه وو څخه ما سوا باقي ټوله افعال خاصه دي. ځکه چي د دې اتو څخه علاوه چي څومره افعال دي، هغه خامخا د يو فعل نه يو فعل څخه خالي وي، لکه: "ضَرَبَ و نَصَرَ" مثلا د "اَكَلَ" او "شَرِبَ" والا فعل څخه خالي دي. ليکن د افعال عامه وو څخه يو فعل هم نه دئ خالي، مثلا "قِرَاءَت" وينا يو فعل دئ په دې کي څلور سره افعال کون، ثبوت، وجود، او حصول موجود دي ځکه وينا ده دا "کون" دئ. وينا ثابته ده نو دا "ثبوت" دئ. وينا حاصله ده نو دا "حصول" دئ. وينا موجوده ده نو دا "وجود" دئ. (العلامات النحويه)

د ظرف مستقر مقامات:
ظرف مستقر په څلورو ځايو کي واقع کيږي (۱) په ځای کي د خبر (۲) صله (۳) صفت (۴) او حال.
۱. مقام خبر: که چيري ظرف مستقر د خبر په مقام کي وو نو عند البصريين د ده متعلق فعل راوځي ځکه دی د عامل پر ځای واقع سوی دئ، او اصل په عمل کي فعل دئ، لکه: "اَلْحَمْدُلِلّٰهِ" "اَیْ ثَبَتَ لِلّٰهِ".
عند الکوفيين د ده متعلق اسم راوزي ځکه دی د خبر په مقام کي واقع سوی دئ، او اصل په خبر کي افراد دئ نو اسم هم مفرد وي نه جمله لکه: "اَلْحَمْدُلِلّٰهِ" "اَیْ ثَابِتٌ لِلّٰهِ".
۲. مقام صله: که چيري ظرف مستقر د صلې په مقام کي واقع سي نو بيا دده متعلق فعل راوځي ځکه صله جمله وي، او فعل هم سره د خپله فاعله جمله جوړيږي لکه: "وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِكُمْ" "اَیْ ثَبَتُوْا مِنْ قَبْلِكُمْ".
۳. مقام صفت: که چيري ظرف مستقر د صفت په مقام کي واقع سي نو عند الاکثر د ده متعلق فعل دئ، عند البعض اسم دئ لکه: "عَلٰی مَعْنًی فِيْ نَفْسِهَا" "اَیْ ثَبَتَ اَوْ ثَابِتٌ فِيْ نَفْسِهَا".
۴. مقام حال: که چيري ظرف مستقر د حال په مقام کي واقع سي نو عند الاکثر د ده متعلق فعل دئ، او عند البعض اسم دئ لکه: "فَاللَّفْظِيَّةُ مِنْهَا عَلٰی نَوْعَيْنِ" "اَیْ ثَبَتَتْ اَوْ ثَابِتَةً مِنْهَا".
د جملې شرطيې تعريف:
څلورم قسم د جملې خبريې جمله شرطيه ده، جمله شرطيه [1]: هغه جمله ده چي دا جوړه د دوو جملو څخه وي، د اولي جملې مسند او مسند اليه ته شرط وايي: او د دوهمي جملې مسند او مسند اليه ته جزاء وايي عام طور د جزاء والا فعل مُعَلَّقْ وي، د شرط والا فعل سره لکه: "اِنْ دَخَلْتِ الدَّارَ فَاَنْتِ طَالِقٌ" او کله کله د شرط والا فعل مُعَلَّقْ وي په جزاء والا فعل پوري، لکه: "قُلْ اِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ" دلته د الله تعالی محبت مُعَلَّقْ او تړلی دئ د نبي کريم ﷺ د اتباع سره.

---

[1] عند البعض د جملې شرطيې حکم په جزاء کي وي، او شرط صرف قيد وي د جزاء د پاره لېکن عند الآخرين حکم د جزاء او شرط په منځ کي وي، نو ځکه د دې حضراتو په نزد باندي جمله شرطيه د جملې خبريې يو مستقل قسم دئ، نو په دې صورت کي دا د جملې انشائيې قسم نسي راتلای خواه که جزاء امر وي او که نهي و غيره وي.

په جمله شرطیه کي شرط دادی چي دا به مدخوله د حروف شرطیه وو یا د اسماء شرطیه وو وي، د حروف شرطیه وو او اسماء شرطیه وو تفصلي بحث وروسته راځي.

## پنځمه خبره:

د کلمه اعرابیه اقسام:

کلمه اعرابیه پر څلور قسمه ده: (۱) مسند الیه (۲) مسند (۳) فضله (۴) اداة.

د مسند الیه تعریف:

"مَاحُکِمَ عَلَیهِ بِشَیئٍ" او مسند الیه به همېشه اسم وي او حکم د مسند الیه همېشه رفع دَه یعني دی به همېشه مرفوع وي په دې شرط که چیري عوامل لفظیه نه وه پر داخل سوي.

مسند الیه په کلام کي او ه (۷) شیان را تلای سي:

۱. فاعل: لکه: په "ضَرَبَ زَیدٌ" کي "زَیدٌ".
۲. نائب فاعل: لکه: په "ضُرِبَ زَیدٌ" کي "زَیدٌ".
۳. مبتداء: لکه: په "زَیدٌ قَائِمٌ" کي "زَیدٌ".
۴. اسم د حروف مشبهة بالفعل: لکه: په "اِنَّ زَیدًا قَائِمٌ" کي "زَیدًا".
۵. اسم د افعال ناقصه وو: لکه: په "لَیسَ زَیدٌ قَائِمًا" کي "زَیدٌ".
۶. اسم د "مَا" و "لَا" المشبهتان بلیس: لکه: په "مَا زَیدٌ قَائِمًا" کي "زَیدٌ".
۷. اسم د "لَا" التي لنفی الجنس: لکه: په "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ" کي "رَجُلٌ".

## شپږمه خبره:

د مسند تعریف:

"مَاحُكِمَ بِهِ عَلَى الشَّيْئِ" او د مسند حکم دادی: که چیري اسم وي همېشه به مرفوع وي (۱) په دې شرط که عوامل لفظیه نه وه پر داخل سوي.
مسند په کلام کي اوه (۷) شیان واقع کیږي:
۱. فعل: لکه: په "ضَرَبَ زَيْدٌ" کي "ضَرَبَ".
۲. اسم فعل: لکه: په "هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوْعَدُوْنَ" کي "هَيْهَاتَ".
۳. خبر د مبتداء: لکه: په "زَيْدٌ قَائِمٌ" کي "قَائِمٌ".
۴. خبر د حروف مشبهة بالفعل: لکه: په "اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ" کي "قَائِمٌ".
۵. خبر د افعال ناقصه وو: لکه: په "لَيْسَ زَيْدٌ قَائِمًا" کي "قَائِمًا".
۶. خبر د "مَا" و "لَا" المشبهتان بليس: لکه: په "مَا زَيْدٌ قَائِمًا" کي "قَائِمًا".
۷. خبر د "لَا" التي لنفی الجنس: لکه: په "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ" کي "فِي الدَّارِ" په اعتبار د مُتَعَلَّقْ سره.

## اوومه خبره:

د فضله تعریف:
دریم شی په جمله کي فضله راځي، د فضله تعریف دادی: "مَا ذُكِرَتْ لِتَتْمِيْمِ مَعْنَى الْجُمْلَةِ".
د فضله حکم:
چي دئ به همېشه منصوب وي په دې شرط چي دی به مدخول د مضاف او حرف جر نه وي احترازي مثال، لکه: "كَتَبْتُ بِالْقَلَمِ" "رَاَيْتُ غُلَامَ زَيْدٍ".
د "اداة" تعریف:
ثلورم شئ په جمله کي اداة واقع کیږي او د "اداة" تعریف دادی: "هِيَ كَلِمَةٌ رَابِطَةٌ بَيْنَ جُزْاَيِ الْجُمْلَةِ اَوْ بَيْنَهُمَا وَ بَيْنَ الْفُضْلَةِ اَوْ بَيْنَ جُمْلَتَيْنِ" لکه: "ضَرَبْتُ زَيْدًا بِالْخَشَبَةِ".

(۱) مسند که چیري فعل وي یا به ماضي وي یا به امر وي یا به مضارع وي که چیري ماضي او امر حاضر وي نو به مبني وي او که چیري مضارع وي نو بیا به مرفوع وي په دې شرط چي د نون تاکید او نون د جمع مؤنث او د عامل لفظي څخه به خالي وي چونکه مسند او مسند الیه د کلام رکن جوړیږي نو ځکه دوی ته عمده ویل کیږي.

د اداة حکم (۱):

چي مبني به پر خپل حال وي، لیکن که چیري دَی پر ځای د یو اسم معرب راغلئ نو بیا د ده اعراب محلي دئ، کله کله مسند الیه وي، لکه: "مَنْ اَمِيْرُكَ" (۲) دلته "مَن" پر ځای د مبتداء واقع سوی دئ مرفوع محلاً دئ او کله کله مسند وي، مثال يې لکه: "خَيْرُ مَالِكَ مَا اَنْفَقْتَهُ فِيْ سَبِيْلِ اللهِ". او کله کله فضله وي، لکه: "اَكْرِمِ الَّذِيْ يُحْيِ السُّنَّةَ وَيُمِيْتُ الْبِدْعَةَ".

## جملي:

| عنوان | مفرد، مرکب | تعداد اسم، فعل، حرف | خبر، انشاء | اقسام اربعة | مسند الیه | مسند | فضله | اداة |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَللّٰهُ رَبُّنَا(۳) | مرکب | ۳_اسم | خبر | اسمیه | اَللّٰهُ | رَبُّنَا | × | × |
| اَلصَّلٰوةُ وَاجِبَةٌ (۴) | مرکب | ۳_اسم | خبر | اسمیه | اَلصَّلٰوةُ | وَاجِبَةٌ | × | × |
| يَشْتَدُّ الحرُّ فِي الصَّيْفِ(۵) | مرکب | ۲_اسم، ۱_فعل، ۱_حرف | خبر | فعلیه | اَلحرُّ | يَشْتَدُّ | اَلصَّيْفُ | فِيْ |
| اِنْ اَكْرَمْتَنِيْ اَكْرَمْتُكَ (۶) | مرکب | ۳_اسم، ۲_فعل، ۱_حرف | خبر | شرطیه | تَ، تُ | اَكْرَمَ<br>اَكْرَمَ | كَ، نِيْ | اِنْ |

---

(۱) هغه اسم چي د هغه عمدیت او فضلیت دواړه جائز وي، نو پر ده باندي رفع او نصب دواړه ویل کېدای سي په هغه صورت کي چي کله مستثنیٰ په کلام منفي کي وي، او مستثنیٰ منه ذکر سوې وي، مثال يې لکه: "مَا جَاءَ اَحَدٌ اِلَّا سَعِيْدٌ وَ اِلَّا سَعِيْدًا". (جامع الدروس العربية جلد ۱ صفحه ۲۲)

(۲) دلته د اداة څخه مراد حرف نه دئ چي بیا اعتراض په "مَن" استفهامیه سره واقع سي چي په "مَنْ اَمِيْرُكَ" کي خو "مَنْ" اسم دئ اداة او حرف نه دئ بلکي دلته د اداة څخه مراد رابط دئ هغه لکه: ادواة الشرط، استفهام، تمنی، ترجی، نواصب، جوازم، او حروف جاره وغیره او "مَنْ" دلته د ادواة استفهام څخه دئ.

(۳) د مثالو ترکیب:

"اَللّٰهُ" مبتداء "رَبُّنَا" مضاف او مضاف الیه خبر دپاره د مبتداء، جمله اسمیه خبریه.

(۴) "اَلصَّلٰوةُ" مبتداء "وَاجِبَةٌ" صیغه د اسم فاعل ضمیر پکښې دئ هغه يې فاعل دئ اسم فاعل سره د خپله فاعله خبر دپاره د مبتداء، او دا جمله اسمیه خبریه ده.

(۵) "يَشْتَدُّ" فعل "اَلحرُّ" فاعل "فِيْ" حرف جار "اَلصَّيْفِ" مجرور جار سره د خپله مجروره ظرف لغو متعلق تر "يَشْتَدُّ" پوري فعل سره د خپله فاعله او د خپله متعلقه جمله فعلیه خبریه.

(۶) "اِنْ" حرف شرط "اَكْرَمْتَ" فعل و فاعل "نُوْن" د وقایې "یاء" د متکلم مفعول به فعل سره د خپله فاعله او مفعول به دا به شرط سي "اَكْرَمْتُكَ" فعل او فاعل او مفعول دا به جزاء د شرط سي، شرط سره د خپلي جزاء جمله خبریه شرطیه.

| عنوان | مفرد، مرکب | تعداد اسم، فعل، حرف | خبر، انشاء | اقسام اربعة | مسند الیه | مسند | فضله | ادات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| خَلْفَكَ زَيْدٌ(۱) | مرکب | ۳_اسم | خبر | ظرفیه | زيْدٌ | خَلْفَ | کَ | × |
| لَايَدْخُلُ الجَنَّةَ قَتَّاتٌ | مرکب | ۲_اسم، ۱_فعل، ۱_حرف | خبر | فعلیه | قَتَّاتٌ | يَدْخُلُ | الجَنَّةَ | لَا |
| جَلِيْسُ السُّوْءِ شَيْطٰنٌ | مرکب | ۳_اسم | خبر | اسمیه | جَلِيْسُ السُّوْءِ | شَيْطٰنٌ | × | × |
| صَلّٰى زَيْدٌ | مرکب | ۱_اسم، ۱_فعل | خبر | فعلیه | زَيْدٌ | صَلّٰى | × | × |
| اِنْ اجْتَهَدْتَ فَقَدْ اَفْلَحْتَ | مرکب | ۲_اسم، ۲_فعل، ۳_حرف | خبر | فعلیه | تَ . تَ | اِجْتَهَدَ، اَفْلَحَ | × | اِنْ قَدْ |
| اَلْمُؤْمِنُوْنَ يَدْخُلُوْنَ الجَنَّةَ | مرکب | ۳_اسم، ۱_فعل | خبر | اسمیه | اَلْمُؤْمِنُوْنَ | يَدْخُلُوْنَ | اَلجَنَّةَ | × |
| اِجْتَهَدَ طَالِبٌ فِي الدَّرْسِ | مرکب | ۲_اسم، ۱_فعل، ۱_حرف | خبر | فعلیه | طَالِبٌ | اِجْتَهَدَ | اَلدَّرْسَ | فِي |
| نَحْنُ مُسْتَغْفِرُوْنَ | مرکب | ۳_اسم | خبر | اسمیه | نَحْنُ | مُسْتَغْفِرُوْنَ | × | × |
| مُحَمَّدٌ رَسُوْلُ اللهِ | مرکب | ۳_اسم | خبر | اسمیه | مُحَمَّدٌ | رَسُوْلُ اللهِ | × | × |
| مُحَمَّدٌ رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ | مرکب | ۳_اسم | خبر | اسمیه | مُحَمَّدٌ | رَسُوْلٌ اَمِيْنٌ | × | × |

## التمرين:

"وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ،، وَهُوَ الْعَزِيزُ الْغَفُورُ،، ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُورِهِمْ،، وَنَحْنُ لَهُ مُخْلِصُونَ،، كُلٌّ لَهُ قَانِتُونَ،، الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَرْضَ فِرَاشًا،، وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ،، أَبَىٰ وَاسْتَكْبَرَ،، وَأَنْتُمْ تَنْظُرُونَ،، يَجْعَلُونَ أَصَابِعَهُمْ"

بدانکه جمله انشائیه آن است که قائلش را بصدق و کذب الخ:.......................الی قوله فصل بدانکه مرکب غیر مفید.

## ترجمه:

پوه سه! چي جمله انشائیه هغه جمله ده چي قائل يې (د هغه جمله پهٔ وجه باندي) په صدق او کذب سره نه سي موصوفه کېدای دا پر څو قسمه ده: اول امر لکه: "اِضْرِبْ". دوهم نهي لکه: "لَا تَضْرِبْ". دريم استفهام لکه: "هَلْ ضَرَبَ زَيْدٌ". څلورم تمنى لکه: "لَيْتَ زَيْدًا حَاضِرٌ" پنځم ترجى لکه: "لَعَلَّ عَمْرًا غَائِبٌ". شپږم عقود لکه: "بِعْتُ وَ اِشْتَرَيْتُ" اووم نداء لکه: "يَا اَللّٰهُ". اتم عرض

---

(۱) "خَلْفَ" ظرف مضاف "كَاف" ضمير مضاف اليه مضاف سره د خپله مضاف اليه خبر مقدم "زَيْدٌ" مبتداء مؤخره دا به جمله ظرفيه سي.

لکه: "اَلَا تَنْزِلُ بِنَا فَتُصِيْبَ خَيْرًا". نهم قسم لکه: "وَاللهِ لَاَضْرِبَنَّ زَيْدًا". لسم تعجب لکه: "مَا اَحْسَنَ زَيْدٌ وَاَحْسِنْ بِهِ".

## الدرس السابع:

د نن د سبقه خلاصه شپږ (٦) خبري دي:

### اوله خبره:

د جملې انشائيه تعريف: (١)
جمله انشائيه هغه جمله ده چې قائل يې په صدق او کذب سره نسي موصوف کېداي. ځکه چې په جمله انشائيه کي حکايت د محکي عنه ثخه نه وي بلکه انشاء يعني "اِيْجَادُ مَالَمْ يُوْجَدْ" (نوی شی پيدا کول) وي.
د جملې انشائيه اقسام:
جمله انشائيه پر درې (٣) قسمه ده:
١. اسميه.
٢. فعليه.
٣. ظرفيه.
جمله انشائيه اسميه هغه جمله ده: چې د اجزاء اصليه وو ثخه يې اول جزء اسم وي او پر سر يې د انشاء د علاماتو ثخه يوه علامه داخله سوې وي لکه: "لَيْتَ زَيْدًا حَاضِرٌ".
جمله انشائيه فعليه: هغه جمله ده: چې د اجزاء اصليه وو ثخه يې اول جزء فعل وي او پر سر يې يوه علامه د علاماتو ثخه د انشاء داخله سوې وي لکه: "هَلْ ضَرَبَ زَيْدٌ".

---

(١) د جمله انشائيه نور اصطلاحي قسمونه دا دي: (١) جمله ابتدائيه (٢) جمله دعائيه (٣) افعال مقاربه (۴) افعال مدح و ذم (۵) شرط: لېکن بعضي نحاتو افعال مقاربه او افعال مدح وذم خبريه شمار کړي دي.
فائده: په حقيقت کي د جملې دوه قسمه دي: (١) ذاتي (٢) وصفي. بيا ذاتي پر څلور قسمه ده (١) اسميه (٢) فعليه (٣) شرطيه (۴) ظرفيه. او وصفي پر نه (٩) قسمه ده: (١) حاليه (٢) معطوفه (٣) نتيجيه (۴) مبينه (۵) مقطوعه (٦) معلله (٧) مستانفه (٨) معترضه (٩) ابتدائيه. (نصر الخبير)

جمله انشائيه ظرفيه هغه جمله ده: چي د اجزاء اصليه وو څخه يې اول جزء ظرف وي او پر سريې يوه علامه د علاماتو څخه د انشاء داخله سوې وي لکه: "هَلْ فِي الدَّارِ رَجُلٌ".

## دوهمه خبره:

د جمله انشائيه علامات:

د جملې انشائيې لس (١٠) علامې دي: (١) امر (٢) نهي (٣) استفهام (۴) تمنى (۵) ترجى (٦) عقود (٧) نداء (٨) عرض (٩) قسم (١٠) تعجب.

د جملې انشائيه د علاماتو لغوي او اصطلاحي معنٰى:

١. امر (١) په لغت کي حکم کولو ته وايي: او په اصطلاح کي هغه صيغه ده چي د هغه په ذريعه سره فاعل د مخاطب څخه د يو فعل طلب وکړي لکه: "اِضْرِبْ". (٢)

٢. نهي (١) په لغت کي منع کولو ته وايي: او په صطلاح کي هغه صيغه ده چي د هغه په ذريعه سره فاعل د مخاطب څخه د يو فعل د ترک طلب وکړي لکه: "لاتَضْرِبْ".

---

(١) د امر درې درجې دي: (١) امر: حکم د اعلى و ادنى ته لکه: "اَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ". (٢) دعاء: طلب د ادنى د اعلى څخه لکه: "رَبِّ اغْفِرْلِيْ". (٣) التماس: طلب د مساوي د مساوي څخه لکه: "مِنْ فَضْلِكَ اَعْطِنِيْ الْقَلَمَ".

(٢) "اِضْرِبْ" فعل "اَنْتَ" فاعل جمله فعليه انشائيه. "لَا تَضْرِبْ" فعل "اَنْتَ" فاعل جمله فعليه انشائيه. "هَلْ ضَرَبَ زَيْدٌ" "هَلْ" حرف استفهام "ضَرَبَ" فعل "زَيْدٌ" فاعل جمله فعليه انشائيه. "لَيْتَ زَيْدًا حَاضِرٌ" "لَيْتَ" حرف مشبه با الفعل "زَيْدًا" اسم د ليت "حَاضِرٌ" خبر د لَيْتَ جمله اسميه انشائيه. "لَعَلَّ عَمْرًا غَائِبٌ" "لَعَلَّ" حرف مشبه بالفعل "عَمْرًا" اسم د "لَعَلَّ" "غَائِبٌ" خبر د "لَعَلَّ" جمله اسميه انشائيه. "بِعْتُ وَاِشْتَرَيْتُ" "بِعْتُ" فعل و فاعل جمله انشائيه معطوف عليه "وَ" حرف عطف "اِشْتَرَيْتُ" فعل و فاعل جمله انشائيه. معطوف سره د معطوف عليه جمله معطوفه انشائيه. "يَا اَللّٰهُ" "يَا" حرف نداء قائم مقام د "اَدْعُوْ" فعل "اَنَا" ضمير يې فاعل "اَللّٰهُ" منادى مفعول به فعل فاعل مفعول به جمله فعليه ندائيه. "اَلَا تَنْزِلُ بِنَا فَتُصِيْبَ خَيْرًا" "اَلَا" حرف عرض "تَنْزِلُ" فعل و فاعل "بَا" جار "نَا" ضمير يې مجرور جار سره د مجروره ظرف لغو متعلق تر "تَنْزِلُ" پوري فعل سره د خپله فاعله او متعلقه جمله فعليه عرض "فَا" براىٔ جواب عرض "تُصِيْبَ" فعل و فاعل "خَيْرًا" مفعول به فعل سره د خپله فاعل او مفعول جواب د عرض عرض سره د خپله جوابه دا به جمله فعليه انشائيه سي. "وَاللّٰهِ لَاَضْرِبَنَّ زَيْدًا" "وَ" حرف جار براىٔ قسم "اَللّٰهِ" مجرور جار مع المجرور متعلق تر "اُقْسِمُ" فعل مقدر پوري "اُقْسِمُ" فعل "اَنَا" فاعل فعل سره د خپله فاعله او متعلق جمله فعليه قسم "لَاَضْرِبَنَّ" فعل "اَنَا" فاعل "زَيْدًا" مفعول به فعل، فاعل، مفعول به جمله فعليه جواب قسم قسم سره د جوابه جمله انشائيه قسميه. (نصر الخبير)

۳. استفهام (۲) په لغت کي طلب د فهم ته ويل کيږي او په صطلاح کي استفهام هغه جمله انشائيه ده چي د هغه په شروع کي حرف استفهام وي، او په هغه کي نا واقف متکلم د يو واقف مخاطبه څخه د يو شي د فهمولو خواهش وکړي. لکه: "هَلْ ضَرَبَ زَيْدٌ".

۴. تمنی (۳) په لغت کي ارزو او خواهش ته ويل کيږي او په اصطلاح کي هغه جمله انشائيه ده چي د هغه په ذريعه سره د يو شي ارزو او خواهش ښکاره سي لکه: "لَيْتَ زَيْدًا عَالِمٌ" (کاشکي زيد عالم وای).

۵. ترجی په لغت کي اميد ښکاره کولو ته ويل کيږي او په اصطلاح کي هغه جمله انشائيه ده چي د هغه په ذريعه سره د يو شي اميد ښکاره سي لکه: "لَعَلَّ عَمْرًا غَائِبٌ". (اميد دئ چي عمر دي غائب وي).

٦. عقود (۴) په لغت کي غوټه ور کولو ته وايي: او په اصطلاح کي د عقود څخه مراد هغه جملې وي چي د هغه په ذريعه سره رانيول او خرڅول کيږي لکه: "بِعْتُ وَاِشْتَرَيْتُ".

۷. نداء (۵) په لغت کي آواز ور کولو ته وايي: او په اصطلاح کي هغه جمله انشائيه ده چي د هغه په ذريعه سره بل څوک خپل ځان ته متوجه کيږي لکه "يَا اَللّٰهُ".

---

(۱) د نهي او نفي فرق دا دئ چي په نهي کي د منهي عنه ممکنه کېدل د "مَنْهِيْ" (منع کونکی) په قدرت کي داخلېدل شرط دي. نو ځکه و رانده ته "لَا تَنْظُرْ" نه سي ويل کېدلای او نفي عام وي.

(۲) که چيري يو واقف متکلم حرف استفهام په خپله استعمال کړي نو هغه ته استخبار ويل کيږي لکه: د الله جَلّ جَلَالُهٗ دا قول: "هَلْ يَسْتَوِى الَّذِيْنَ يَعْلَمُوْنَ وَالَّذِيْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ" او حروف استفهام درې دي: همزه، مَا، هَلْ.

(۳) تمنی په ممکناتو او ممتنعاتو دواړو کي استعمالېدای سي لېکن ترجی صرف په ممکناتو کي استعماليږي او تمنی صرف په اشياء محبوبه وو کي استعماليږي او ترجی عامه ده په اشياء مبغوضه وو کي هم مستعمليږي.

(۴) د عقود جملې يعني "بِعْتُ" و "اِشْتَرَيْتُ" که چيري په حالت د بيع کولو کي استعمال سي نو دوی جملې انشائيې دي او که د بيع او شراء وروسته اسعمال سي نو بيا جملې خبريې دي.

(۵) نداء پر دوه قسمه ده: (۱) حقيقي: که چيري منادای ذوی العقول او حاضره وي لکه "يَازَيْدُ" (۲) مجازي: که چيري منادای غير ذوی العقول او يا غائبه وي لکه "يَا طَالِعًا جَبَلًا" او منادای خو جمله انشائيه وي، لېکن د مقصود بالنداء جمله انشائيه کېدل ضروري نه دي.

٨. عرض (١) په لغت کي پیشولو ته وایي: او په اصطلاح کي هغه جمله انشائیه ده چي د هغه په ذریعه سره د یو شي د حاصلولو ترغیب په نرمي او سنجیدگي سره ور کول سي لکه: "اَلَا تَنْزِلُ بِنَا فَتُصِیْبَ خَیْرًا" (ته ولي موږ ته نه راځې چي تاته خیر ورسیږي).

٩. قسم (٢) په لغت کي قسم اخستلو ته وایي: او په اصطلاح کي هغه جمله انشائیه ده چي د هغه په ذریعه سره پر یو شي باندي قسم واخستل سي، لکه: "وَاللّٰهِ لَاَضْرِبَنَّ زَیْدًا" (زما دي په خدای سره قسم وي چي زه به خامخا زید وهم).

١٠. تعجب (٣) په لغت کي هغه کیفیت ته ویل کیږي چي پر یو ناولده شي باندي د علم راوستولو څخه وروسته پیداسي او په اصطلاح کي هغه جمله انشائیه ده چي د هغه په ذریعه سره پر یو خبره باندي اظهار د تعجب وسي لکه: "مَا اَحْسَنَهٗ وَ اَحْسِنْ بِهٖ" (څومره ښائسته دئ).

بدانکه مرکب غیر مفید ان است الخ:............... الی قوله دوم مرکب بنائی.

## ترجمه:

پوه سه! چي مرکب غیر مفید هغه دئ: چي خبري کونکی پر هغه باندي خاموشه سي او اورېدونکي ته خبر یا طلب حاصل نه سي: مرکب غیر مفید پر دري قسمه دئ: اول مرکب اضافي لکه: "غُلَامُ زَیْدٍ"

---

(١) "اَلَا تَنْزِلُ بِنَا" جمله انشائیه ده "فاء" عاطفه ده "فَتُصِیْبَ خَیْرًا" جمله خبریه ده. چونکه عطف د خبر پر انشاء باندي ناجائز دئ نو تاویل یې دا کیږي "اَلَا یَکُوْنُ مِنْکَ نُزُوْلٌ فَیَکُوْنُ اِصَابَةُ خَیْرٍ مِنِّيْ" نو عطف د خبر به پر خبر راسي.

(٢) په قسم کي جواب قسم جمله خبریه وي. (معارف النحو)

(٣) د "مَا اَحْسَنَهٗ" تقدیر عبارت "ما اَحْسَنَ زَیْدًا" دئ عند الامام السبویه "مَا" موصوفه تقدیره "شَیْئٌ عَظِیْمٌ اَحْسَنَ زَیْدًا" "شَیْئٌ" موصوف "عَظِیْمٌ" صفت موصوف سره د خپله صفته مبتداء "اَحْسَنَ زَیْدًا" فعل، فاعل، مفعول خبر برائ مبتداء جمله اسمیه انشائیه.

عند الامام الفراء "مَا" استفهامیه تقدیره "اَیُّ شَیْئٍ اَحْسَنَ زَیْدًا" "اَیُّ شَیْئٍ" مضاف او مضاف الیه مبتداء "اَحْسَنَ زَیْدًا" فعل فاعل مفعول به خبر برائ مبتداء جمله اسمیه انشائیه.

عند الامام الاخفش "مَا" موصوله دئ تقدیره "اَلَّذِيْ اَحْسَنَ زَیْدًا شَیْئٌ عَظِیْمٌ" "اَلَّذِيْ" اسم موصول "اَحْسَنَ زَیْدًا" فعل، فاعل مفعول صله د موصول، موصول مع الصلة مبتداء "شَیْئٌ عَظِیْمٌ" موصوف او صفت خبر برائ مبتداء جمله اسمیه انشائیه.

"اَحْسِنْ بِهٖ: اَیْ حَسُنَ زَیْدٌ" "حَسُنَ" فعل "با" زائده "زَیْدٌ" فاعل جمله فعلیه انشائیه. (نصر الخبیر)

جزء اول ته مضاف وايي: او جزء دوهم ته مضاف اليه. (ياد ساته). او مضاف اليه همېشه مجروره وي.

## دريمه خبره:

**د مرکب غير مفيد تعريف:**

مرکب غير مفيد: وهغه ته وايي چي قائل پر هغه سکوت وکړي سامع ته خبر په صورت د جملې خبريې کي او طلب په صورت د جملې انشائيې کي حاصل نه سي.

مرکب غير مفيد پر دوه (٢) قِسمه دئ:

١. تقيدي.
٢. غيرتقيدي.

**د مرکب تقيدي تعريف:**

مرکب تقيدي: و هغه ته وايي چي ثاني جزء قيد وي د اول دپاره يعني اول جزء عام وي ثاني تخصيص ورکړی وي لکه: "غُلَامُ زَيدٍ".

او مرکب تقيدي پر دوه (٢) قسمه دئ:

١. اضافي ([1]).
٢. توصيفي.

**د مرکب اضافي تعريف:**

مرکب اضافي: هغه مرکب دئ چي په هغه کي د يو شي تعلق د بل شي سره ښکاره کول مقصود وي، جزء اول ته يې مضاف او جزء ثاني ته يې مضاف اليه ويل کيږي ([2]). مضاف اليه به همېشه مجرور وي ([1]).

---

([1]) مضاف او مضاف اليه همېشه جزء د جملې جوړيږي کله مبتداء وي، لکه: "مَطْلُ الغَنِيِّ ظُلْمٌ"، کله خبر وي، لکه: "اَلدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ". کله مبتداء او خبر دواړه وي، لکه: "اَوَّلُ النَّاسِ اَوَّلُ نَاسٍ"، کله فاعل وي، لکه: "وَاِذْ قَالَ رَبُّکَ لِلْمَلَائِکَةِ"، او کله مفعول وي، لکه: "اُعْبُدُوا رَبَّکُمْ"، کله حال وي، لکه: "لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْکَ لَهُ" "وَحْدَهُ" بتاويل "مُنْفَرِدًا". (توضيح النحو)

([2]) د مضاف او مضاف اليه په منځ کي فصل نا مناسب دئ، نو ځکه د مضاف صفت د مضاف اليه څخه وروسته راوړل پکار دي لکه: "غُلَامُ الْمَرْءَةِ الصَّالِحُ". (معلم العربي)

د مضاف سره که عامل ذکر وو دَی به په طبق سره دخپل عامل وي، که عامل درفع وو دَی به مرفوع وي که عامل د نصب وو دَی به منصوب وي که عامل دجر وو دئ به مجرور وي، لکه: "جَاءَنِي غُلَامُ زَيْدٍ، وَرَأَيْتُ غُلَامَ زَيْدٍ، وَمَرَرْتُ بِغُلَامِ زَيْدٍ".
که چیري عامل نه وو ورسره ذکر بیا مضاف مبنی علی السکون دئ او ځوک چي اعراب ور باندي وايي دا غلط مشهور دئ.

## ځلورمه خبره:

د مضاف او مضاف الیه علامات او د پېژندلو طریقه:

١. دوه اسمونه وي پر اول باندي الف لام نه وي، لکه: "كِتَابُ الصَّلٰوةِ" یا دري اسمونه وي، پر اولو دوو باندي الف لام نه وي، لکه: "بَابُ صَلٰوةِ الْجُمُعَةِ" یا ځلور اسمونه وي، پر اولو درو باندي الف لام نه وي، لکه: "وَمَعْرِفَةُ مِقْدَارِ رَأْسِ الْمَالِ" یا پنځه اسمونه وي، پر اولو ځلورو باندي الف لام نه وي، لکه: "بَابُ مُتَابَعَةِ أَصْحَابِ رَسُوْلِ اللّٰهِ ﷺ".
په دې صورتو کي بغیر الف لام والا اسمونه مضاف او د دوی ځخه وروسته الف لام والا اسم مضاف الیه جوړېږي.

٢. یو اسم وي بغیر الف لام د ده ځخه وروسته ضمیر راسي لکه: "عَلٰى سَمْعِهِمْ" یا دوه اسمونه بغیر الف لام وي، دریم ځای ضمیر وي، لکه: "غَسْلُ يَدَيْهِ" یا دري اسمونه بغیر د الف لام وي، ځلورم ځای ضمیر وي، لکه: "وَمَسْحُ رُبُعِ رَأْسِهِ". یا ځلور اسمونه بغیر د الف لام ځخه وي او پنځم ځای ضمیر راسي لکه: "وَجَمِيْعُ مُدَّةِ اِنْقِطَاعِ رُؤْيَتِيْ".
په دې ټولو صورتو کي اسمونه مضاف او ضمیر مضاف الیه جوړېږي.

---

(١) مضاف الیه همیشه مجرور وي، او پر مضاف باندي الف لام نه سي راتلای لېکن اسماء مشتقه لکه: اسم فاعل، اسم مفعول، اسم تفضیل، مبالغه او صفت مشبه د دې قاعدې ځخه مستثنٰی دي. (نصر الخبیر)

۳. د اسم اشاره څخه مخکې يو اسم بغير الف لام وي لکه: "رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ" يا دوه اسمونه بغير الف لام وي، لکه: "وَتَزْئِيْنُ دِيْبَاجَةِ هٰذَا الْكِتَابِ" يا درې اسمونه بغير الف لام وي، لکه: "وَ بَيَانُ اِعْتِبَارِ صِفَةِ ذَالِكَ الْجُزْءِ".

## پنځمه خبره:

داغه رنګه د اسم موصول څخه مخکې يو اسم بغير الف لام وي، لکه: "سُبْحَانَ الَّذِيْ". يا دوه اسمونه بغير د الف لام وي، لکه: "مِثْلُ اَيَّامِ الَّذِيْنَ".
يا د عَلَم څخه مخکې يو اسم بغير د الف لام وي، لکه: "كِتَابُ اللهِ" يا دوه اسمونه بغير د الف لام وي، لکه: "خَلْفَ رَسُوْلِ اللهِ" يا درې اسمونه بغير د الف لام وي، لکه: "بَابُ قِيَامِ شَهْرِ رَمَضَانَ".
په دې ټولو صورتو کې بغير الف لام والا اسمونه مضاف او اسم اشاره، اسم موصول او علم مضاف اليه جوړېږي.

۴. د يوه څخه بيا تر لسو پورې عدد او د "مِأَةٌ" او "اَلْفٌ" عدد همېشه او کسور لکه: نصف، ربع، ثلث، و غيره اکثريت خپل ما بعد ته مضاف وي، لکه: "سَبْعَةُ اَيَّامٍ" يا "مِأَةُ عَامٍ" يا "نِصْفُ الرَّاْسِ" يا "رُبْعُ الرَّاْسِ".

۵. د "مَا" او "مَنْ" څخه مخکې بغير الف لام والا اسم راسي لکه: "جَزَاءُ مَنْ تَزَكّٰى" يا "بِمَوْتِ مَا لَا دَمَ لَهٗ" داغه رنګه د عدد څخه مخکې بغير الف لام والا اسم کله يو وي او کله دوه وي؛ لکه: "تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ، عَلٰى رَأْسِ كُلِّ مِأَةِ سَنَةٍ" او داغه رنګه کله چې لفظ د حرف ذکر سي مراد هم لفظ وي، کله د ده څخه مخکې يو اسم بغير الف لام راسي کله دوه او کله درې او کله څلور لکه: "خَبَرُ اِنَّ. نَعْتُ اِسْمِ لَا. فِيْ مَوَاقِعِ اِسْتِعْمَالِ كَلِمَةِ اِلٰى. بَيَانُ مَوَاضِعِ اِسْتِعْمَالِ كَلِمَةِ حَتّٰى" او داغه رنګه لفظ د فعل يا د جملې ذکر سيَ او مراد لفظ وي، نو کله يې مخکې يو اسم بغير الف لام وي او کله دوه لکه: "مِنْ بَابِ عَلِمْتُ. بِخِلَافِ بَابِ اَعْطَيْتُ" نو په دې ټولو صورتو کې دوی په خپل مېنځ کې مضاف او مضاف اليه سره جوړېږي.

## شپږمه خبره:

شل (٢٠) داسي اسماء دي چي لازم الاضافة دي (١):

| | | |
|---|---|---|
| ١. كُلٌّ. | ٧. مِثْلُ. | ١٣. عِنْدَ. |
| ٢. ذُوْ. | ٨. بَعْضٌ. | ١٤. بَيْن. |

---

(١)

اول: بعضي هغه اسماء دي چي په هغه کي اضافت او افراد دواړه صحيح وي، لکه: "غُلَامٌ، ثَوْبٌ وغيره".

دوهم: هغه اسماء دي، چي د هغه اضافت نه واقع کيږي لکه: مضمرات، اشارات، موصولات، اسماء الشرط او استفهام ما سواى د "اَيٌّ" څخه.

دريم: هغه اسماء دي، چي لازم الاضافة الى المفرد وي، بيا هغه پر دوه قسمه دي: اول (١) چي د هغه مضاف اليه حذف کول جائز وي يعني مضاف اليه منوي په ذهن کي وي هغه بعض ظروف دي: لکه: "اَوَّلُ، دُوْنَ، فَوْقَ، تَحْتَ، يَمِيْنَ، شِمَالَ، اَمَامَ، قُدَّامَ، خَلْفَ، وَرَاءَ، تِلْقَاءَ، تُجَاهَ، إِزَاءَ، حِزَاءَ، قَبْلُ، بَعْدُ، مَعَ" او بعض غير ظروف دي لکه: "كُلٌّ، بَعْضٌ، غَيْرُ، جَمِيْعٌ، حَسْبُ، اَيٌّ". مثال يې لکه: "وَكُلٌّ فِي فَلَكٍ يَسْبَحُونَ" "فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلَى بَعْضٍ" يا لکه: "اَيًّا مَّا" (٢) چي د هغه مضاف اليه په لفظ کي حذف کول جائز نه وي، هغه هم بعض ظروف دي: لکه: "عِنْدَ، لَدٰى، لَدُنْ، بَيْنَ، وَسْطٌ" او بعض غير ظروف دي لکه: "شِبْهٌ، قَابٌ، كِلَا، وَكِلْتَا، سِوَاى، ذُوْ، ذَاتٌ، ذَوَا، ذَوَاتَا، ذَوُوْ، ذَوَاتٍ، اُوْلُوْ، اُوْلَاتٌ، قُصَارٰى، سُبْحَانَ، مَعَاذَ، سَائِرُ، وَحْدُ، لَبَّيْكَ، سَعْدَيْكَ، حَنَانَيْكَ، دَوَالَيْكَ". هغه بيا پر درې قسمه دي:

١. چي اسم ظاهر او ضمير دواړو ته مضاف وي، لکه: "كِلَا، كِلْتَا، لَدٰى، لَدُنْ، عِنْدَ، سِوَاى، بَيْنَ، لَغْوٰى، قُصَارٰى، وَسْطٌ، مِثْلُ، ذُوْوْ، مَعَ، سُبْحَانَ، سَائِرُ، شِبْهٌ".

٢. چي صرف و اسم ظاهر ته مضاف وي، لکه: "اُوْلِى، اُوْلَاتٌ، ذِيْ، ذَاتَ، اُوْلُوْ، ذُوْ، ذَوَا، ذَوَاتَ، قَابٌ، مَعَاذَ" مثال يې لکه: "نَحْنُ اُوْلُوْ قُوَّةٍ" يا "اُوْلَاتُ الْاَحْمَالِ" "ذَاتَ بَهْجَةٍ".

٣. چي صرف په ضمير پوري خاص وي، هغه بيا پر دوه قسمه دي: (١) چي د هر ضمير و طرفته مضاف کيږي هغه لفظ د "وَحْدَ" دئ لکه: "اِذَا دُعِيَ اللهُ وَحْدَهُ، وَحْدَهَا، وَحْدَهُمَا، وَحْدَكُمْ. الخ" (٢) چي صرف د مخاطب و ضمير ته مضاف کيږي هغه مصادر دي چي لفظًا تثنيه وي او معنى د تکرار ور کوي لکه: "لَبَّيْكَ. اِجَابَةً لَكَ بَعْدَ اِجَابَةٍ. سَعْدَيْكَ. اِسْعَادًا لَكَ بَعْدَ اِسْعَادٍ" "حَنَانَيْكَ" "تَحَنُّنًا عَلَيْكَ بَعْدَ تَحَنُّنٍ" دَوَالَيْكَ" "تَدَاوُلًا بَعْدَ تَدَاوُلٍ" چي صرف د مخاطب و ضمير ته مضاف وي لکه: "لَبَّيْكَ. لَبَّيْكُمَا. سَعْدَيْكُمْ".

څلورم: هغه اسماء چي لازم الاضافة وي و جمله ته لکه: "اِذْ، حَيْثُ، اِذَا، لَمَّا، مُذْ، مُنْذُ". مثال يې لکه: "وَاذْكُرُوْا اِذْ اَنْتُمْ قَلِيْلٌ" "وَاذْكُرُوْا اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا" "فَأْتُوْهُنَّ مِنْ حَيْثُ اَمَرَكُمُ اللهُ" "اِجْلِسْ حَيْثُ العِلْمُ مَوْجُوْدٌ" "اِذَا جَاءَ عَلِيٌّ اَكْرَمْتُهُ" "وَلَمَّا جَاءَ خَالِدٌ اَعْطَيْتُهُ" "مَارَاَيْتُكَ مُذْ سَافَرَ سَعِيْدٌ" "وَمَا اِجْتَمَعْنَا مُنْذُ سَعِيْدٌ مُسَافِرٌ". (جامع الدروس العربية جلد ٣ صفحه ١٦٥)

۳. جَمِيْعٌ.
۴. حَسْبُ.
۵. ذَاتَ.
۶. غَيْرُ.
۹. شِبْهٌ.
۱۰. اِذْ.
۱۱. اِذَا.
۱۲. اُوْلُوْ.
۱۵. لَدُنْ.
۱۶. دُوْنَ.
۱۷. حَيْثُ.
۱۹. سِوَای.
۲۰. جهات سته، قَبْلُ، بَعْدُ، تَحْتَ، فَوْقَ، يَمِيْنٌ شِمَالٌ

## فائده:

د لوړي حاشیه اسماء هم په لازم الاضافة کي داخل دي.

## جملي:

| عنوان | مفرد، مرکب | تعداد اسم، فعل، حرف | خبر، انشاء | انشاء علامات | اقسام اربعه، علامه | مسند | مسندالیه | فضله | اداة |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَاتُشْرِكُوا بِهٖ شَيْئًا | مرکب | ۳_اسم ۲_حرف ۱_فعل | انشاء | نهی | فعلیه | لَاتُشْرِكُوا | اَنْتُمْ | ہٗ، شَيْئًا | لَا، بِ |
| اَسْتَغْفِرُ اللهَ | مرکب | ۲_اسم ۱_فعل | انشاء | دعاء | فعلیه | اَسْتَغْفِرُ | اَنَا | لفظ (الله) | × |
| صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | مرکب | ۳_اسم ۲_فعل ۲_حرف | انشاء | دعاء | فعلیه | صَلَّى وَسَلَّمَ | اللهُ، هُوَ | ہٗ | وَ، عَلٰى |
| اُعْبُدُوا اللهَ | مرکب | ۲_اسم ۱_فعل | انشاء | امر | فعلیه | اُعْبُدُوا | اَنْتُمْ | لفظ (الله) | × |
| لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيْبٌ | مرکب | ۲_اسم ۱_حرف | انشاء | ترجی | اسمیه | قَرِيْبٌ | اَلسَّاعَةَ | × | لَعَلَّ |
| لَيْتَ سَعِيْدًا حَاضِرٌ | مرکب | ۲_اسم ۱_حرف | انشاء | تمنی | اسمیه | حَاضِرٌ | سَعِيْدًا | × | لَيْتَ |
| آمَنُوْا | مرکب | ۱_اسم ۱_فعل | خبر | + | فعلیه | آمَنُوْا | هُمْ | × | × |
| آمِنُوْا | مرکب | ۱_اسم ۱_فعل | انشاء | امر | فعلیه | آمِنُوْا | اَنْتُمْ | × | × |
| مَا فِي الْبَيْتِ بَكْرٌ | مرکب | ۳_اسم ۲_حرف | خبر | + | ظرفیه | مَوْجُوْدٌ | بَكْرٌ | اَلْبَيْتِ | مَا، فِي |
| فِي الْاِمْتِحَانِ يُكْرَمُ الرَّجُلُ اَوْ يُهَانُ | مرکب | ۳_اسم ۲_فعل ۲_حرف | خبر | + | ظرفیه | يُكْرَمُ، يُهَانُ | اَلرَّجُلُ، هُوَ | اَلْاِمْتِحَانِ | فِي، اَوْ |
| مَنْ اَرَادَ الْحَجَّ فَلْيُعَجِّلْ | مرکب | ۳_اسم ۲_فعل ۱_حرف | خبر | + | اسمیه | اَرَادَ، فَلْيُعَجِّلْ | هُوَ، هُوَ | اَلْحَجَّ | فَ |
| وَالتِّيْنِ وَالزَّيْتُوْنِ | مرکب | ۳_اسم ۱_فعل ۲_حرف | انشاء | قسم | اسمیه | اُقْسِمُ | اَنَا | اَلتِّيْنِ اَلزَّيْتُوْنِ | وَ، وَ |
| لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ | مرکب | ۳_اسم ۱_فعل ۱_حرف | انشاء | ترجی | فعلیه | تُفْلِحُوْنَ | كُمْ | + | لَعَلَّ |

## التمرين:

"اُنْظُرْنَا.. وَلَا تَقُوْلُوْا.. هَلْ تَرٰى مِنْ فُطُوْرٍ.. وَلَا تَقْرَبَا هٰذِهِ الشَّجَرَةَ.. لَيْتَ قَوْمِي يَعْلَمُوْنَ.. لَعَلَّكَ بَاخِعٌ نَفْسَكَ.. مَا اَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ.. لَعَلَّ السَّاعَةَ تَكُوْنُ قَرِيْبًا.. مَا اَكْفَرَهُ.. يٰلَيْتَنِي لَمْ اَتَّخِذْ فُلَانًا خَلِيْلًا".

دوم مرکب بنائی الخ: ............ الی قوله فصل بدانکه چون کلمات جمله بسیار باشد.

**ترجمه:**

دوهم مركب بنائي هغه مركب دئ چي دوه اسمونه يې سره يو ځاى كړي وي، او اسم دوهم متضمن (شامل) حرف عطف لره وي، لكه: "اَحَدَ عَشَرَ" بيا تر "تِسْعَةَ عَشَرَ" پوري. په اصل كي "اَحَدٌ و عَشَرٌ" او "تِسْعَةٌ وَّ عَشَرٌ" وو. واو يې حذف كړئ او دواړه اسمونه يې سره يو ځاى كړل. د دې مركب دواړه جزئونه مبني بر فتحه دي، ما سواى د "اِثْنَا عَشَرَ" څخه. د هغه جزء اول معرب دئ.

دريم مركب منع صرف هغه مركب دئ چي دوه اسمونه يې سره يو ځاى كړي وي، او اسم دوهم متضمن حرف لره نه وي، لكه: "بَعْلَبَكّ" و "حَضْرَمَوْتَ". جزء اول يې مبني بر فتحه دئ پر مذهب د اكثرو علماؤ او جزء دوهم يې معرب دئ.

پوه سه! چي مركب غير مفيد همېشه جزء د جملې وي، لكه: "غُلَامُ زَيْدٍ قَائِمٌ" (١) "عِنْدِيْ اَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا" "جَاءَ بَعْلَبَكُّ".

## الدرس الثامن:

د نن د سبقه خلاصه اووه (٧) خبري دي:

### اوله خبره:

د مركب توصيفي تعريف:

دوهم قِسم د مركب تقيدي مركب توصيفي دئ:

مركب توصيفي: هغه مركب دئ چي د صفت او موصوف څخه جوړ وي لكه "رَجُلٌ عَالِمٌ" اول جزء ته موصوف او دوهم جزء ته صفت وايي.

---

(١) "غُلَامُ زَيْدٍ قَائِمٌ" "غُلَامُ" مضاف "زَيْدٍ" مضاف اليه مضاف سره د خپله مضاف اليه مبتداء "قَائِمٌ" صيغه د اسم فاعل سره له فاعله خبر د مبتداء مبتداء سره د خپله خبره جمله اسميه خبريه. "عِنْدِيْ اَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا" "عِنْدِيْ" ظرف مضاف "يْ" متكلم مضاف اليه دا مفعول فيه د موجود "مَوْجُوْدٌ" صيغه د اسم مفعول ضمير مستتر يې فاعل "عِنْدِيْ" مفعول فيه سره د خپل متعلق دا به خبر مقدم سي "اَحَدَ عَشَرَ" مميز "دِرْهَمًا" تميز مميز سره د خپله تميزه مبتداء مؤخره دا به جمله اسميه خبريه سي. "جَاءَ بَعْلَبَكُّ" "جَاءَ" فعل "بَعْلَبَكُّ" فاعل جمله فعليه خبريه. (نصر الخبير)

د موصوف او صفت علامات او د پېژندلو طريقه:

د صفت او موصوف په معنٰى کې د پښتو په ژبه کې د "هسې" لفظ زياتول کيږي لکه: "جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ" (ما له راغلئ هسې سړی چې عالم وو يعني ما له عالم سړی راغلئ) ودې ته صفت حقيقي ويل کيږي يعني "صفت بحاله".

صفت به يا جمله وي او يا به مفرد وي که چيرې جمله وي نو بيا د ده دپاره درې شرطونه دي:

١. اول شرط يې دا دئ: چې صفت به جمله خبريه وي.
٢. دوهم شرط يې دا دئ: چې په صفت کې به يو ضمير وي، چې راجع به وي و موصوف ته.
٣. دريم شرط يې دا دئ: چې موصوف به نکره وي، لکه: "جَاءَنِيْ رَجُلٌ اَبُوْهُ عَالِمٌ" (مالره راغلئ هسې سړی چې د ده پلار عالم وو) ودې ته صفت سببي ويل کيږي يعني "صفت بحال متعلقه".

## دوهمه خبره:

او که چيرې صفت مفرد وو نو بيا خو يې د معلوملو يوه لويه طريقه په اعتبار د معنى سره ده چې تېره سوه لېکن په لفظ کې يې د معلومولو يو څو مشهوره طريقې او علامې په دې شکل دي:

١. که چيرې دواړه اسمونه معرفه وي يا دواړه نکره وي نو عموما دوی موصوف او صفت جوړيږي، په دې شرط چې حکم به نه وي ور باندې سوی لکه: "زَيْدُنِ الْعَالِمُ، رَجُلٌ عَالِمٌ".
٢. د اسم اشاره وروسته چې کله معرف باللام راسي لکه: "ذٰلِکَ الْکِتَابُ"، نو عام طور اسم اشاره موصوف او هغه وروسته اسم صفت بلل کيږي.
٣. کله دوه اسمونه وي، پر دواړو الف لام وي ([1]) لکه: "اَلصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ" يا درې څلور پنځه اسمونه وي، پر ټولو الف لام وي، لکه: "هُوَ اللّٰهُ الخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ" يا دوه اسمونه وي،

---

([1]) شرط يې دا دئ چې دواړه به يا مفرد وي، خواه که مفرد صريحي وي، او که تاويلي وي، يا به دواړه تثنيه وي، او يا به دواړه جمع وي، او معنى به يې هم صحيح وي، يعني حمل بهٔ د صفت پر موصوف باندې صحيح وي.

پر دواړو تنوين وي (۱) او نكره وي، لكه: "صِرَاطًا مُسْتَقِيمًا" په دې دواړو صورتو كي اول موصوف او دوهم صفت واقع كيږي.

۴. كله چي د نكره څخه وروسته فعل راسي (۲) لكه: "اَلْكَلِمَةُ لَفْظٌ وُضِعَ لِمَعْنًى" يا جار و مجرور راسي (۳) لكه: "مَعْنًى فِيْ نَفْسِهَا" يا د "ذَاتٌ" لفظ راسي لكه: "فِيْ كُلِّ صَلٰوةٍ ذَاتِ رُكُوْعٍ وسُجُوْدٍ" يا "مِنْ" بيانيه راسي لكه: "وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖ" يا د "غَيْرُ" لفظ راسي لكه: "إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ" په دې دواړو صورتو كي اول اسم موصوف او دوهم صفت وي.

۵. كله چي يو اسم مضاف وي، و ضمير ته او د ده څخه وروسته الف لام والا اسم راسي لكه: "سُبْحَانَ رَبِّيَ الْاَعْلٰى" يا اسم موصول راسي لكه: "وَأُمَّهَاتُكُمُ اللَّاتِي أَرْضَعْنَكُمْ" يا اسم اشاره راسي لكه: "مِنْ سَفَرِنَا هٰذَا نَصَبًا" په دې صورتو كي اول اسم موصوف او دوهم صفت وي.

٦. كله چي د اسم اشاره (۴) څخه وروسته الف لام والا اسم راسي لكه: "رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ" يا د اسم موصول څخه مخكي الف لام والا اسم راسي لكه: "هُدًى لِّلْمُتَّقِيْنَ الَّذِيْنَ" اول اسم موصوف او دوهم صفت وي.

---

(۱) شرط يې دا دئ چي اول اسم به د چا دپاره علم نه وي او دواړه اسمونه به د "كَانَ" و غيره او حروف مشبه با الفعل څخه وروسته نه وي، كه چيري اول اسم د چا دپاره نوم وي، نو بيا په ابتداء كلام كي هغه مبتداء او خبر جوړيږي لكه: "زَيْدٌ قَائِمٌ" او كه چيري د "كَانَ" او حروف مشبه با الفعل څخه وروسته وي، نو بيا په بعضو مقاماتو كي دوه جلا جلا خبرونه جوړيږي لكه: "إِنَّ اللهَ غَفُوْرٌ رَّحِيمٌ" او "وَكَانَ اللهُ عَلِيمًا حَكِيمًا".

(۲) په دې شرط چي فعل به د جزاء په مقام كي نه وي، كه چيري فعل د جزاء په مقام كي وي، بيا موصوف او صفت نه جوړيږي، لكه: "مَنْ بَنٰى لِلّٰهِ مَسْجِدًا، بَنَى اللهُ لَهٗ بَيْتًا فِي الْجَنَّةِ".

(۳) په دې شرط چي جار او مجرور به په ماقبل كي د دغه نكره يا د بل لفظ سره متعلق نه وي.

(۴) شرط يې دا دئ: چي د يو بل تركيب قرينه به نه وي موجوده لكه: "أَنّٰى يُحْيِي هٰذِهِ اللهُ بَعْدَ مَوْتِهَا" په دې تركيب كي "هٰذِهِ" مفعول به مقدم دئ. (العلامات النحوية)

## دريمه خبره:

۷. لفظ د "اِبْنٌ". د ماقبل دپاره صفت او و مابعد ته مضاف وي، لكه: "اَحْمَدُ بْنُ مُحَمَّدٍ بْنِ حَسَنٍ".

۸. چي كله لفظ د حرف ذكر سي او مراد هم لفظ وي، نه معنى او د ده څخه وروسته الف لام والا اسم راسي لكه: "مَا وَلَا الْمُشَبَّهَتَانِ بِلَيْسَ" اول اسم موصوف او دوهم صفت وي.

۹. كله صفت مضاف وي و موصوف ته لكه: "بِكَرِيْمِ خِطَابِهِ: اَىْ اَلْخِطَابُ الْكَرِيْمُ" يعني كريمانه خطاب. او كله موصوف مضاف وي، و صفت ته لكه: "بِرُوْحِ الْقُدُسِ" يعني پاكيزه روح.

د موصوف او صفت د مبتداء او خبر څخه فرق:

۱. اول فرق يې په حكم سره كيږي كه چيري د "دئ" او د "نه دئ" حكم ور باندي لګېدلى وي نو مبتداء او خبر بلل كيږي او كه نه وي نو بيا موصوف و صفت دي لكه: "زَيْدٌ عَالِمٌ" زيد عالم دئ، "زَيْدُنِ الْعَالِمُ" هسي زيد چي عالم يعني عالم زيد.

۲. دوهم يې فرق په لفظ كي دئ كه چيري دواړه نكره وي يا دواړه معرفه وي خو په مابين كي يې ضمير فصل نه وي نو صفت او موصوف دي.

او كه چيري يو نكره او بل معرفه وي يا دواړه معرفه وي خو په مابين كي يې ضمير فصل وي نو بيا مبتداء او خبر بلل كيږي لكه: "زَيْدٌ قَائِمٌ، اُوْلٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ".

## څلورمه خبره:

د مركب غير تقيدي اقسام:

دوهم قسم، د مركب غير مفيد، مركب غير تقيدي دئ او مركب غير تقيدي پر درې (۳) قِسمه دئ:

۱. مركب بنائي، يا عددي.
۲. مركب منع صرف، يا مزجي.
۳. مركب صوتي.

د مركب بنائي تعريف:

مرکب بنائي هغه مرکب غیر مفید دئ چي دوه اسمونه يې سره يو ځای کړي وي، او اسم دوهم متضمن حرف لره وي، لکه: "اَحَدَ عَشَرَ" (۱) په اصل کي "اَحَدٌ وَّ عَشَرٌ" وو او دواړه جزؤنه يې مبني دي.

د مرکب بنائي اقسام:

مرکب بنائي پر درې قسمه دئ:

۱. کله مرکب من العدد وي، لکه: "اَحَدَ عَشَرَ" دواړه جزؤنه يې مبني بر فتحه دي، اول جزء ځکه مبني (۲) دئ چي آخر حرف يې په وسط د کلمې کي راغلی دئ او پر وسط د کلمې اعراب نسي جاري کېدای، او دوهم جزء ځکه مبني دئ، چي متضمن حرف لره دئ (۳) او حرف مبني الاصل ذئ.

۲. کله مرکب من الظروف وي، لکه: "مَنْ لَّا يَصْرِفُ الْوَاشِيْنَ عَنْهُ صَبَاحَ مَسَاءَ يَبْغُوْهُ خَبَالًا" په اصل کي "صَبَاحًا وَّ مَسَاءً" وو، د بنا وجه يې په اول قسم کي تېره سوه.

۳. کله مرکب من الاحوال وي، لکه: "فُلَانٌ جَارِي بَيْتَ بَيْتَ" په اصل کي "بَيْتًا لِبَيْتٍ اَیْ مُلَاصِقًا" قَدْ مَرَّ وَجْهُ بِنَائِهِ فِي الْقِسْمِ الْاَوَّلِ.

---

(۱) د "اَحَدَ عَشَرَ" څخه بيا تر "تِسْعَةَ عَشَرَ" پوري دواړه جزؤنه مبني دي، مګر په "اِثْنَا عَشَرَ" کي اول جزء معرب دئ ځکه دا په اصل کي "اِثْنَانِ" وو، لفظًا او معنًا د تثنيې سره مشابه دئ تثنيه چي کله مضاف وي، نون يې غورځي او دا معربه وي، نو "اِثْنَانِ" و "اِثْنَتَانِ" هم د تثنيې سره د شبه اضافت په وجه باندي معرب وي، او داغه رنګه که چيري اسم عدد د "فَاعِلٌ" پر وزن راسي او د "عَشَرَ" سره مرکب وي، هغه به هم مبني بر فتحه وي، لکه: "ثَالِثَ عَشَرَ". لېکن که چيري ناقص يايي وي، نو بيا به جزء اول مبني بر سکون وي، لکه: "حَادِيْ عَشَرَ".

(۲) د جزء اول دوهمه وجه د بناء دا ده چي جزء ثاني د تاء متحرکه حيثيت لري لکه: څنګه چي تا خپل ماقبل مبني بر فتحه ګرځوي لکه: په "ضَارِبَةٌ" کي او داغه رنګه جزء ثاني هم جزء اول مبني بر فتحه ګرځوي.

(۳) واو حرف دئ او جمله حروف مبنی الاصل دي ضابطه دا ده چي کم شی د مبنی الاصل معنی لره متضمن وي، هغه هم مبني وي، اودوی مبني علی الحرکت ځکه دئ چي دوی مشابه د مبنی الاصل دئ او مبني بر فتحه ځکه دئ. چي فتحه اخف الحرکات ده.

## پنځمه خبره:

**د مرکب منع صرف تعریف:**

دوهم قِسم د مرکب غیر تقیدي (۱) مرکب منع صرف دئ.

مرکب منع صرف هغه مرکب غیر مفید دئ چي دوه اسمونه يې سره يو ځای کړي وي، او اسم دوهم متضمن حرف لره نه وي، لکه: "بَعْلَبَکَّ، حَضْرَمَوْتَ" د مرکب منع صرف په اعراب کي درې مذهبونه دي.

**د مرکب منع صرف په اعراب کي د نحويانو اختلاف:**

۱. عند البعض د مرکب منع صرف دواړه اجزاء معرب دي اول مضاف او دوهم مضاف اليه منصرف دئ. لکه: "جَائَنِيْ بَعْلُبَکٍ" "وَرَاَیْتُ بَعْلَبَکٍ" "وَمَرَرْتُ بِبَعْلِبَکٍ".

۲. عند البعض دواړه جزئونه معرب دي ليکن اول معرب مضاف دوهم معرب مضاف اليه غير منصرف دئ لکه: "جَائَنِيْ بَعْلُبَکَّ" "وَرَاَیْتُ بَعْلَبَکَّ" "وَمَرَرْتُ بِبَعْلِبَکَّ".

۳. عند الاکثر جزء اول يې مبني بر فتحه دئ جزء دوهم يې معرب غير منصرف دئ لکه: "جَائَنِيْ بَعْلَبَکُّ" "وَرَاَیْتُ بَعْلَبَکَّ" "وَمَرَرْتُ بِبَعْلَبَکَّ".

**د مرکب صوتي تعریف:**

مرکب صوتي هغه مرکب غیر مفید دئ چي دوه اسمونه يې سره يو ځای کړي وي، او اسم دوهم صوت وي، او دی د ترکيبه څخه مخکي مبني دئ، او اول جزء يې یا ځکه مبني دئ چي آخر يې په وسط کي راغلی دئ. لکه: "سِبْوَیْه، نِفْطَوَیْه".

---

(۱) ذ مرکب وجه د حصر: مرکب به د دوو خالو څخه خالي نه وي، يا به د ده د دواړو جزئو په مابين کي نسبت وي، يا به نه وي، کچیري نسبت وو، هغه به یا تام وي یا به ناقص وي، کچیري تام وو، هغه اول (۱) قسم مرکب تام دئ. که يې نسبت ناقصه وو، يا به انفصال وي، يا به اتصال وي، که انفصال وو، هغه (۲) دوهم قسم مرکب عطفي دئ. که اتصال وو، يا به اتصال لفظي وي، يا به معنوي وي، که لفظي وو، هغه (۳) دریم قسم مرکب اضافي دئ او که معنوي وو یا به عامل او معمول جوړېدای سي یا به نسي جوړېدای که نه سو جوړېدای هغه (۴) څلورم قسم مرکب توصيفي دئ او که جوړېدای سو هغه پنځم (۵) قسم شبه جمله ده. او کچیري د اجزاوو په مابين کي نسبت نه وو، يا به دوهم جزء صوت وي، هغه (٦) شپږم قسم مرکب صوتي دئ او که نه وو، يا به اول جزء متضمن حرف لره وي، يا به نه وي، که نه وو (۷) اووم قسم مرکب منع صرف دئ، که وو يا به مرکب من الاحوال وي هغه (۸) اتم قسم دئ یا به مرکب من الظروف هغه (۹) نهم قسم دئ یا به مرکب من العدد وي هغه (۱۰) لسم قسم دئ. (شرح شذور الذهب)

**شپږمه خبره:**

**سوال:** کله چي دا مرکب غیر مفید دئ او پر ده څه فائده مشتمله نه ده نو نحوي حضرات دَی د څه غرض دپاره ذکر کوي.

**جواب:** که څه هم دَی پوره جمله نسي واقع کېدای لېکن جزء د جملې ضرور واقع کیږي، د دوهم جزء سره چي یو ځای سي نو بیا پوره جمله ځني جوړیږي.

بدانکه هیچ جمله کمتر الخ: .................... الی قوله بدانکه چون کلمات جمله بسیار شود.

**ترجمه:**

پوه سه! چي جمله (خواه خبریه وي او که انشائیه) تر دوو کلمو کمه نه وي مرکبه، خواه که هغه دواړي کلمې ښکاره وي، لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ، زَيْدٌ قَائِمٌ" (۱) یا یوه ښکاره او بله پټه وي؛ لکه: "اِضْرِبْ" چي د "اَنْتَ" ضمیر پکښي پټ دئ، او د دې څخه د زیاتو کلمو څخه هم جمله مرکبه کېدای سي. او زیاتوب لره څه حد او اندازه نسته.

**اوومه خبره:**

**اعتراض:** مخکي د جملې یعني د مرکب مفید په تعریف کي دا خبره تېره سوه چي دَی به د دوو یا تر دوو زیاتو لفظو څخه مرکب وي، لېکن "اِضْرِبْ" یوه کلمه ده بیا هم و دې ته جمله ویل کیږي.

**جواب:** جمله عامه ده کله یې دواړه اجزاء لفظي وي، لکه: په "ضَرَبَ زَيْدٌ، زَيْدٌ قَائِمٌ" او کله یو لفظي او بل تقدیري وي، لکه په "اِضْرِبْ" کي چي د "اَنْتَ" ضمیر پکښي مستتر دئ.

**سوال:** د "اَنْتَ" ضمیر مرفوع منفصل دئ او استتار یعني پټوالی خو خاصه د مرفوع متصل ده.

**جواب:** په "اِضْرِبْ" کي مرفوع متصل ضمیر مستتر دئ (۲) خو "مُعَبَّرٌ" په "اَنْتَ" سره دئ لېکن تعبیر یې د استتار اختیار کړی دئ د مبتدیانو د سهولت دپاره.

---

(۱) "ضَرَبَ زَيْدٌ، و زَيْدٌ قَائِمٌ" "ضَرَبَ زَيْدٌ" فعل و فاعل معطوف علیه "زَيْدٌ قَائِمٌ" مبتداء او خبر معطوف دا به جمله معطوفه سي.

(۲) د مستتر ضمائرو دپاره څه شکل او صورت نه وي، لېکن د مبتدیانو د سهولت دپاره موږ دا وایو چي په "اِضْرِبْ" کي "اَنْتَ" مستتر دئ.

## جملې:

| عنوان | اسم، فعل، حرف | خبر، انشاء | اقسام اربعه یا جملې | تعیین مرکب غیر مفید | مسند | مسند الیه | فضله | ادات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| صَدَقَةُ الْفِطْرِ وَاجِبَةٌ | ۳.اسم | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت اضافی | وَاجِبَةٌ | صَدَقَةُ الْفِطْرِ | + | + |
| جِبْرَئِيْلُ علیه السلام رَسُوْلٌ أَمِيْنٌ | ۵.اسم ۱.حرف | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت توصیفی | رَسُوْلٌ أَمِيْنٌ | جِبْرَئِيْلُ | اَلسَّلَامُ | عَلَى |
| اَلْقَبْرُ أَوَّلُ مَنْزِلٍ مِنْ مَنَازِلِ الْآخِرَةِ | ۵.اسم ۱.حرف | خبر | اسمیه | ۲.مرکب تقییدی بصورت اضافی | أَوَّلُ مَنْزِلٍ | اَلْقَبْرُ | مَنَازِلِ الْآخِرَةِ | مِنْ |
| قِيَامُ اللَّيْلِ دَأْبُ الصَّالِحِيْنَ | ۳.اسم | خبر | اسمیه | ۲.مرکب تقییدی بصورت اضافی | دَأْبُ الصَّالِحِيْنَ | قِيَامُ اللَّيْلِ | + | + |
| خَطَبَ سِيْبَوَيْهِ | ۱.فعل، ۱.اسم | خبر | فعلیه | مرکب غیر تقییدی بصورت صوتی | خَطَبَ | سِيْبَوَيْهِ | + | + |
| عَذَابُ الْقَبْرِ حَقٌّ | ۳.اسم | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت اضافی | حَقٌّ | عَذَابُ الْقَبْرِ | + | + |
| جَاءَنِيْ أَحَدَ عَشَرَ مُعَلِّمًا | ۳.اسم ۱.فعل | خبر | فعلیه | مرکب غیر تقییدی بصورت بنائی | جَاءَ | أَحَدَ عَشَرَ | نِيْ مُعَلِّمًا | + |
| رَاهَوَيْهِ رَجُلٌ صَالِحٌ | ۳.اسم | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی، غیر تقییدی بصورت صوتی، توصیفی | رَجُلٌ صَالِحٌ | رَاهَوَيْهِ | + | + |
| حَضْرَمَوْتُ بَلْدَةٌ كَبِيْرَةٌ | ۳.اسم | خبر | اسمیه | مرکب غیر تقییدی، تقییدی بصورت منع صرف، توصیفی | بَلْدَةٌ كَبِيْرَةٌ | حَضْرَمَوْتُ | + | + |
| لَا تَجُوْزُ الصَّلٰوةُ خَلْفَ مُنْكِرِ الشَّفَاعَةِ | ۱.فعل ۳.اسم | خبر | فعلیه | مرکب تقییدی بصورت اضافی | لَا تَجُوْزُ | اَلصَّلٰوةُ | خَلْفَ مُنْكِرِ الشَّفَاعَةِ | + |
| صَامَ مَعْدِيْكَرِبُ | ۱.فعل، ۱.اسم | خبر | فعلیه | مرکب غیر تقییدی بصورت منع صرف | صَامَ | مَعْدِيْكَرِبُ | + | + |
| أَدَبُ الْأُسْتَاذِ لَازِمٌ | ۳.اسم | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت اضافی | لَازِمٌ | أَدَبُ الْأُسْتَاذِ | + | + |

## التمرين:

"رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا،، إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُوْلٍ كَرِيْمٍ،، اِتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقَاتِهِ،، مِنْ شَرِّ الْوَسْوَاسِ الْخَنَّاسِ،، فَجَعَلَهُمْ كَعَصْفٍ مَّأْكُوْلٍ،، اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ،، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ،، وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيْمٌ".

بدانکه چون کلمات جمله بسیار باشد الخ: (۱) ........................ الی قوله بدانکه علامات اسم آن است.

---

(۱) مصنف رحمۃ اللہ علیہ فرمایي: چې په جمله کي زياتي کلمې هم راځي او زياتوب لره څه حد او اندازه نسته په دې خبره کي د نحاتو اختلاف دئ چې آيا د مسند او مسند اليه د متعلقاتو په کلام کي دخل سته او که نه د صاحب المفصل د کلام د تعريف څخه دا معلومېږي چې کلام صرف په دوو لفظو کي حصر دئ د متعلقاتو او ملحقاتو په کلام کي قطعا دخل نسته لکه: په "ضَرَبْتُ زَيْدًا قَائِمًا" کي کلام فقط "ضَرَبْتُ" دئ "زَيْدًا قَائِمًا" د کلام څخه خارج دي. ځکه ده د کلام تعريف "اَلْكَلَامُ هُوَ الْمُرَكَّبُ" کړی دئ کله چې ضمير فصل د مبتداء او خبر په مېنځ کي د معرفتوب په حالت کي راسي نو بيا د حصر فائده ورکوي.
او د علامه ابن حاجب د کافيه د عبارت څخه په ظاهر دا معلومېږي چې متعلقاتو لره په کلام کي دخل سته ځکه هغو په تعريف د کلام کي نه د يو حصر کلمه راوړې ده او نه يې قيد د فقط ذکر کړی دئ. (تشوير)

**ترجمه:**

پوه سه! چې په جمله کې کله کلمات زياتې وي، (نو بيا د هرې کلمې پېژندل پکار دي) چې کمه کلمه اسم ده او کمه فعل ده او کمه حرف ده، او بيا ودې ته کتل پکار دي چې کمه کلمه معرب ده او کمه کلمه مبني ده عامل کم يو دئ او معمول کم يو دئ دا هم پېژندل پکار دي، چې د دې کلمو په خپل ميانځ کې څه رنګه تعلق دئ چې په جمله کې مسند او مسند اليه پيدا سي او د جملې معنی په تحقيق سره معلومه سي.

## الدرس التاسع:

د نن سبقه خلاصه څلور (۴) خبري دي:

**اوله خبره:**

د مطالعې اجمالي طريقه:

مصنف رحمة الله عليه د دې ځاى ښخه چې، بدانکه چون کلمات جمله بسيار باشد الخ: دستور المطالعة اجمالاً ذکر کوي چې په کلام عربي کې کله ستا ومخ ته لفظ راسي.

۱. اول: به په جمله کې اسم، فعل او حرف معلوموې.
۲. دوهم: به معرفه او نکره معلوموې.
۳. دريم: به مذکر او مؤنث معلوموې.
۴. څلورم: به معرب او مبني معلوموې.
۵. پنځم: به اعراب معلوموې چې دا لفظ مرفوع دئ منصوب دئ او که مجرور دئ.
۶. شپږم: به وجه د اعراب معلوموې چې بنا بر فاعليت، مفعوليت، اضافت، وغيره اعراب ور کول سوی دئ، يا پر بله بنا باندې.
۷. اووم: به عامل او معمول معلوموې.

**دوهمه خبره:**

د مطالعې تفصيلي طريقه:

دستور او (طریقه) د مطالعې تفصیلاً په دې شکل وي چې په کلام کې به اول مفرد او مرکب معلوموې که چیرې مفرد وو. بیا به په دې کې اسم، فعل او حرف پیژنې که چیرې اسم وو، بیا به په اسم کې پنځه شیان ګورې (۱) معرفه او نکره (۲) مذکر او مؤنث (۳) منصرف او غیر منصرف (۴) معرب او مبني (۵) عامل او معمول.
که چیرې فعل وو، په هغه کې به هم پنځه شیان ګورې (۱) معلوم او مجهول (۲) لازمي او متعدي (۳) متعدي بیک مفعول بدو مفعول بسه مفعول. (۴) معرب او مبني (۵) عامل او معمول.
که چیرې حرف وو، بیا به دوه شیان پکښې ګورې (۱) حروف عامله(۲) حروف غیر عامله. که حروف عامله وه بیا په اوو انواعو کې د حروفو کمه نوعه ده. او که غیر عامله وه، بیا په شپاړس اقسامو کې د حروف غیر عامله کم قسم دئ.

## دریمه خبره:

د لفظ مرکب د اجراء طریقه:
که چیرې لفظ مرکب وو، بیا په هغه کې د یو څو شیانو پېژندل ضروري دي:
۱. مفید او غیر مفید.
۲. که چیرې مرکب مفید وو، نو بیا خبریه او انشائیه معلومول.
۳. که چیرې خبریه وه بیا په خبریه کې اسمیه، فعلیه، ظرفیه، او شرطیه معلومول.
۴. که چیرې انشائیه وه بیا په انشائیه کې اسمیه، فعلیه، ظرفیه او د انشاء علامه معلومول.
۵. که چیرې مرکب غیر مفید وو بیا به تقیدي وي او یا به غیر تقیدي وي.
۶. که چیرې تقیدي وو، بیا په مرکب تقیدي کې اضافي، توصیفي معلومول.
۷. که چیرې غیر تقیدي وو، بیا په غیر تقیدي کې مرکب منع صرف، مرکب صوتي، او مرکب بنائي معلومول دي. بیا په مرکب بنائي کې مرکب من العدد، مرکب من الظروف او مرکب من الاحوال معلومول ضروري دي:

فصل بدانکه علامات اسم آن است الخ: .................. الی قوله فصل بدانکه جمله کلمات عرب بر دو قسم است.

**ترجمه:**

د اسم علامه دا ده چي الف لام یا حرف جریې په سر کي وي، لکه: "اَلْحَمْدُ" و "بِزَيْدٍ" یا یې تنوین په آخر کي وي، لکه: "زَيْدٌ". یا مسند الیه وي، لکه: په "زَيْدٌ قَائِمٌ" کي "زَيْدٌ" یا مضاف وي، لکه: په "غُلَامُ زَيْدٍ" کي "غُلَامٌ" یا تصغیر وي، لکه: "قُرَيْشٌ" یا یاء نسبتي یې په آخر کي راغلې وي، لکه: "بَغْدَادِيٌّ" یا تثنیه وي، لکه: "رَجُلَانِ" یا جمع وي، لکه: "رِجَالٌ" یا موصوف وي، لکه: په "جَاءَ رَجُلٌ عَالِمٌ" (۱) کي "رَجُلٌ" یا تاء متحرکه د هغه په آخر کي راغلې وي، لکه: "ضَارِبَةٌ".

او د فعل علامه دا ده: چي "قَدْ" یې په شروع کي راغلئ وي، لکه: "قَدْ ضَرَبَ" یا "سِيْن" وي، لکه: "سَيَضْرِبُ" یا "سَوْفَ" وي، لکه: "سَوْفَ يَضْرِبُ" یا حرف جزم وي، لکه: "لَمْ يَضْرِبْ". یا ضمیر مرفوع متصل یې په آخر کي راغلی وي، لکه: "ضَرَبْتَ" یا "امر" وي، لکه: "اِضْرِبْ" یا "نهي" وي، لکه: "لَاتَضْرِبْ".

او د حرف علامه دا ده: چي یوه علامه د علامو څخه د اسم او فعل په ده کي نه وي.

**څلورمه خبره:**

د علامې لغوي او اصطلاحي معنٰی:

یو وجود ذهني دشي وي چي (هغه په تعریف سره معلومیږي او هغه تېر سو) یو وجود خارجي د شي وي (هغه په علامو سره معلومیږي).

اوس مصنف رحمه الله د اسم او فعل علامې ذکر کوي. علامه په لغت کي نښانې ته وایي او په اصطلاح کي "عَلَامَةُ الشَّيْئِ مَايُوْجَدُ فِيْهِ وَلَايُوْجَدُ فِيْ غَيْرِهٖ".

د اسم او د فعل او د حرف علامې موږ مخکي په تفصیل سره ذکر کړې او یوه علامه د اسم تنوین هم دئ.

د تنوین لغوي او اصطلاحي معنٰی:

---

(۱) "جَاءَ رَجُلٌ عَالِمٌ" "جَاءَ" فعل "رَجُلٌ" موصوف "عَالِمٌ" صفت موصوف مع الصفت فاعل د فعل جمله فعلیه خبریه.

تنوين په لغت كي نون دادن ته ويل كيږي يعني يو كلمه ته په وينا كي نون ور كول نه په كتابت كي لكه په "ضَارِبٌ" كي او په اصطلاح كي "نُونٌ سَاكِنَةٌ تَتْبَعُ حَرَكَةَ آخِرِ الْكَلِمَةِ لَالِتَاكِيْدِ الْفِعْلِ" تنوين هغه نون ساكن دئ چي د كلمې د آخر حرف تابعداري كوي يعني كه د كلمې آخر حرف مضموم وو دى به هم مضموم وي لكه په "ضَارِبٌ" كي او كه هغه منصوب يا مكسور وو دَى به هم منصوب يا مكسور وي او د فعل د تاكيد دپاره نه راځي لكه په "اِضْرِبَنَّ" او "اِضْرِبَنْ" كي.

د تنوين اقسام:

تنوين پرپنځه (۵) قسمه دئ.

۱. تنوين تمكن.
۲. تنوين تقابل.
۳. تنوين عوض.
۴. تنوين تنكير.
۵. تنوين ترنم.

تنوين تمكن: هغه تنوين دئ چي پر اسم متمكن باندي راځي لكه: "سَعِيْدٌ".

تنوين تقابل: هغه تنوين دئ چي د جمع مؤنث په اخير كي راوړل كيږي په مقابله كي د (نون) د جمع مذكر سالم كي لكه: "مُسْلِمَاتٌ".

تنوين عوض: هغه تنوين دئ چي د مضاف اليه محذوف په عوض كي پر مضاف باندي راوړل كيږي لكه: "يَوْمَئِذٍ، حِينَئِذٍ" په اصل كي "يَوْمَ اِذْ كَانَ كَذَا، حِيْنَ اِذْ كَانَ كَذَا" وو.

تنوين تنكير: هغه تنوين دئ چي د نكره جوړولو په صورت كي راځي لكه: "صَهٍ اى اُسْكُتْ سُكُوْتًا مَّا فِي وَقْتٍ مَّا" هسي په يو وخت كي خاموشه سه.

**فائده**: د تنوين دغه څلور قسمه په اسم پوري خاص دي.

تنوين ترنم: هغه تنوين دئ چي صرف د وزن د برابرېدو دپاره د شعرو په آخر كي را وړل كيږي لكه: په "عِتَابَنْ" او "اَصَابَنْ" كي په دې **شعر** كي: "اَقِلِّي اللَّوْمَ عَاذِلُ وَالْعِتَابَنْ....وَقُوْلِي اِنْ اَصَبْتُ لَقَدْ اَصَابَنْ" (اى محبوبه پر ما باندي ملامتيا او سرزنش كم كړه چي زه كله يو سم كار و كړم نو ته وايې چي تا ښه و كړه). دغه تنوين (ترنم) پر اسم، فعل، حرف پر ټولو باندي راتلاى سي.

## جملې:

| عنوان | اسم، فعل، حرف | خبر، انشاء | اقسام اسمیه یا فعلیه | تعیین مرکب غیر مفید | مسند | مسند الیه | فضله | اداة |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اِنَّ الانسانَ لَفِی خُسرٍ | ۳ـ اسم ۳ـ حرف | خبر | اسمیه | × | کائنٌ لَفِی خُسرٍ | اَلْاِنْسَانَ | خُسْرٍ | اِنَّ، لِ، فِي |
| قَرَأتُ ثَمَانِيَةَ عَشَرَ کِتَابًا | ۳ـ اسم ۱ـ فعل | خبر | فعلیه | مرکب بنائي بصورت اسم عدد | قَرَءَ | تُ | ثَمَانِيَةَ عَشَرَ کِتَابًا | × |
| مَاءُ الحَوضِ حَارٌّ | ۳ـ اسم | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت اضافی | حَارٌّ | مَاءُ الحَوضِ | × | × |
| جَلِيسُ السُّوءِ شَيطَانٌ | ۳ـ اسم | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت اضافی | شَيطَانٌ | جَلِيسُ السُّوءِ | × | × |
| اَدَاءُ الزَّکوٰةِ بَرَکَةُ المَالِ | ۴ـ اسم | خبر | اسمیه | ۲. مرکب تقییدی بصورت اضافی | بَرَکَةُ المَالِ | اَدَاءُ الزَّکوٰةِ | × | × |
| رَاَيتُ مَعدِيکَرَبَ | ۲ـ اسم ۱ـ فعل | خبر | فعلیه | مرکب منع الصرف | رَآی | تُ | مَعدِيکَرَبَ | × |
| اِخرَوْرَقَ ثَوبُ بَکرٍ | ۲ـ اسم ۱ـ فعل | خبر | فعلیه | مرکب تقییدی بصورت اضافت | اِخرَوْرَقَ | ثَوبُ بَکرٍ | × | × |
| مُحَمَّدٌ رَسُولٌ اَمِينٌ | ۳ـ اسم | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت توصیفی | رَسُولٌ اَمِينٌ | مُحَمَّدٌ | × | × |
| اَلدُّنيَا سِجنُ المُؤمِنِ وَجَنَّةُ الکَافِرِ | ۵ـ اسم ۱ـ حرف | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی ۲. اضافی | سِجنُ المُؤمِنِ وَجَنَّةُ الکَافِرِ | اَلدُّنيَا | × | وَ |
| اَلحَيَاءُ شُعبَةٌ مِنَ الاِيمَانِ | ۵ـ اسم ۱ـ حرف | خبر | اسمیه | مرکب تقییدی بصورت توصیفی | کَائِنَةٌ | اَلحَيَاءُ | اَلْاِيمَانِ | مِنَ |
| اَلمُؤمِنُ غِرٌّ کَرِيمٌ وَالفَاجِرُ خَبٌّ لَئِيمٌ | ۸ـ اسم ۱ـ حرف | خبر | اسمیه | + | غِرٌّ کَرِيمٌ، خَبٌّ لَئِيمٌ | اَلمُؤمِنُ، وَالفَاجِرُ | × | وَ |
| اَلاَنَاةُ مِنَ اللّٰهِ وَالعَجَلَةُ مِنَ الشَّيطَانِ | ۸ـ اسم ۳ـ حرف | خبر | اسمیه | × | کَائِنَةٌ مِنَ اللّٰهِ کَائِنَةٌ مِنَ الشَّيطَانِ | اَلاَنَاةُ، وَالعَجَلَةُ | اَللّٰهُ، الشَّيطَانِ باعتبار لفظ | مِنَ، مِنَ |
| اَلخَمرُ جِمَاعُ الاِثمِ | ۳ـ اسم | خبر | اسمیه | مرکب اضافی | جِمَاعُ الاِثمِ | اَلخَمرُ | × | × |
| اَلنِّسَاءُ حَبَائِلُ الشَّيطَانِ | ۳ـ اسم | خبر | اسمیه | مرکب اضافی | حَبَائِلُ الشَّيطَانِ | اَلنِّسَاءُ | × | × |

## التمرين:

"وَلِلّٰهِ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنٰى،، وَلَاتَأْکُلُوْا أَمْوَالَ الْيَتَامٰى،، فَاغْسِلُوا وُجُوهَکُمْ وَأَيْدِيَکُمْ،، وَمَنْ يَرْغَبُ عَنْ مِلَّةِ إِبْرَاهِيمَ،، قُلْ أَعُوْذُ بِرَبِّ الْفَلَقِ،، وَمَثَلُ کَلِمَةٍ خَبِيثَةٍ کَشَجَرَةٍ خَبِيثَةٍ،، وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ،، إِنَّ الَّذِينَ يَرْمُونَ الْمُحْصَنَاتِ الْغَافِلَاتِ الْمُؤْمِنَاتِ لُعِنُوْا".

بدانکه جمله کلمات عرب بر دو قسم است الخ: ............ الی قوله بدانکه اسم غیر متمکن هشت قسم است.

## ترجمه:

پوه سه! چي جمله کلمات د عربو پر دوه قسمه دي اول معرب: هغه دئ چي آخر د ده مختلف کیږي په اختلاف د عوامل سره لکه: "جَائَنِي زَيْدٌ" و "رَأَيْتُ زَيْدًا" و "مَرَرْتُ بِزَيْدٍ" (په مثال اول کي) "جَاءَ" عامل دئ "زَيْدٌ" معرب (معمول) دئ او "ضمه" اعراب ده او "دال" محل د اعراب دئ.

او مبني هغه ته ویل کیږي چي آخر ﺩ ده نه مختلف کیږي په اختلاف ﺩ عوامل سره لکه: "هٰؤُلَاءِ" په حال ﺩ رفع او نصب او جر کي یو رنګه دئ.
پوه سه! چي ټوله حروف مبني دي، او په افعالو کي فعل ماضي (او ﺩ هغه ټول ګردانونه) او ﺩ فعل مضارع هغه صیغې چي په هغه کي نون ﺩ جمع مؤنثي وي، یا نونی ﺩ تاکید (ثقیله او خفیفه) راغلي وي، هغه مبني دي.
پوه سه! چي اسم غیر متمکن مبني دئ او اسم متمکن معرب دئ په دې شرط چي په ترکیب کي واقع سوی وي، او ﺩ فعل مضارع هغه ټولي صیغې معرب دي، چي په هغه کي نون ﺩ جمع مؤنثي او نونی ﺩ تاکید نه وي، پس په کلام عرب کي زیات تر دې دوو قسمو معرب نسته باقي ټوله مبني دي.
اسم غیر متمکن هغه اسم دئ چي ﺩ مبنی الاصل سره مشابهت لري او مبنی الاصل درې شیان دي، (۱) فعل ماضي (۲) امر حاضر معروف (۳) جمله حروف. او اسم متمکن هغه اسم دئ چي ﺩ مبنی الاصل سره مشابهت نه لري.

## الدرس العاشر:

ﺩ نن ﺩ سبقه خلاصه پنځه (۵) خبري دي:

### اوله خبره:

ﺩ معرب لغوي معنٰی [1]:

---

[1] ﺩ معرب دپاره څلور شیان ضروري دي، (۱) اعراب (۲) عامل (۳) سبب اعراب (۴) محل اعراب.
اعراب: هغه حرف یا حرکت دئ چي ﺩ هغه سره ﺩ معرب آخیري لفظ بدلیږي یعني ﺩ چا په ذریعه سره چي ﺩ عامل اثر ښکاره وي.
عامل: چي ﺩ چا په وجه ﺩ کلمې آخر بدلیږي یعني چي ﺩ اعراب تقاضا کونکې معنی په معرب کي پیدا کوي.
سبب اعراب: یعني هغه معنی چي اعراب غواړي.
محل اعراب: ﺩ کلمې هغه آخیري حرف چي پر هغه باندي ﺩ اعراب تبدیلي ښکاره کیږي. (نصر الخبیر)
**فائده:**
عمومًا دا ویل کیږي چي ﺩ عامل په وجه باندي ﺩ معرب آخر بدلیږي مګر تحقیق دا دئ چي عامل پر معرب داخلیږي په معرب کي معنی پیدا کوي، بیا هغه معنی ﺩ اعراب تقاضا کوي، بیا هغه اعراب پر داخلیږي چي ﺩ هغه په وجه باندي ﺩ معرب آخر بدلیږي لکه: "قَامَ زَيْدٌ" نو ځکه اعراب سبب قریب سو، معنی مقتضي سبب بعید سوه او عامل سبب ابعد سو. ﺩ اسم اعراب رفع، نصب،

معرب د ظرف مکان صیغه ده مشتق دئ د اعراب څخه اعراب وايي: اظهار ته نو د معرب معنٰی (جائ ظهور).

د معرب اصطلاحي معنٰی:

معرب په اصطلاح کي "اَلْمُرَكَّبُ الَّذِیْ لَمْ يُشْبِهْ مَبْنِيَّ الْاَصْلِ".

د معرب وجه د تسمیې:

معرب ته ځکه معرب وايي: چي د معرب معنٰی (جائ ظهور) یعني ځای د ښکاره کېدو نو پر معرب باندي هم درې قسمه اعراب لفظًا ښکاره کیږي کله حرفًا وي لکه: واو، الف، یا، کله حرکةً وي لکه: رفع، نصب، جر، د حرکاتو او حروفو د تبدیلۍ په وجه باندي معنٰی د فاعلیت، مفعولیت او اضافت ښکاره کیږي.

د معرب حکم:

"مَا يَتَغَيَّرُ آخِرُهُ بِدُخُوْلِ الْعَوَامِلِ الْمُخْتَلِفَةِ عَلَيْهِ" لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ" "وَرَاَيْتُ زَيْدًا" "وَمَرَرْتُ بِزَيْدٍ".

د مبني معنٰی لغوي:

"مَبْنِيٌّ" بروزن "مَرْمِيٌّ" د اسم مفعول صیغه ده مشتق د بناء څخه په معنٰی د مضبوط والي سره راځي.

د مبني معنٰی اصطلاحي:

مبني په اصطلاح کي: "مَا نَاسَبَ مَبْنِيَّ الْاَصْلِ اَوْ وَقَعَ غَيْرَ مُرَكَّبٍ".

د مبني وجه د تسمیې:

مبني ته ځکه مبني وايي: چي د مبني معنٰی مضبوط والی او د ده آخر هم مضبوطه وي د عواملو د اثراتو څخه.

د مبني حکم:

"مَالَا يَتَغَيَّرُ آخِرُهُ بِدُخُوْلِ الْعَوَامِلِ الْمُخْتَلِفَةِ عَلَيْهِ" لکه: "جَائَنِيْ هٰؤُلَاءِ" "وَرَاَيْتُ هٰؤُلَاءِ" "وَمَرَرْتُ بِهٰؤُلَاءِ".

---

او جر دي. او د فعل اعراب رفع، نصب، جزم دي. د معرب د حرکاتو نوم رفع، نصب او جر دي د مبني د حرکاتو نوم: ضمه، فتحه او کسره دي. (تشویر)

## دوهمه خبره:

د معرب او مبني د پېژندلو طريقه:

چي کله د مطالعې په دوران کي جمله مخته راسي نو "جُمْلَه مِن حَيْثُ الجُمْلَه" د مبني په حکم کي ده او که مفرد مخته راسي کچيري حروف وه نو جمله حروف مبني دي، او که افعال وه نو په افعالو کي فعل ماضي، امر حاضر معروف، او فعل مضارع سره د نون د تاكيد او نون د جمع مؤنثي مبني ده. او که چيري نون د جمع مؤنثي يا نوني د تاكيد نه وو ورسره بيا معربه ده.

او که چيري اسم مخته راسي، نو په اسماءوو کي اسم غير متکمن او اسم متمکن چي په ترکيب کي نه وي واقع سوی مبني دئ، او که په ترکيب کي واقع سوی وو، بيا معرب دئ.

د معرب او مبني د اقسامو خلاصه:

نو خلاصه د کلام دا سوه چي په ټوله کلام عربي کي صرف دوه شيان معرب واقع کيږي:

۱. فعل مضارع چي کله د نوني د تاكيد او د نون د جمع مؤنثي څخه خالي وي لکه: "يَضْرِبُ".

۲. اسم متمکن چي کله په ترکيب کي د عامل سره واقع سوی وي لکه: "زَيْدٌ" په "جَاۤئَنِيْ زَيْدٌ" کي.

## دريمه خبره:

د مبني اقسام:

مبني پر دوه قسمه دئ:

۱. مبنی الاصل.

۲. مبنی غير اصل.

د مبنی الاصل تعريف:

مبنی الاصل هغه مبني دئ چي په اصل وضع کي مبني وي، او د چا سره د مشابهت په وجه نه وي مبني سوئ.

او مبنی الاصل دري شيان دي:

۱. جمله حروف (۱).

---

(۱) حروف ځکه مبني دي، چي په دوی کي هغه معنی مقتضي د اعراب چي فاعليت، مفعوليت، اضافت ده نه پيدا کيږي.

۲. فعل ماضي (۱).

۳. امر حاضر معروف.

د مبني غير اصل تعريف:

مبني غير اصل هغه مبني دئ چي په اصل وضع كي نه وي مبني بلكه د يو مبنى الاصل سره په يو شي كي د مشابهت په وجه مبني سوى وي.

او مبني غير اصل څلور شيان دي (۲):

۱. "جُمْلَه مِنْ حَيْثُ الْجُمْلَه" (۳).

۲. اسم غير متمكن.

۳. اسم متمكن چي په تركيب كي نه وي واقع سوى.

۴. فعل مضارع چي نونات د تاكيد او يا نون د جمع مؤنثي ور سره وي.

---

**سوال**: "اَلْبَاءُ، اَلتَّاءُ" حروف دي بيا هم اعراب پر جاري سوى دئ.

**جواب**: دا حروف نه دي، بلكه د حروفو اسماء دي او دا پر دوه قسمه دي: يو هغه دي چي د شكل او صورت په اعتبار سره د مسمى څخه غير وي، لكه: (ب) مسمى ده او "اَلْبَاءُ" يې اسم دئ نو په دې صورت كي اسم معرب دئ مسمى مبني ده. دوهم هغه دئ چي اسم د مسمى سره عين وي، لكه: "حَتّٰى" اسم هم دئ مسمى هم دئ دا رنګه "فِيْ" په دې صورت كي اسم او مسمى دواړه مبني دي، ځكه كه چيري د عامل په وجه بائدي تغير پكښي وسي نو په مبنى الاصل كي تغير كول لازميږي چي باطل دئ.

(۱) فعل ماضي ځكه مبني ده چي اصل په افعالو كي بناء ده.

(۲) مبني غير اصل پر دوه قسمه دئ: (۱) مبنى غير اصل لازمي (۲) مبنى غير اصل عارضي. مبنى غير اصل لازمي چي د مبنى الاصل سره مشابهت لري هغه پر دولس (۱۲) قسمه دئ:

(۱) مضمرات (۲) اشارات (۳) موصولات (۴) اسماء افعال (۵) بعضي ظروف (٦) اسماء اصوات (۷) اسماء كنايات (۸) مركب بنائي (۹) اسماء شرط (۱۰) استفهام (۱۱) "مَنْ وَمَا اَلْمَوْصُوْفَتَانِ" (۱۲) "لَا، غَيْرُ، لَيْسَ، حَسْبُ".

مبني غير اصل عارضي هغه دئ چي يا خو مركب نه وي، او كه مركب وي، خو د خپل عامل سره مركب نه وي، لكه: "غُلَامُ" په "غُلَامُ زَيْدٍ" كي او دا پر پنځه قسمه دئ: (۱) اسماء معدوده مفرده (۲) اسماء مضافه، (۳) اسم د "لَا" نفي جنس چي كله نكره غير مضاف وي، لكه: "لَارَجُلَ فِي الدَّارِ". (۴) مناداى مفرده معرفه لكه: "يَازَيْدُ" (۵) مناداى نكره مقصوده لكه: "يَا رَجُلُ". (علل النحو)

(۳) كمه جمله چي د كلام په شروع كي واقع سي هغه مبني ده لېكن كه چيري د كلام په مينځ كي واقع سي يا د يو عامل معمول واقع سي نو د صحيح قول مطابق معرب ده.

## څلورمه خبره:

د اسم غير متمكن تعريف:

اسم غير متمكن هغه اسم دئ چي د مبنى الاصل سره مشابهت لري.

د مشابهت اقسام:

مشابهت پر لس (۱۰) قسمه دئ:

١. شبه وضعي (١): شبه وضعي هغه شبه ده چي يو شئ په وزن كي د مبنى الاصل سره مشابه وي: لكه: په "جِئْتُ" كي "تُ" مشابه ده د "بَ" سره يا په "ضَرَبْنَا" كي "نَا" مشابه دئ د "قَدْ او بَلْ" سره.

٢. شبه معنوي (٢): شبه معنوي هغه شبه ده چي يو شئ په معنٰى كي د مبنى الاصل سره مشابه وي لكه: اسماء شرطيه او اسماء استفهاميه دحروف شرطيه وو او د حروف استفهاميه وو سره په معنٰى د استفهام او شرط كي مشابهت لري.

٣. شبه استعمالي: شبه استعمالي هغه شبه ده چي يو شئ د مبنى الاصل سره په استعمال كي مشابهت لري لكه: اسماء افعال چي دحروف عامله وو سره په استعمال كي مشابهت لري (لكه څنګه چي حروف عامله همېشه عامل واقع كيږي نه معمول) داغه رانګه اسماء افعال هم عامل واقع كيږي نه معمول.

---

(١) د شبه وضعي د بناء وجه دا ده: چي په اسم كي كم از كم د درو حروفو وجود ضروري دئ، كه چيري په اسم كي دوه حرفه وي، نو د وضع په اعتبار سره يې يو حرف كم سو او كه يو حرف وي، نو بيا دوه حرفه كم سوه نو د دغه كموالي په وجه باندي اسم په وزن كي د حرف سره برابر سو، او په مضمراتو كي شبه وضعي ځكه ده، چي د اكثر مضمائرو وضع پر يوه يا پر دوه حرفه باندي راغلې ده، او باقي ضمائر طردًا للباب پر دې نورو باندي حمل دي.

او "اَبٌ" و "اَخٌ" كه څه هم دوه حرفه دي لېكن په اصل كي "اَبَوٌ" او "اَخَوٌ" وو.

(٢) شبه معنوي پر دوه قسمه ده: (١)هغه ده چي د موجود حرف معنى لره متضمن وي، لكه: اسماء شرطيه د حروف شرطيوو معنى لره متضمن دي، او حروف شرطيه موجود دي.(٢) بله هغه ده چي د داسي حرف معنى لره متضمن وي، چي هغه موجود نه وي، لكه: اسماء اشارات چي د دوى د معنى دپاره حرف وضع كول په كار وو، لېكن نه دئ وضع سوئ. لېكن "اَىُّ" شرطيه لكه: "اَيَّمَا الْاَجَلَيْنِ قَضَيْتُ" او "اَىُّ" استفهاميه لكه: "اَىُّ الْفَرِيْقَيْنِ اَحَقُّ بِا الْاَمْنِ" دا دواړه معرب دي، ځكه چي د اضافت په وجه باندي مشابهت كمزورى سوى دئ. (شرح ابن عقيل)

۴. شبه افتقاري: شبه افتقاري هغه شبه ده چي يو شی په احتياج کي د مبنی الاصل سره مشابهت لري لکه: څنګه چي حروف په دلالت کولو کي پر خپله معنٰی احتياج لري و ضم د کلمې اخرى ته داغه رنګه مضمرات و مرجع ته احتياج لري او اسماء اشارات و مشار اليه ته احتياج لري او اسماء موصولات و صله ته احتياج لري.

۵. شبه اهمالي: شبه اهمالي هغه شبه ده چي يو شئ د مبنی الاصل سره په اهمال کي مشابه وي لکه: اسماء اصوات چي مشابهت د حروف غير عامله وو سره په اهمال کي لري (لکه څنګه چي حروف غير عامله په ترکيب کي نه عامل واقع کيږي او نه معمول) داغه رنګه اسماء اصوات هم په ترکيب کي نه عامل واقع کيږي او نه معمول.

## پنځمه خبره:

٦. شبه جمودي: شبه جمودي هغه شبه ده چي يو شئ د مبنی الاصل سره په جموديت (وچوالی) کي مشابه وي لکه: "قَطُّ، عَوْضُ" چي مشابهت د حروفو سره په جمودوالي کي لري (لکه څنګه چي حروف تثنيه او جمع نسي را تلای) داغه رانګه "قَطُّ، عَوْضُ" هم تثنيه او جمع نسي را تلای.

٧. شبه نيابتي: شبه نيابتي هغه شبه ده چي يو شئ د مبني پر ځای نائب واقع سوی وي لکه: په "يَازَيْدُ" کي "زَيْدُ" نائب دئ په "اَدْعُوْکَ" د "کَ" اسمي خطابي پر ځای او "کَ" اسمي خطابي مشابه دئ په شکل او صورت کي د "کَ" حرفي خطابي سره په "ذٰلِکَ" کي.

٨. شبه وقوعي: شبه وقوعي هغه شبه ده چي يو شئ د مبني الاصل پر ځای واقع سوی وي لکه: "نَزَالِ، تَرَاکِ" د "اِنْزِلْ، او اُتْرُکْ" پر ځای واقع سوی دئ.

٩. شبه د شبه وقوعي ده: شبه د شبه وقوعي هغه شبه ده چي يو اسم د بل اسم سره په وزن کي مشابهت لري او هغه بل اسم پر ځای د مبني الاصل واقع سوی وي لکه: "فَجَارِ، فَسَاقِ" دا په وزن کي مشابه دي د "نَزَالِ و تَرَاکِ" سره او "نَزَالِ و تَرَاکِ" پر ځای د "اِنْزِلْ او اُتْرُکْ" واقع سوي دي.

١٠. شبه اضافي: شبه اضافي هغه شبه ده چي يو اسم مضاف وي و مبني ته لکه: "يَوْمَئِذٍ" اصل يې "يَوْمَ اِذْ کَانَ کَذَا" وو (دلته "يَوْمَ" مضاف دئ و جمله ته بيا يې جمله حذف کړه د دې په

عوض كي يې تنوين راوړئ نو دلته خو "يَوْمَ" يا و جمله ته مضاف سو، او "جُمْلَه مِنْ حَيْثُ الْجُمْلَه" د مبني په حكم كي ده او يا "يَوْمَ" مضاف دئ و "إِذْ" ته او "إِذْ" مبني دئ).

## جملي:

| عنوان | خبر، انشاء | اقسام اربعه باعتبار | تعین مرکب غیر مفید | معرب | مبنی | مسند | مسند الیه | فضله | ادوات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ | انشاء | فعلیه | مرکب توصیلی | ۲_ معرب | ۳_ مبنی | إِهْدِ | أَنْتَ | نَا، اَلصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ | × |
| قُلْ آمَنْتُ بِاللهِ ثُمَّ اسْتَقِمْ | انشاء | فعلیه | × | ۱_ معرب | ۸_ مبنی | قُلْ، آمَنْ، إِسْتَقِمْ | أَنْتَ، تُ، أَنْتَ | لفظ (الله) | ثُمَّ، بَا. |
| وَالْعَصْرِ | انشائیه | فعلیه | × | ۲_ معرب باعتبار اقسم | ۲_ مبنی | أُقْسِمُ | أَنَا | اَلْعَصْرِ | وَ |
| هُوَ الَّذِيْ يُصَوِّرُكُمْ فِي الْأَرْحَامِ | خبریه | اسمیه | × | ۲_ معرب | ۵_ مبنی | اَلَّذِيْ يُصَوِّرُ الخ | هُوَ | اَلْأَرْحَامِ، كُمْ | فِيْ |
| يَا لَيْتَنِي اتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلاً | انشائیه | اسمیه | مرکب اضافی | ۳_ معرب | ۷_ مبنی | إِتَّخَذْتُ مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلاً | نِيْ | مَعَ الرَّسُوْلِ سَبِيْلاً | يَا، لَيْتَ |
| اَلْقُرْآنُ كَلَامُ اللهِ غَيْرُ مَخْلُوْقٍ | خبریه | اسمیه | ۲. مرکب اضافی ۱. توصیلی | ۵_ معرب | ۱. مبنی | كَلَامُ اللهِ | اَلْقُرْآنُ | × | × |
| سَلَامَةُ الْإِنْسَانِ فِيْ حَبْسِ النَّفْسِ | خبریه | اسمیه | ۲. مرکب اضافی | ۵_ معرب | ۲_ مبنی | كَائِنٌ فِيْ حَبْسِ النَّفْسِ | سَلَامَةُ الْإِنْسَانِ | حَبْسِ النَّفْسِ | فِيْ |
| أَلَا تَأْكُلُ مَعَنَا | انشائیه | فعلیه | مرکب اضافی | ۲_ معرب | ۳_ مبنی | تَأْكُلُ | أَنْتَ | مَعَنَا | + |
| نَحْنُ طُلَّابٌ مُجْتَهِدُوْنَ | خبریه | اسمیه | مرکب توصیلی | ۲_ معرب | ۲_ مبنی | طُلَّابٌ مُجْتَهِدُوْنَ | نَحْنُ | × | × |
| فَقِيْهٌ وَاحِدٌ أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ | خبریه | اسمیه | مرکب توصیلی، اضافی | ٦_ معرب | ۳_ مبنی | أَشَدُّ عَلَى الشَّيْطَانِ مِنْ أَلْفِ عَابِدٍ | فَقِيْهٌ وَاحِدٌ | اَلشَّيْطَانِ أَلْفِ عَابِدٍ | عَلَى، مِنْ |
| رِضَى الرَّبِّ فِيْ رِضَى الْوَالِدِ وَسَخَطُ الرَّبِّ فِيْ سَخَطِ الْوَالِدِ | خبریه | اسمیه | ۴. مرکب اضافی | ۱۰_ معرب | ۵_ مبنی | كَائِنٌ فِيْ رِضَى الْوَالِدِ، فِيْ سَخَطِ الْوَالِدِ | رِضَى الرَّبِّ، وَسَخَطُ الرَّبِّ | رِضَى الْوَالِدِ وَ سَخَطُ الْوَالِدِ | واو، فِيْ، فِيْ |
| حُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ كُلِّ خَطِيْئَةٍ | خبریه | اسمیه | ۳. مرکب اضافی | ۵_ معرب | × | رَأْسُ كُلِّ خَطِيْئَةٍ | حُبُّ الدُّنْيَا | × | × |
| طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ فَرِيْضَةٌ بَعْدَ الْفَرِيْضَةِ | خبریه | اسمیه | ۳. مرکب اضافی ۱. مرکب توصیلی | ۷_ معرب | ۱. مبنی | فَرِيْضَةٌ بَعْدَ الْفَرِيْضَةِ | طَلَبُ كَسْبِ الْحَلَالِ | بَعْدَ الْفَرِيْضَةِ | × |

## التمرين:

"وَإِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ،، قُلْ هُوَ اللهُ أَحَدٌ،، لَأُقَطِّعَنَّ أَيْدِيَكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ مِنْ خِلَافٍ،، وَلَا يُبْدِيْنَ زِيْنَتَهُنَّ،، إِذَا جَاءَ نَصْرُ اللهِ وَالْفَتْحُ،، وَرَأَيْتَ النَّاسَ يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللهِ أَفْوَاجًا،، فَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَاسْتَغْفِرْهُ".

فصل بدانکه اسم غیر متمکن ہشت قسم است الخ: ............... الی قوله دوم اسماء اشارات.

**ترجمه:**

پوه سه! چي اسم غير متمکن پر اته(۸) قسمه دئ اول مضمرات يعني ضميرونه لکه: "اَنَا" (زه يو سړی يا يوه ښځه) "ضَرَبْتُ" (ما وهل کړي وه) "اِيَّایَ" (خاص ما لره) "ضَرَبَنِيْ" (زه يې ووهلم) "لِيْ" (ما لرهَ) دا ټول اويا (۷۰) ضميرونه دي.

څوارلس (۱۴) مرفوع متصل: "ضَرَبْتُ، ضَرَبْنا، ضَرَبْتَ، ضَرَبْتُمَا، ضَرَبْتُمْ، ضَرَبْتِ، ضَرَبْتُمَا، ضَرَبْتُنَّ، ضَرَبَ، ضَرَبَا، ضَرَبُوْا، ضَرَبَتْ، ضَرَبَتَا، ضَرَبْنَ".

څوارلس مرفوع منفصل: "اَنَا، نَحْنُ، اَنْتَ، اَنْتُمَا، اَنْتُمْ، اَنْتِ، اَنْتُمَا، اَنْتُنَّ، هُوَ، هُمَا، هُمْ، هِيَ، هُمَا، هُنَّ".

او څوارلس منصوب متصل: "ضَرَبَنِيْ، ضَرَبَنَا، ضَرَبَکَ، ضَرَبَکُمَا، ضَرَبَکُمْ، ضَرَبَکِ، ضَرَبَکُمَا، ضَرَبَکُنَّ، ضَرَبَهُ، ضَرَبَهُمَا، ضَرَبَهُمْ، ضَرَبَهَا، ضَرَبَهُمَا، ضَرَبَهُنَّ".

او څوارلس منصوب منفصل: "اِيَّایَ، اِيَّانَا، اِيَّاکَ، اِيَّاکُمَا، اِيَّاکُمْ، اِيَّاکِ، اِيَّاکُمَا، اِيَّاکُنَّ، اِيَّاهُ، اِيَّاهُمَا، اِيَّاهُمْ، اِيَّاهَا، اِيَّاهُمَا، اِيَّاهُنَّ".

او څوارلس مجرور متصل: "لِيْ، لَنَا، لَکَ، لَکُمَا، لَکُمْ، لَکِ، لَکُمَا، لَکُنَّ، لَهُ، لَهُمَا، لَهُمْ، لَهَا، لَهُمَا، لَهُنَّ".

د اسم غير متکن اته قسمونه دا دي: (۱) مضمرات (۲) اسماء اشارات (۳) اسماء موصولات (۴) اسماء افعال (۵) اسماء ظروف (٦) اسماء اصوات (۷) اسماء کنايات (۸) مرکب بنائي.

## الدرس الحادي عشر:

د نن د سبق خلاصه شپږ (٦) خبري دي:

**اوله خبره:**

د ضمير لغوي او اصطلاحي معنیٰ:

"مُضمرات" جمع د "مُضْمَرْ" دہ: او "مضمر" (۱) صيغه د اسم مفعول ده د "اضمار" څخه. "مضمر" په لغت کي پوشيده او (پټ کړل سوي ته وايي) او زړه ته هم ضمير وايي: ځکه دی هم پټ دئ په څو پردو کي، لکه: بعضي خلک وايي: زه اظهار د "مَا فِي الضَّمِيْرِ" کوم او په اصطلاح کي "مَا وُضِعَ لِمُتَكَلِّمٍ اَوْ مُخَاطَبٍ اَوْ غَائِبٍ تَقَدَّمَ ذِكْرُهُ لَفْظًا اَوْ مَعْنًا اَوْ حُكْمًا" ضمير هغه اسم دئ چي دی وضع سوی وي، د متكلم يا مخاطب يا غائب دپاره هسي غائب چي د هغه تذكره مخكي تېره سوې وي، لفظًا يا معنًا يا حكمًا.

د مرجع اقسام:

مرجع پر درې قسمه ده:

١. لفظي.
٢. معنوي.
٣. حكمي.

بيا هره يو پر دوه قسمه دئ.

د مرجع لفظي اقسام:

مرجع لفظي پر دوه قسمه ده:

١. مرجع حقيقي.
٢. مرجع تقديري:

مرجع حقيقي هغه مرجع ده چي لفظًا و رتبةً په دواړه اعتبار سره مقدم وي، لكه: "ضَرَبَ زَيْدٌ غُلَامَهُ" (٢).

مرجع تقديري: هغه مرجع ده چي د رتبې په لحاظ سره مقدمه وي، لېكن په لفظو كي مؤخره وي، لكه: "ضَرَبَ غُلَامَهُ زَيْدٌ" (١).

---

(١) د ضمير د خپلي مرجع سره په پنځو شيانو كي مطابقت ضروري دئ: (١) وحدت (٢) تثنيه (٣) جمع (۴) تذكير (۵) تانيث. د ضمير متكلم او د مخاطب د ضمير د مرجع د تلاشولو ضرورت نسته ځكه دا ضمائر د مرجع محتاجه نه دي چونكه د متكلم ضمير "اعرف المعارف (يعني د ټولو زيات معرفه دئ) نو ځكه يې مقدم كړی دئ. (مفقود النظير في تراكيب نحو مير).

(٢) په "ضَرَبَ زَيْدٌ غُلَامَهُ" كي د "غُلَامَهُ" ضمير و "زَيْدٌ" ته راجع دئ او "زَيْدٌ" هم رتبةً مخكي دئ ځكه دی فاعل دئ او د فاعل رتبه د فعل څخه وروسته وي، او د مفعول څخه مخكي وي، او هم لفظاً مخكي دئ. وهو ظاهر.

## دوهمه خبره:

د مرجع معنوي اقسام:

مرجع معنوي هم پر دوه قسمه ده: (١) خاص الكلام (٢) سياق الكلام.

خاص الكلام: هغه مرجع معنوي ده چي لفظًا مخكي نه وي تېره سوې بلكه په ماقبل كي د يو خاص كلام څخه معلوميږي لكه: "اِعْدِلُوْا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى" (٢).

سياق الكلام: چي مرجع مخكي لفظًا نه وي تېره سوې بلكه: د كلام د سياق و سباق څخه معلوميږي لكه: "وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ" (٣).

د مرجع حكمي اقسام:

مرجع حكمي هم پر دوه قسمه ده يو هغه مرجع چي نه لفظًا مقدمه وي او نه معنًا مقدمه وي، بلكه "معهود في الذهن" وي. په وروسته كي يې تفسير په مفرد نكره سره سوى وي، لكه: "نِعْمَ رَجُلًا" "رُبَّهُ رَجُلًا جَوَّادًا" (٤) ودې ضمير ته ضمير "مبهم" ويل كيږي.

دوهم هغه مرجع ده چي نه لفظًا مقدمه وي، او نه معنًا بلكه "معهود في الذهن" وي، په وروسته كي يې تفسير په جمله سره سوى وي، كچيري د مذكر ضمير وي، ضمير "شان" (١) ورته ويل كيږي

---

(١) په "ضَرَبَ غُلَامَهُ زَيْدٌ" كي د "غُلَامَهُ" ضمير راجع دئ و "زَيْدٌ" ته او "زَيْدٌ" كه څه هم كتابةً وروسته دئ لېكن رتبةً مخكي دئ ځكه په دې مثال كي دى فاعل دئ او فاعل رتبةً تر مفعول مخكي وي. (از مرتب عفي عنه)

(٢) په "اِعْدِلُوْا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى" كي مشتق منه د مشتق په ضمن كي موجود دئ ځكه په هر مشتق كي خپله مبدء موجوده وي يعني دلته د "هُوَ" ضمير راجع دئ و "عدل" ته او د "عدل" لفظ مخكي نه رتبةً ذكر سوى دئ او نه كتابةً بلكه: معنًا موجود دئ په ضمن د مشتق چي "اِعْدِلُوْا" دئ ځكه په هر فعل كي د خپل مصدر معنٰى موجوده وي.

(٣) په "وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ" كي د "لِأَبَوَيْهِ" ضمير و ميت (مړي) ته راجع دئ چي نه كتابةً مخكي ذكر سوى دئ او نه رتبةً بلكه معنًا د كلام د "سياق" او "سباق" څخه د ده تذكره معلوميږي ځكه دا مضمون د ميراثو دئ او ميراث صرف د مړي وي نه د ژوندي.

(٤) په "نِعْمَ رَجُلًا" كي او په "رُبَّهُ رَجُلًا جَوَّادًا" كي په "نِعْمَ" او "رُبَّهُ" كي ضمير دئ راجع دئ "رَجُلًا" ته او د "رَجُلًا" تذكره مخكي نه لفظًا تېره سوې ده او نه معنًا بلكه حكمًا يې تذكره سوې ده. ځكه وروسته يې تفسير په نكره مفرده سره سوى دئ او دا غه رنګه يې په "قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ" كي يې تفسير په جمله سره سوى دئ.

لکه: "اِنَّهُ زَيْدٌ قَائِمٌ" يا "قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ" او که د مؤنث ضمير وي، و هغه ته ضمير "قصه" ويل کيږي: لکه "اِنَّهَا زَيْنَبُ قَائِمَةٌ".

**دريمه خبره:**

د ضمير تقسيمات (٢):

په ضمير کې درې تقسيمونه جوړيږي: اول تقسيم په اعتبار د "اتصال" او "انفصال" سره دئ، دوهم تقسيم په اعتبار د اعراب يعني مرفوع، منصوب، مجرور، سره دئ. دريم تقسيم په اعتبار د "ابراز" يعني اظهار او د "استتار" سره دئ.

د ضمير اول تقسيم:

د اتصال او انفصال په اعتبار سره ضمير پر دوه قسمه دئ:

١. ضمير متصل:
٢. ضمير منفصل.

د ضمير متصل تعريف:

---

(١) د ضمير شان ذپاره څلور شرطونه دي: (١) ضمير د غائب به وي (٢) د ده وروسته به جمله وي (٣) وروسته جمله به د ده تفسير کوي (۴) د جمله مضمون به عظيم الشان وي، ضمير شان کله منصوب وي لکه: "اِنَّهُ زَيْدٌ قَائِمٌ" کله مرفوع بارز وي، لکه: "قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ" کله مرفوع مستتر وي لکه: "كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا" او ضمير شان کله کله حذف کيږي وجوبًا لکه: "اَنِ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ" په اصل کې "اَنَّهُ" وو او کله جوازًا لکه: "اِنْ هٰذَانِ لَسَاحِرَانِ" "اِنْ" مخففه من المثقله د ده اسم ضمير شان محذوف دئ او د ضمير شان څخه مقصود د واقعې عظمت بيانول وي نو ځکه اول ضمير مبهم ذکر سي وروسته يې بيا تفصيل بيان سي چې د مخاطب په ذهن کې د واقعې عظمت زيات سي او "اَوْقَعُ فِي النَّفْسِ" سي. (حاشية الصبيان على شرح اجرومية)

(٢) په اصل کې دوي نيوي (٩٠) ضميرونه دي هغه په دې شکل چې شپږ د غائب او شپږ د مخاطب او شپږ د متکلم دا ټوله اتلس (١٨) جوړيږي بيا چې اتلس (١٨) ته په پنځو کې ضَرب ور کړې نيوي (٩٠) جوړيږي لېکن د متکلم دپاره صرف دوې صيغې استعماليږي او د غائب او مخاطب دپاره صرف دولس (١٢) صيغې استعماليږي ځکه په تثنيه غائب او غائبه کې "الف" ضمير د فاعل دئ چې يو دئ او په تثنيه مخاطب او مخاطبه کې د "تُمَا" ضمير فاعل دئ چې يو دئ. پنځو ته چې په څلوار لس (١۴) کې ضرب ور کړې نو اويا (٧٠) ضميرونه کيږي.

"هُوَ مَا لَا يَفْتَتِحُ النُّطْقُ بِهِ وَلَا يَقَعُ بَعْدَ اِلَّا" چي نه په ده سره شروع د کلام کېدای سي يعني نه مبتداء جوړېدای سي او نه تر "اِلَّا" وروسته واقع کيږي "الالضرورة الشعر". مجرور لکه: "غُلَامِيْ" مرفوع لکه: "ضَرَبْتَ" منصوب لکه: "اَكْرَمْتُكَ".

د ضمير منفصل تعريف:

"هُوَ مَا يَفْتَتِحُ النُّطْقُ بِهِ وَ يَقَعُ بَعْدَ اِلَّا". چي په ده سره نطق هم صحيح کيږي او د "اِلَّا" بعد هم واقع کيږي لکه: "اَنَا زَيْدٌ" يا "مَا ذَهَبَ اِلَّا اَنَا".

د ضمائرو متصلو تعداد:

ضمائري متصله نه دانې دي (١): (١) "الف" لکه "ضَرَبَا" (٢) "واو" لکه: "ضَرَبُوْا" (٣) "نون" لکه: "ضَرَبْنَ" (۴) "تا" لکه: "ضَرَبْتِ" دغه څلور صرف مرفوع متصل واقع کيږي (۵) "يا" او (٦) "نا" دا مرفوع متصل هم راځي لکه: "تَكْتُبِيْنَ كَتَبْنَا" او منصوب متصل هم راځي لکه: "اَكْرَمَنِيْ اَكْرَمَنَا" او مجرور متصل هم راځي لکه: "عَنِّي عَنَّا". (٧) "کاف" (٨) "هاء" (٩) "ها" دا درې سره منصوب متصل هم راځي د "کاف" مثال لکه: "ضَرَبَكَ". د "ها" مثال لکه: "ضَرَبَهُ". د "هاء" مثال لکه: "ضَرَبَهَا" او مجرور متصل هم راځي د "کاف" مثال لکه: "لَكَ". د "ها" مثال لکه: "لَهُ". د هاء مثال لکه: "لَهَا".

**څلورمه خبره:**

د ضمير دوهم تقسيم په اعتبار د اعراب سره دئ:

ضمير په اعتبار د اعراب سره پر درې قسمه دئ:

١. مرفوع. ٢. منصوب. ٣. مجرور.

---

(١) مختص بالرفع پنځه دانې دي (١) "تاء" په "قُمْتِ" کي (٢) "الف" په "قَامَا" کي. (٣) "واو" په "قَامُوْا" کي (۴) "نون" په "قُمْنَ" کي (۵) يا ضمير د مخاطبه په "تَضْرِبِيْنَ" کي. (النحو الوافي)

مشترک بين النصب والكسرة درې دانې دي: (١) "ياء" د متكلم په "اَكْرَمَنِيْ" او په "غُلَامِيْ" کي (٢) "کاف" د خطاب په "مَا وَدَّعَكَ رَبُّكَ" کي (٣) "ها" د غائب په "قَالَ لَهُ صَاحِبُهُ وَهُوَ يُحَاوِرُهُ" کي.

مشترک بين الثلاثة يو ضمير دئ: چي د "نا" ضمير دئ لکه: په "رَبَّنَا اِنَّنَا سَمِعْنَا" کي. (النحو الوافي)

بيا هر يو پر دوه قسمه دئ: متصل او منفصل خلاصه دا چي ټوله شپږ قسمونه جوړيږي: (۱) مرفوع متصل، (۲) مرفوع منفصل، (۳) منصوب متصل، (۴) منصوب منفصل، (۵) مجرور متصل، (٦) مجرور منفصل.

لېکن مجرور منفصل په کلام عربي کي وجود نه لري ځکه د منفصل دا مطلب دئ چي دی مخکي هم راتلای سي او وروسته هم راتلای سي نو که چيري مخکي سي بيا به تقديم د مجرور پر جار راسي او دا باطل دئ، لکه: د "مِنْکَ" ځخه "اِيَّاکَ مِنْ" ويل.

په ترکيب کي د دې پنځو قسمو ضمائرو معرفت (پېژندنه):

۱. ضمير مرفوع متصل: د فعل سره متصل (موښتئ) وي او په ترکيب کي "فاعل" يا "نائب فاعل" واقع کيږي، لکه: "ضَرَبْتَ" او "ضُرِبْتَ".

۲. ضمير مرفوع منفصل: د فعل ځخه منفصل (جلا) وي او په ترکيب کي "مبتداء، فاعل، يا خبر" واقع کيږي. د مبتداء مثال لکه: "اَنَا مُؤْمِنٌ"، او د خبر مثال لکه: "اَرَاغِبٌ اَنْتَ". او د "فاعل" مثال لکه: "مَاقَامَ اِلَّا اَنَا".

۳. ضمير منصوب متصل: د فعل سره متصل (موښتئ) وي او په تر کيب کي مفعول به واقع کيږي لکه: "ضَرَبَکَ" يا د حروف مشبه بالفعل سره متصل (موښتئ) وي او د هغه دپاره اسم واقع کيږي، لکه: "اِنَّکَ".

۴. ضمير منصوب منفصل: د فعل ځخه منفصل (جلا) وي او په ترکيب کي "مفعول" واقع کيږي، لکه: "اِيَّاکَ نَعْبُدُ".

۵. ضمير مجرور متصل: چي د حرف جر يا مضاف سره متصل او موښتئ وي، او په ترکيب کي د مضاف دپاره "مضاف اليه"، او د حرف جر دپاره "مجرور" واقع کيږي، لکه: "غُلَامِيْ" او "لِيْ".

## پنځمه خبره:

د ضمير دريم تقسيم:

ضمیر په اعتبار د ابراز او استتار سره هم پر دوه قسمه دئ: (۱) بارز (ښکاره) (۲) مستتر (پټ).
بیا مستتر پر دوه قسمه دئ: (۱) "جَائِزُ الاِسْتِتَارْ" یعني ضمیر عارضي (۲) "وَاجِبُ الاِسْتِتَارْ" یعني ضمیر دائمي.

د ضمیر بارز تعریف:

"مَالَهُ صُوْرَةٌ ظَاهِرَةٌ فِيْ التَّرْكِيْبِ نُطْقًا وَ كِتَابَةً" چي دی ظاهري وجود لري په ترکیب کي لکه: "اَنَا رَاَيْتُكَ".

د ضمیر مستتر تعریف:

"مَا يَكُوْنُ خَفِيًّا غَيْرَ ظَاهِرٍ فِي النُّطْقِ وَ الْكِتَابَةِ" چي دی ظاهري وجود نه لري په ترکیب کي. لکه: د "هُوَ" ضمیر په "ضَرَبَ" کي.

**فائده:**

په ټولو ضمائرو کي صرف مرفوع مَتصل ضمیر مستتر یږي.

د مستتر ضمیرو تعداد:

مستتر ضمیرونه پنځه داني دي دوه داني "جَائِزُ الاِسْتِتَار" دي اول "هُوَ" دوهم "هِيَ". دري داني "وَاجِبُ الاِسْتِتَار" دي اول "اَنْتَ" دوهم "اَنَا". دریم "نَحْنُ".

د استتار ځایونه:

د استتار دپاره یو څو مځلونه او ځایونه دي د ماضي په دوو صیغو کي: (۱) "ضَرَبَ" (۲) "ضَرَبَتْ". او د مضارع په پنځو صیغو کي: (۱) "يَضْرِبُ" (۲) "تَضْرِبُ" (۳) "تَضْرِبُ" (۴) "اَضْرِبُ" (۵) "نَضْرِبُ". او د صفت په صیغو کي همېشه مطلقا مستتر وي یعني بارز نه راځي او د امر حاضر معروف په اوله صیغه کي لکه: په "اِضْرِبْ" کي، او باقي "امر غائب، نهي حاضر و غائب" او "نفي" "مُؤَكَّدْ بَلَنْ" او جحد و غیره د مضارع په حکم کي دي.

**شپږمه خبره:**

د ضمیر مستتر اقسام:

**ضمير مستتر پر دوه قسمه دئ:**

۱. ضمير مستتر جوازي (عارضي).

۲. ضمير مستتر وجوبي (دائمي).

**د ضمير مستتر جوازي تعريف:**

ضمير مستتر جوازي هغه ضمير دئ چې په صيغه کې يې پټول او نه پټول دواړه جائز دي کچيري وروسته اسم ظاهر فاعل جوړېدای سي نو هغه يې فاعل دئ ورنه په ده کې ضمير مستتر دئ د ده دپاره فاعل دئ.

**د ضمير مستتر جوازي ځايونه:**

"جَائِزُ الْاِسْتِتَارْ" ضمير صرف په پنځو صيغو کې راځي د فعل ماضي په دوو صيغو کې (۱) په "ضَرَبَ" کې "هُوَ" (۲) په "ضَرَبَتْ" کې "هِيَ" (۱) باقي په دولس صيغو کې بارز يعني ښکاره دئ مطلب په "ضَرَبَا" کې الف. په "ضَرَبُوْا" کې واو. "وَ قِسْ عَلَيْهِ الْآخِرِيْنَ" او د فعل مضارع په دوو صيغو کې (۱) په "يَضْرِبُ" کې "هُوَ". (۲) په "تَضْرِبُ" کې "هِيَ" باقي په نه (۹) صيغو کې بارز

---

(۱) د ماضي او مضارع په دغه دوو صيغو کې فاعل کله ظاهر راځي او کله ضمير.

د پېژندلو طريقه يې دا ده کچيري دغه دوې صيغې د کلام په شروع کې راسي نو بيا د دوی فاعل اسم ظاهر وي، لکه: "خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوبِهِمْ" او کچيري دغه دوې صيغې د کلام په مينځ کې راسي نو بيا د دوی فاعل ضمير وي، او هغه په شپږ ځايو کې راځي:

۱. کله چې خبر د مبتداء وي، لکه: "اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ".

۲. يا صله دپاره د موصول وي لکه: "اَلَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ".

۳. يا صفت د موصوف وي لکه: "تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ".

۴. يا حال د ذوالحال وي لکه: "جَاءَنِيْ زَيْدٌ قَدْ رَكِبَ".

۵. يا معطوف د معطوف عليه وي لکه: "اَلَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ فِرَاشًا وَالسَّمَاءَ بِنَاءً وَاَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً"

۶. يا يو داسي قرينه موجوده وي چې د ماقبل د مرجع پر وجود دلالت کوي لېکن که چيري د دغه دوو صيغو د کلام په مينځ کې د راتللو باوجود د دوی څخه وروسته ضمير راغلی وو چې راجع و مبتداء يا موصول ته وو نو بيا د دوی فاعل اسم ظاهر واقع کيږي نه ضمير لکه: "وَعَدَ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالْمُؤْمِنَاتِ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهَارُ" "اَلْمُسْلِمُ مَنْ سَلِمَ الْمُسْلِمُوْنَ مِنْ لِّسَانِهٖ وَيَدِهٖ" (العلامات النحوية).

دئ. او د صفت يعني د اسم فاعل، او اسم مفعول، صفت مشبه، اسم تفضيل و غيره په صيغو (١) کي همېشه مطلقا "جَائِزُ الْاِسْتِتَارْ" وي.

د ضمير مستتر وجوبي تعريف:

ضمير مستتر وجوبي هغه ضمير دئ چي د ده پټول په صيغه کي همېشه واجب وي، که څه هم وروسته اسم ظاهر راسي.

د ضمير مستتر وجوبي ځايونه:

"وَاجِبُ الْاِسْتِتَارْ" ضميرونه هم صرف په اتو (٨) ځايو کي راځي د مضارع په درو صيغو کي (١) "تَضْرِبُ" مخاطب کي "اَنْتَ" (٢) په "اَضْرِبُ" کي "اَنَا". (٣) په "نَضْرِبُ" کي "نَحْنُ". (۴) او د امر حاضر معروف په اوله صيغه: په "اِضْرِبْ" کي "اَنْتَ". (۵) او په اسماء افعالو کي کله چي په معنٰی د امر سره وي، لکه: "رُوَيْدَ" په معنٰی د "اَمْهِلْ" سره د "اَنْتَ" ضمير کي مستتر دئ. (٦) په فعل تعجب کي چي پر وزن د "مَااَفْعَلَ" باندي راځي لکه: "مَا اَحْسَنَ الْعِلْمَ". (٧) په افعالو د استثناء کي لکه: "خَلَا، عَدَا، حَاشَا، لَيْسَ، وَلَايَكُوْنُ" کي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ خَلَا زَيْدًا". (٨) په هغه مصدر کي چي دی قائم مقام د خپل فعل وي لکه: "صَبْرًا عَلَى الشَّدَائِدِ اَیْ اِصْبِرْ صَبْرًا" چي د "اَنْتَ" ضمير وجوبًا پکښي مستتر دئ.

---

(١) د صفت په صيغو يعني په اسم فاعل، اسم مفعول، اسم تفضيل، صفت مشبه او اسم مبالغه کي همېشه مطلقا ضمير مرفوع متصل "جَائِزُ الْاِسْتِتَارْ" وي او هغه ټوله شپږ ضميرونه دي: "هُوَ، هُمَا، هُمْ، هِیَ، هُمَا، هُنَّ" او په اسم ظرف او اسم آله کي ضمير نه راځي او په فعل تعجب کي اختلاف دئ.

لېکن يوه اهمه نکته ياد ساتل هغه دا چي که چيري د اسماء صفاتو څخه مخکي د مرفوع متصل ضمير راسي نو بيا په دوی کي هغه مرفوع متصل ضمير نه پاته کيږي چي مخکي پکښې وو بلکه: دغه منفصل ضمير په دوی کي "جَائِزُ الْاِسْتِتَارْ" دئ لکه: په "اَنَا غَائِبٌ" کي د "هُوَ" ضمير نسته بلکه د "اَنَا" ضمير دئ او په "نَحْنُ اَقْرَبُ" کي د "هُوَ" ضمير نسته بلکه د "نَحْنُ" ضمير مرفوع متصل مستتر "جَائِزُ الْاِسْتِتَارْ" دئ. (العلامات النحوية)

# جملے:

| عنوان | خبریہ، انشائیہ | اقسام اربعہ یا ثلاثہ | تعداد مرکب غیر مفید | تعداد معرب | تعداد مبنی | مسند | مسند الیہ | متصل | منفصل |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَادْخُلِيْ فِيْ عِبَادِيْ وَادْخُلِيْ جَنَّتِيْ | انشائیہ | فعلیہ | ۲۔ مرکب اضافی | ۲_ معرب | ۹_ مبنی | فَادْخُلِيْ | أَنْتِ | ۲۔ مرفوع، ۲۔ مجرور | × |
| قُلْ هُوَ اللّٰهُ أَحَدٌ | انشائیہ | فعلیہ | × | ۲_ معرب | ۳_ مبنی | قُلْ | أَنْتَ | ۱۔ مرفوع | هُوَ |
| رَحْمَتِيْ وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ | خبریہ | اسمیہ | ۲۔ مرکب اضافی | ۳_ معرب | ۳_ مبنی | وَسِعَتْ كُلَّ شَيْءٍ | رَحْمَتِيْ | ۱۔ مجرور ۱۔ مرفوع | × |
| قَدْ سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّتِيْ .. تُجَادِلُكَ | خبریہ | فعلیہ | ۱۔ مرکب اضافی | ۳_ معرب | ۵_ مبنی | سَمِعَ | اَللّٰهُ | ۱۔ مرفوع، ۱۔ منصوب | × |
| اُذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ | انشائیہ | فعلیہ | ۲۔ مرکب توصیفی و اضافی | ۱_ معرب | ۸_ مبنی | اُذْكُرُوْا | أَنْتُمْ | ۲۔ مرفوع، ۲۔ مجرور | × |
| لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ | خبریہ | ظرفیہ | ۱۔ مرکب اضافی | ۳_ معرب باعتبار متعلق | ۴_ مبنی | ثَابِتٌ | مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ | ۱۔ مرفوع، ۱۔ مجرور | × |
| اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ | انشائیہ | فعلیہ | ۱۔ مرکب توصیفی | ۲_ معرب | ۳_ مبنی | اِهْدِ | أَنْتَ | ۱۔ مرفوع، ۱۔ منصوب | × |
| لَكُمْ دِيْنُكُمْ | خبریہ | ظرفیہ | ۱۔ مرکب اضافی | ۲_ معرب باعتبار متعلق | ۳_ مبنی باعتبار متعلق | لَكُمْ باعتبار متعلق | دِيْنُكُمْ | ۱۔ مرفوع باعتبار متعلق، ۲_ مجرور | + |
| اِغْسِلْ يَدَيْكَ | انشائیہ | فعلیہ | ۱۔ مرکب اضافی | ۱_ معرب | ۳_ مبنی | اِغْسِلْ | أَنْتَ | ۱_ مرفوع، ۱_ مجرور | × |
| جَاءَ الَّذِيْ أَعْطَاكَ | خبریہ | فعلیہ | × | × | ۵_ مبنی | جَاءَ | اَلَّذِيْ أَعْطَاكَ | ۱_ مرفوع، ۱_ منصوب | × |
| وَجَعَلْنَا نَوْمَكُمْ سُبَاتًا | خبریہ | فعلیہ | ۱۔ مرکب اضافی | ۲_ معرب | ۳_ مبنی | جَعَلَ | نَا | ۱_ مرفوع، ۱_ مجرور | × |
| أَنْتُمْ رِجَالٌ عَالِمُوْنَ | خبریہ | اسمیہ | ۱۔ مرکب توصیفی | ۲_ معرب | ۲_ مبنی | رِجَالٌ عَالِمُوْنَ | أَنْتُمْ | ۱۔ مرفوع | ۱_ مرفوع |
| رَسُوْلُنَا مُحَمَّدٌ | خبریہ | اسمیہ | ۱۔ مرکب اضافی | ۲_ معرب | ۱_ مبنی | مُحَمَّدٌ | رَسُوْلُنَا | ۱_ مجرور | × |
| نَصَرْتَنِيْ | خبریہ | فعلیہ | × | × | ۳_ مبنی | نَصَرَ | تَ | ۱۔ مرفوع، ۱۔ منصوب | × |
| لَكُمْ مَا سَأَلْتُمْ | خبریہ | اسمیہ | × | ۱۔ معرب باعتبار ثابت | ۶_ مبنی | لَكُمْ باعتبار متعلق | مَا سَأَلْتُمْ | ۲۔ مرفوع، ۱۔ مجرور | × |
| ضَرَبْنَاكَ | خبریہ | فعلیہ | × | × | ۳_ مبنی | ضَرَبَ | نَا | ۱۔ مرفوع، ۱۔ منصوب | + |
| أَنَا أَخُوْ عَمْرٍو | خبریہ | اسمیہ | ۱۔ مرکب اضافی | ۲_ معرب | ۱_ مبنی | أَخُوْ عَمْرٍو | أَنَا | + | ۱۔ مرفوع |
| ضَرَبَكَ زَيْدٌ | خبریہ | فعلیہ | × | ۱_ معرب | ۲_ مبنی | ضَرَبَ | زَيْدٌ | ۱۔ منصوب | × |
| ضَرَبَهَا عَمْرٌو | خبریہ | فعلیہ | × | ۱_ معرب | ۲_ مبنی | ضَرَبَ | عَمْرٌو | ۱۔ منصوب | × |

## التمرين:

"نَحْنُ مُصْلِحُونَ،، إِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُونَ،، وَإِذَا خَلَوْا إِلَى شَيَاطِينِهِمْ،، هُوَ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ،، تَبَارَكَ الَّذِي نَزَّلَ الْفُرْقَانَ،، أَأَنْذَرْتَهُمْ،، وَإِنَّ رَبَّكَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الرَّحِيمُ،، إِيَّاكَ نَعْبُدُ".

دوم اسماء اشارات الذی، الذان، الخ: ............................ الی قوله پنجم اسماء اصوات.

### ترجمه:

دوهم اسماء اشارات دي هغه "ذَا، ذَانِ، ذَيْنِ، تَا، تِيْ، تِهْ، ذِهْ، ذِهِيْ، تِهِيْ، تَانِ، تَيْنِ، أُوْلَاءِ باللالف الممدوده و أُوْلٰى باللالف المقصوره".

## الدرس الثاني عشر:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د اسماء اشارات لغوي او اصطلاحي معنٰی:

دوهم قسم د اسم غیر متمکن اسماء اشارات دي. "اشارات" جمع د "اِشَارَة" ده. "اِشَارَة" په لغت کي اشاره کولو ته ویل کیږي او په اصطلاح کي "مَاوُضِعَ لِتَعْيِيْنِ الْمُشَارِإِلَيْهِ" (چي دوی د مشار الیه د متعین کولو دپاره وضع سوي وي).

د اسماء اشارات الفاظ:

"ذَا. ذَانِ. ذَيْنِ. تَا. تِيْ. تِهْ. ذِهْ. ذِهِيْ. تِهِيْ. تَانِ. تَيْنِ. أُوْلَاءِ بِالْمَدِّ: أُوْلٰى بِالْقَصْرِ".

اسماء اشارات پنځه لفظونه دي: د شپږو معناؤ دپاره راځي: (۱) "ذَا" د واحد مذکر دپاره راځي لکه: "هٰذَا الْكِتَابُ". (۲) "ذَانِ" په حالت رفعي کي "ذَيْنِ" په حالت نصبي او جري کي د تثنیې مذکر دپاره راځي لکه: "هٰذَانِ رَجُلَانِ. فَذَانِکَ بُرْهَانَانِ مِنْ رَبِّکَ" (۳) "تَا، تِيْ، تِهْ، ذِهْ، ذِهِيْ، تِهِيْ" دا د واحد مؤنث دپاره راځي لکه: "هٰذِهِ الْمَرْءَةُ. تِلْکَ الْمَرْءَةُ". (۴) "تَانِ" په حالت رفعي کي "تَيْنِ" په حالت نصبي او جري کي د تثنیې مؤنث دپاره راځي لکه: "هَاتَانِ الْيَدَانِ نَظِيْفَتَانِ". (۵) "أُوْلَاءِ

بِالْمَدِّ أُوْلٰى بِالْقَصْرِ" د جمع مذكر او جمع مؤنث د دواړو دپاره راځي لكه: "هٰؤُلَاءِ الرِّجَالُ" "أُوْلٰئِكَ النَّاسُ" "هٰؤُلَاءِ النِّسَاءُ".

د اسماء اشارات د بناء وجه:

اسماء اشارات د شبه افتقاري په وجه سره مبني دي (۱): د حروفو سره په احتياج كي مشابهت لري ځكه دوى مشار اليه ته محتاجه وي.

## دوهمه خبره:

د اسماء اشاراتو تركيبي حيثيت:

د اسماء اشاراتو د تركيب خلاصه په دې شكل ده: (۱) د اسم اشاره ځخه وروسته كه چيرې نكره راغله نو اسم اشاره مبتداء او مابعد يې خبر دئ لكه: "هٰذَا ذِكْرٌ مُبَارَكٌ". (۲) كه چيري د اسم اشاره ځخه وروسته علم وه يا مضاف وو بيا اسم اشاره مبتداء مابعد يې خبر لكه: "هٰذَا زَيْدٌ. هٰذَا غُلَامُ زَيْدٍ" لېكن كه چيري د اضافت په صورت كي مضاف او مضاف اليه تر اسم اشاره رامخكي سي نو بيا بيرته موصوف او صفت جوړېږي لكه: "غُلَامُ زَيْدٍ هٰذَا". (۳) كه چيري د اسم اشاره ځخه وروسته معرف باللام وو لكه: "تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي". يا اسم موصول وو لكه: "أُولٰئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلَالَةَ" نو بيا په هغه كي عموما څلور تركيبونه كيږي: (۱) موصوف و صفت. (۲) مُبَيَّنْ و عطف بيان. (۳) مبدل منه و بدل (۴) مبتداء و خبر لېكن دغه تركيب قليل الاستعمال دئ.

په اسماء اشاراتو كي څلور شيان وي (۱) "مُشِيْرٌ" اشاره كونكى. (۲) "مُشَارٌ إِلَيْهِ" چي و كم چاته اشاره كيږي (۳) "مُشَارٌ لَهُ" چي د كم چا دپاره اشاره كيږي. (۴) "اِسْمِ اِشَارَه" ده چي په كم شي سره اشاره كيږي.

---

(۱) اسماء اشارات ټوله مبني دي لېكن په "ذَانِ وذَيْنِ" او "تَانِ وتَيْنِ" كي اختلاف دئ. بعضي علماء وايي: چي دغه څلور الفاظ معرب دي ځكه چي آخر يې مختلف سوى دئ په اختلاف دعواملو سره ځكه په حالت د رفعي كي "ذَانِ" او "تَانِ" ويل سوى دئ او په حالت دنصب وجر كي "ذَيْنِ او تَيْنِ" ويل سوى دئ.

د جمهور علماء مسلك دادئ: چي دغه څلور الفاظ چي "ذَانِ وذَيْنِ او تَانِ وتَيْنِ" دي دغه هم مبني دي او اختلاف چي په كي راغلئ دئ دا د عامل د وجه نه دئ بلكه دا اختلاف د وضعي د وجه ځخه دئ (وضع يې دا غه ډول راغلي ده). (شرح جامي)

## ضابطه:

اسم اشاره په مطابقت د "مُشَارٌ اِلَيْهِ" راوړل کيږي. "مُشارٌ اِلَيْهِ" به مذکر وي يا به مؤنث وي، بيا به هر يو مفرد وي يا به تثنيه وي يا به جمع وي، شپږ قسمونه جوړيږي او کاف خطاب (۱) چي د اسم اشاره په آخر کي راځي هغه په مطابقت د مخاطب سره راځي په اعتبار د افراد، تثنيه، جمع، تذکير او تانيث سره لکه: "ذَاکَ، ذَاکِ، ذَاکُمَا، ذَاکُمْ، ذَاکُنَّ".

## دريمه خبره:

د اسماء اشاراتو اقسام:

د مشار اليه په اعتبار سره اسم اشاره پر درې قسمه ده: (۱) قريب (۲) متوسط (۳) بعيد.

د اسم اشاره قريب تعريف:

اسم اشاره قريبه هغه اسم اشاره ده چي په هغه سره مشار اليه قريب ته اشاره وسي او پر سر يې "هَا" د تنبيه داخله سي لکه: "هٰذَا، هٰذَانِ، هَاتَانِ" وغيره يعني (دغه).

د اسم اشاره متوسط تعريف:

اسم اشاره متوسطه هغه اسم اشاره ده چي په هغه سره مشار اليه متوسط ته اشاره وسي او په آخر کي يې کاف خطاب راسي لکه: "ذَاکَ، تَاکَ" يعني (هغه).

د اسم اشاره بعيد تعريف:

اسم اشاره بعيد هغه اسم اشاره ده چي په هغه سره مشار اليه بعيد ته اشاره وسي او د اسم اشاره او کاف خطاب په مينځ کي "لام بُعد" (۲) راوړل سي لکه: "ذَالِکَ، تِلْکَ" يعني (هغه ليري).

---

(۱) کاف خطاب د دوه غرضو دپاره راوړل کيږي: (۱) يو خو د مخاطب د تعين دپاره چي مخاطب يو دئ دوه دي، درې دي او مذکر دئ که مؤنث دئ. (۲) او بل د "ذَا" اسم اشاره معنی د قريب څخه بعيد ته وړي لېکن يوه نکته ياد ساتل ضروري دي هغه دا چي اسم اشاره په خپله د حروف خطابو سره نه تثنيه کيږي او نه جمع کيږي بلکه حروف خطاب پخپله تثنيه او جمع کيږي او اسم اشاره هغه رنګه پر خپل وحدت باندي پاته وي لکه: "ذَالِکَ، ذَالِکُمَا، ذَالِکُمْ" ځکه اسم اشاره د مشار اليه مطابق راړل کيږي، لکه: "ذَانِ وَ ذَيْنِ وغيره" (النحو الوافي)

(۲) "لام بُعد" د کاف خطاب بغيره پر اسم اشاره باندي نه راځي او داغه رنګه په پنځو ځايو کي د اسم اشاره سره لام بعد راوړل منع دي: (۱) کله چي اسماء اشارات مختص بالمؤنث وي سِوٰی د "تَا، وتِيْ" څخه. (۲) کله چي اسماء اشارات تثنيه وي خواه

## څلورمه خبره:

"کَذَالِکَ، هٰکَذَا" یعني (داغه رنګه) هم په اسماء اشاراتو کي زیات استعمالیږي. او "هٰهُنَا، هُنَا" یعني (دلته) "هُنَاکَ" یعني (هلته) هم اسماء اشارات دي.
په اسم اشاره کي لحاظ صرف د مشار الیه د وحدت (یووالی) او تعدد (ډېر والی) کیږي. او په کاف کي لحاظ د مخاطب د وحدت او تعدد کیږي، یعني که مشارالیه او مخاطب یو وو "ذَلِکَ" ویل کیږي، که دواړه تثنیه وه بیا "ذَانِکُمَا" ویل کیږي، که دواړه جمع وه بیا "أُولَائِکُم" ویل کیږي، که مشارالیه یو وو مخاطبین دوه وه بیا "ذَالِکُمَا" ویل کیږي، که مخاطب یو وو مشارالیه دوه وه بیا "ذَانِکَ" ویل کیږي، که مشارالیه دوه وه مخاطبین جمع وه بیا "ذَانِکُمْ" ویل کیږي، که مخاطبین تثنیه وه مشارالیه جمع وه بیا "أُوْلَائِکُمَا" ویل کیږي، "وَعَلٰی هٰذا فَقِسْ".

سوم اسماء موصوله الخ: ............................................ الی قوله چهارم اسماء افعال.

## ترجمه:

د اسم غیر متمکن دریم قسم اسماء موصولات دي "اَلَّذِيْ، اَلَّذَانِ، اَلَّذَيْنِ، اَلَّذِيْنَ، اَلَّتِيْ، اَللَّتَانِ، اَللَّتَيْنِ، اَللَّاتِيْ، وَاللَّوَاتِيْ، وَ مَا وَ مَنْ، و اَيٌّ و اَيَّةٌ" الف لام چي په معنٰی د "اَلَّذِيْ" سره وي، اسم موصول دئ، او الف لام پر اسم فاعل او اسم مفعول باندي داخلیږي لکه: "اَلضَّارِبُ، اَلْمَضْرُوْبُ" او د بني طی په لغت کي "ذُوْ" هم اسم موصول دئ لکه: "جَائَنِيْ ذُوْ ضَرَبَکَ بِمَعْنٰی اَلَّذِيْ ضَرَبَکَ". پوه سه! چي "اَيٌّ" و "اَيَّةٌ" په اسم موصول کي معرب دي.

## پنځمه خبره:

د اسماء موصولات (۱) لغوي او اصطلاحي معنٰی:

---

مذکر وي او که مؤنث. (۳) پر "أُوْلَاءِ بِالْمَد" باندي ممتنع دئ او پر بالقصر باندي جائز دي لکه: "أُوْلٰی لِکَ". (۴) د جمع پر اسم اشاره باندي چي کله "هَا" تنبیه داخله وي نو د لام دخول ممتنع دئ لکه: "هٰؤُلَاءِ". (۵) او کله چي د اسم اشاره په آخر کي کاف خطاب نه وي ملحق سوی بیا هم پر اسم اشاره باندي لام داخلول ممتنع دئ. (النحو الوافي)
(۱) اسماء موصولات د شبه افتقاري په وجه باندي مبني دي حُکه دوی و صله ته محتاجه دي.

اسم موصول (۱) په لغت کي د "وَصْلٌ" څخه دئ په معنٰی د يو ځای کولو او ملاوېدلو سره راځي. د موصول اصطلاحي معنٰی "هُوَ اِسْمٌ مُحْتَاجٌ اِلٰی جُمْلَةٍ اَوْ مُؤَوَّلٍ بِجُمْلَةٍ وَ عَائِدٍ وَ خَلَفِهِ" موصول هغه اسم دئ چي محتاج وي و جملې ته يا مؤول بالجمله (چي تاويل يې په جمله سره سوی وي) او خودي عائد يا د عائد قائم مقام ته. د جملې مثال لکه: "اَلَّذِيْ خَلَقَکَ" د مؤول بالجمله مثال لکه: "اَلضَّارِبُ: اَیْ اَلَّذِيْ يَضْرِبُ" يا "اَلْمَضْرُوْبُ: اَیْ اَلَّذِيْ يُضْرَبُ" "اَلَّذِيْ عِنْدِيْ: اَیْ اَلَّذِيْ ثَبَتَ عِنْدِيْ" "اَلَّذِيْ فِي الدَّارِ: اَیْ ثَبَتَ فِي الدَّارِ".

د صله تعريف:

"اَلصِّلَةُ هِيَ الْجُمْلَةُ تُذْكَرُ بَعْدَهُ لِتَتْمِيْمِ الْمَعْنٰی" صله هغه جمله ده چي د موصول څخه وروسته ذکر کيږي دپاره د اتمام د معنٰی د موصول.

## شپږمه خبره:

د اسماء موصولات اقسام:

اسماء موصولات پر دوه قسمه دي: (۱) اسماء موصوله خاصه (۲) اسماء موصوله عامه.

د اسماء موصوله خاصه تعريف:

اسماء موصوله خاصه هغه اسماء موصولات دي چي د مذکر، مؤنث، مفرد، تثنيه، جمع هر يوه دپاره خپل خاص الفاظ وضع سوي وي.

د اسماء موصوله خاصه تعداد:

اسماء موصوله خاصه نه (۹) دانې دي:

---

(۱) اسم موصول سره د خپلي صلې جزء د جملې جوړيږي نه مکمله جمله (۱) کله مبتداء وي لکه: "اَلَّذِيْ ضَرَبَهٗ زَيْدٌ قَائِمٌ" (۲) کله خبر وي لکه: "اَللهُ الَّذِيْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضَ" (۳) کله فاعل وي لکه: "وَقَالَ الَّذِيْنَ لَايَرْجُوْنَ لِقَائَنَا" (۴) کله صفت وي لکه: "اُذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ" په دې صورت کي به موصوف ضرور معرفه وي. (۵) کله نائب فاعل وي لکه: "ضُرِبَ الَّذِيْ هُوَ قَائِمٌ" (٦) کله مشار اليه وي لکه: "خُذْ هٰذَا الَّذِيْ يَضْرِبُ عَمْرًا" په دې ټولو صورتو کي د دوی اعراب محلي دئ. او موصول پر دوه قسمه دئ: (۱) موصول اسمي چي بحث يې تېر سو (۲) موصول حرفي چي هغه حروف مصدريه دي او فعل په تاويل د مصدر سره اړوي او د دوی صله همېشه فعل وي، او د دوی تعداد پنځه دانې دي: "اَنْ. وَ اَنَّ. وَ کَيْ. وَ مَا. وَ لَوْ". (ضوابط نحوية)

(١) "اَلَّذِيْ" د واحد مذکر دپاره (٢) "اَلَّذَانِ" په حالت رفعي کي (٣) "اَلَّذَيْنِ" په حالت نصبي او جري کي د تثنيې مذکر دپاره. (۴) "اَلَّذِيْنَ" د جمع مذکر دپاره (۵) "اَلَّتِيْ" د واحد مؤنث دپاره (٦) "اَللَّتَانِ" په حالت رفعي کي (٧) "اَللَّتَيْنِ" په حالت نصبي او جري کي د تثنيې مؤنث دپاره (٨) "اَللَّاتِيْ" (٩) "اَللَّوَاتِيْ" د جمع مؤنث دپاره.

د اسماء موصوله عامه تعريف:

اسماء موصولات عامه هغه اسماء موصولات دي چي دوی په مشترک طور د مذکر، مؤنث، مفرد، تثنيه، جمع د ټولو دپاره استعماليږي.

د اسماء موصوله عامه تعداد:

اسماء موصوله عامه پنځه (۵) دانې دي:

(١) "مَا" (٢) "مَنْ" (٣) اَىٌّ (١) اَيَّةٌ" (۴) "الف لام" (۵) "ذُوْ" او "ذَا" (٢) بمعنى "اَلَّذِيْ".

## اوومه خبره:

د اسماء موصوله عامه مختصره تشريح:

"مَا" او "مَنْ" "مَا" اکثره د غير ذوی العقول دپاره راځي او "مَنْ" د ذوی العقول دپاره راځي. کله کله (٣) يو د بل پر ځای استعماليږي او دوی په ترکيب کي همېشه مبتداء، فاعل، يا مفعول، واقع کيږي.

---

(١) "اَىٌّ" پر څلور قسمه دئ: (١) شرطيه: (٢) استفهاميه (٣) صفتيه (۴) موصوله. "اَىٌّ" او "اَيَّةٌ" کله کله د نداء او جواب نداء په مينځ کي د فصل دپاره راوړل کيږي لکه: "يَا اَيُّهَا الرَّجُلُ" "يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ" او "ه" د تنبيه دپاره راځي نو بيا په دې صورت کي دوی په ترکيب کي موصوف او منادای يې صفت واقع کيږي. (نصر الخبير)

(٢) "ذَا" چي کله موصولي جوړيږي د هغه دپاره درې شرطونه دي: (١) "ذَا" به د "مَنْ" يا "مَا" استفهاميه وروستهٔ واقع سوی وي، نو "ذَا رَاَيْتُ" ويل غلط دي. (٢) د اسم اشاره معنی به مراده نه وي نو ځکه په "مَا ذَا الْكِتَابُ" کي "ذَا" اسم اشاره ده موصولي نه دئ. (٣) "ذَا" به د "مَنْ" او "مَا" سره يوه کلمه نه وي جوړه سوې نو ځکه په "لِمَاذَا اَتَيْتَ" او "مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗ" کي "ذَا" موصولي نه دئ. (الموجز في قواعد اللغة العربية)

(٣) "مَنْ" د غير ذوی العقول دپاره په درو ځايو کي استعماليږي اول (١) چي کله غير عاقل په منزله د عاقل سره وګرځي لکه: "وَمَنْ اَضَلُّ مِمَّنْ يَدْعُو مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ". (٢) چي کله غير عاقل د عاقل سره په يو حکم کي داخل سي لکه: "أَفَمَنْ يَخْلُقُ كَمَنْ لَّا يَخْلُقُ"

"الف لام" چې كله په معنىٰ د "اَلَّذِيْ" سره راځي او موصول واقع كيږي نو بيا د هغه دپاره پنځه شرطونه دي: دوه د الف لام دپاره او درې د اسم فاعل او اسم مفعول دپاره د الف لام شرطونه په دې ډول دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: الف لام به عهدي او جنسي نه وي، ورنه بيا په دوى كي ابهام نه وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چې د ده مدخول به اسم فاعل، يا اسم مفعول وي.

او د اسم فاعل او اسم مفعول شرطونه په دې شكل دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چې په اسم فاعل او اسم مفعول كي به د اشتقاق معنىٰ باقي وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چې دوى به د تجدد او حدوث پر معنىٰ دلالت كوي نه د دوام او استمرار.

۳. دريم شرط يې دا دئ: چې دوى به په معنى د حال او استقبال سره وي، نه د ماضي لكه: "اَلضَّارِبُ" په معنىٰ د "اَلَّذِيْ يَضْرِبُ" سره او "اَلْمَضْرُوْبُ" په معنىٰ د "اَلَّذِيْ يُضْرَبُ" سره.

"ذُوْ" (١) پر دوه قسمه دئ: (١) "ذُوْ" په معنىٰ د خاوند او صاحب سره په دې وخت كي دَى همېشه معرب وي (٢) "ذُوْ" په معنىٰ د "اَلَّذِيْ" سره په لغت د بني طى كي په دې وخت كي دى مبني وي، لكه: "جَائَنِيْ ذُوْ ضَرَبَكَ اَىْ اَلَّذِيْ ضَرَبَكَ" او و ده ته "ذُوْ طَائِيَّه" ويل كيږي او داغه رنګه "ذَا" هم اسم موصول واقع كيږي په چند شرائطو سره. ان شئت فارجع الى الحاشيه.

---

په "لَايَخْلُقُ" كي انسانان، ملائكه، اصنام ټوله شامل دي. (٣) چې كله غير عاقل د عاقل سره مقترن سي په عموم د مفضّل (چې تفصيل يې بيان سوى وي په "مِنْ" بيانيه سره) لكه: "وَاللّٰهُ خَلَقَ كُلَّ دَابَّةٍ مِنْ مَّاءٍ فَمِنْهُمْ مَنْ يَّمْشِيْ عَلٰى بَطْنِهٖ وَمِنْهُمْ مَنْ يَّمْشِيْ عَلٰى رِجْلَيْنِ وَمِنْهُمْ مَنْ يَّمْشِيْ عَلٰى أَرْبَعٍ" دلته لفظ د "دَابَّةٍ" ټولو اصنافو لره شامل دئ كم چې تفصيل يې بيان سوى دئ او "مَا" هم كله د عاقل دپاره راځي لكه: "فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ". او دى اكثره په هغه ځاى كي راځي چې عاقل د غير عاقل سره په يو حكم كي مقترن سي. (جامع الدروس العربية)

(١) د "ذُوْ" موصولي او "ذُوْ" په معنى د "صاحب" سره په منځ كي يو څو فرقونه دي: (١) "ذُوْ" موصولي په معنى د "اَلَّذِيْ" سره راځي او "ذُوْ" صاحبي په معنى د صاحب سره راځي. (٢) د "ذُوْ" موصولي مدخول جمله وي او د "ذُوْ" صاحبي مدخول مفرد وي. (٣) "ذُوْ" موصولي مبني وي او "ذُوْ" صاحبي معرب وي.

## جملې:

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند الیه | معرب، مبنی | متصل | منفصل | اسماء مرکب غیر مفید | تعین مرکب غیر مفید |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ذَلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ | خبر | لَا رَيْبَ فِيهِ | ذَلِكَ الْكِتَابُ | ۲. معرب ۱. مبنی | ۱. مرفوع ۱. مجرور متصل | + | اسم اشاره / ضمیر | ذَلِكَ، ہ، هُوَ |
| أُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ | خبر | الْمُفْلِحُونَ | أُولَئِكَ | ۱. معرب ۲. مبنی | هُمْ: فی صیغة الصلاحائر | ۱. مرفوع منفصل | اسم اشاره / ضمیر | أُولَئِكَ، هُمْ |
| أُدْخُلُوا هَذِهِ الْقَرْيَةَ | انشاء | أُدْخُلُوا | أَنْتُمْ | ۱. معرب ۳. مبنی | ۱. مرفوع متصل | + | اسم اشاره / ضمیر | هَذِهِ، أَنْتُمْ |
| أَخْرِجْنَا مِنْ هَذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ | انشاء | أَخْرِجْ | أَنْتَ | ۲. معرب ۵. مبنی | ۱. مرفوع متصل، ۱. منصوب متصل | + | اسم اشاره / ضمیر | هَذِهِ، أَنْتَ، نَا |
| إِنَّ هَذَا الْقُرْآنَ يَهْدِي لِلَّتِي هِيَ أَقْوَمُ | خبر | يَهْدِي، أَقْوَمُ | هَذَا الْقُرْآنَ، هِيَ | ۳. معرب ۷. مبنی | ۲. مرفوع متصل | ۱. مرفوع منفصل | اسم اشاره / ضمیر، اسم موصول | هَذَا، هُوَ، هِيَ، الَّتِي |
| إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ | خبر | قَاعِدُونَ | نَا | ۱. معرب ۳. مبنی | ۱. منصوب ۱. مرفوع | + | اسم اشاره / ضمیر | هَاهُنَا، نَا، هُمْ |
| وَتِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي أُورِثْتُمُوهَا | خبر | الْجُمْلَةُ الْآتِيَةُ | تِلْكَ الْجَنَّةُ | ۱. معرب ۶. مبنی | ۱. مرفوع ۱. منصوب | + | اسم اشاره / ضمیر، اسم موصول | تِلْكَ، الَّتِي، أَنْتُمْ، هَا |
| أُرِيدُ أَنْ أُنْكِحَكَ إِحْدَى ابْنَتَيَّ هَاتَيْنِ | خبر | أُرِيدُ | أَنَا | ۳. معرب ۶. مبنی | ۲. مرفوع ۱. منصوب ۱. مجرور | + | اسم اشاره / ضمیر | هَاتَيْنِ، أَنَا، أَنَا، كَ، يْ |
| أَلَمْ أَنْهَكُمَا عَنْ تِلْكُمَا الشَّجَرَةِ | انشاء | أَنْهَ | أَنَا | ۲. معرب ۶. مبنی | ۱. مرفوع ۱. منصوب | + | اسم اشاره / ضمیر | أَنَا، كُمَا، تِلْكُمَا |
| وَتِلْكَ الْأَمْثَالُ نَضْرِبُهَا لِلنَّاسِ | خبر | نَضْرِبُهَا | تِلْكَ | ۳. معرب ۵. مبنی | ۱. مرفوع ۱. منصوب | + | اسم اشاره / ضمیر | تِلْكَ، نَحْنُ، هَا |
| تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ | خبر | أَمَانِيُّهُمْ | تِلْكَ | ۱. معرب ۲. مبنی | ۱. مجرور | + | اسم اشاره / ضمیر | تِلْكَ، هُمْ |
| إِنْ هَذَانِ لَسَاحِرَانِ يُرِيدَانِ | خبر | هَذَانِ لَسَاحِرَانِ | (إِنَّهُ) ضمیر شان محذوف | ۲. معرب ۶. مبنی | ۱. منصوب ۲. مرفوع | + | اسم اشاره / ضمیر | هَذَانِ، ہُ، هُمَا |

## التمرين:

"وَإِنَّهُ عَلَى ذَلِكَ لَشَهِيدٌ،، هَذَا سَاحِرٌ كَذَّابٌ،، هَذِهِ نَاقَةُ اللهِ،، أُولَئِكَ عَلَى هُدًى مِنْ رَبِّهِمْ،، إِنَّهُ صَرْحٌ مُمَرَّدٌ مِنْ قَوَارِيرَ،، وَنُودُوا أَنْ تِلْكُمُ الْجَنَّةُ أُورِثْتُمُوهَا،، قُلْ هَذِهِ سَبِيلِي أَدْعُو إِلَى اللهِ،، هُمْ أُولَاءِ عَلَى أَثَرِي،، ذَلِكُمَا مِمَّا عَلَّمَنِي رَبِّي،، فَذَانِكَ بُرْهَانَانِ مِنْ رَبِّكَ".

## الدرس الثالث عشر:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

**اوله خبره:**

"اَیٌّ" و "اَیَّةٌ" چي كله موصول واقع كيږي د دوی دپاره شرط دا دئ چي دوی به مضاف وي و ضمير ته د جمع مذكر يا به مطلقًا مضاف وي خواه كه لفظًا مضاف وي لكه: "اَیُّهُمْ قَائِمٌ" يا معنًا مضاف وي لكه: "اَیٌّ قَائِمٌ" په اصل كي "اَیُّهُمْ هُوَ قَائِمٌ" وو؛ ورنه بيا استفهاميه جوړيږي، لكه: "اَیُّ رَجُلٍ جَاءَ، أَیُّكُمْ زَادَتْهُ هَذِهِ إِيمَانًا".

د "اَیٌّ، اَیَّةٌ" دپاره څلور حالتونه:

"اَیٌّ، اَیَّةٌ" يا به لفظًا مضاف وي يا به نه وي. بيا به په دواړو صورتو كي صدر د صله چي ضمير دئ هغه به ذكر وي يا به نه وي، نو ټوله څلور صورتونه جوړيږي په دري حالتو كي معرب دئ او په يو حالت كي دی مبني دئ. هغه دا چي دی مضاف وي او صدر د صلې يې نه وي ذكر لكه: "أَیُّهُمْ أَشَدُّ عَلَى الرَّحْمٰنِ عِتِيًّا". او د صورتو تفصيل په دې شكل دئ.

۱. اول صورت: د "اَیٌّ" مضاف اليه او صدر د صله دواړه لفظا ذكر وي لكه: "اَیُّهُمْ هُوَ قَائِمٌ".
۲. دوهم صورت: د "اَیٌّ" مضاف اليه او صدر د صله دواړه معنا ذكر وي لېكن په لفظ كي محذوف (حذف سوی) وي لكه: "اَیٌّ قَائِمٌ" په اصل كي "اَیُّهُمْ هُوَ قَائِمٌ" وو.
۳. دريم صورت: د "اَیٌّ" مضاف اليه لفظا محذوف وي او صدر د صله يې مذكور (ذكر سوی وي) لكه: "اَیٌّ هُوَ قَائِمٌ".
۴. څلورم صورت: چي د "اَیٌّ" مضاف اليه مذكور وي او صدر د صله يې حذف سوی وي لكه: "اَیُّهُمْ قَائِمٌ". صرف په دغه څلورم صورت كي دی مبني بر ضمه دئ لېكن اعراب يې هم جائز دئ لكه: څنګه چي په قرآن كريم كي په يوه قرائت كي "اَیَّهُمْ" هم رانقل سوی دئ. او په شعر كي په جر (زېر) سره هم استعمال سوی دئ لكه: "فَسَلِّمْ عَلَى اَيِّهِمْ اَفْضَلُ اَیْ عَلَى اَيِّهِمْ هُوَ اَفْضَلُ".

د صله جوړېدلو دپاره څلور شرطونه دي:

۱. صله به جمله خبريه وي احترازي مثال لكه: "جَائَنِيَ الَّذِيْ لَيْتَهُ قَائِمٌ".

۲. او په دې جمله کې به یو عائد وي، چې راجع به و اسم موصول ته وي او دَی په شکل د ضمیر کې وي او د اسم موصول (۱) سره به په افراد، تثنیه او جمع کې مطابق (یو شی) وي، او عائد په پنځو ځایو (۲) کې حذف کیږي تفصیل یې په حاشیه کې موجود دئ.

۳. په جمله کې به معنی د تعجب نه وي احترازي مثال "جَائَنِيْ الَّذِيْ مَا أَحْسَنَهُ".

۴. جمله به محتاجه و کلام ته نه وي احترازي مثال یې لکه: "جَائَنِيْ الَّذِيْ لٰکِنَّهُ قَائِمٌ" ځکه دا محتاجه ده و کلام ته.

چہارم اسماء افعال الخ: .................. الی قولہ پنجم اسماء اصوات.

## ترجمه:

د اسم غیر متمکن څلورم قسم اسماء افعال دي هغه پر دوه قسمه دي: اول هغه اسماء چې په معنٰی د امر حاضر سره راځي لکه: "رُوَیْدَ، بَلْهَ، حَیَّهَلْ، هَلُمَّ" دوهم هغه اسماء چې په معنٰی د فعل ماضي سره راځي لکه: "هَیْهَاتَ، شَتَّانَ".

## دوهمه خبره:

څلورم قسم د انسم غیر متکمن اسماء افعال دي:

د اسماء افعال تعریف (۳):

"مَانَابَ عَنِ الْفِعْلِ معنًی وَاِسْتِعْمَالًا" چې دی د فعل قائم مقام وي په معنٰی او استعمال کې.

(۱) د ضمیر د موصول خاص سره مطابقت واجب دئ او په موصول عام کې دوې وجهې جائز دي، یعني رِعایت د لفظ یا د معنی.

(۲) په پنځو ځایو کې عائد حذف کیږي: (۱) کله چې دَی ضمیر د مفعول وي، لکه: "اَلَّذِيْ ضَرَبْتُ" (اَیْ ضَرَبْتُهُ) (۲) عائد چې کله ضمیر د مجرور وي لکه: "أَنَسْجُدُ لِمَا تَأْمُرُنَا" (اَیْ تَأْمُرُنَا بِهِ) (۳) عائد چې کله د "اَیٌّ" څخه وروسته راسي لکه: "یُعْجِبُنِيْ اَیُّهُمْ قَائِمٌ اَیْ هُوَ قَائِمٌ" (۴) عائد چې کله داسي مبتداء وي چې د ده خبر جمله نه وي بلکه مفرد وي مثال یې لکه: "وَهُوَ الَّذِيْ فِيْ السَّمَاءِ اِلٰهٌ اَیْ: هُوَ اِلٰهٌ" (۵) چې کله د صلې د اوږدېدلو خوف وي لکه: "جَائَنِيْ الَّذِيْ ضَارِبٌ زَیْدًا اَیْ هُوَ ضَارِبٌ زَیْدًا". (شرح ابن عقیل)

(۳) "اِسْمُ الْفِعْلِ" د واحد، تثنیه، جمع، مذکر، مؤنث د ټولو دپاره یوه صیغه استعمالیږي لکه: "صَهْ" لیکن کله چې یې په آخر کې کاف خطاب ملحق سي نو بیا د مخاطب خیال ساتل کیږي لکه: "عَلَیْکَ، عَلَیْکُمَا، عَلَیْکُمْ".

د اسماء افعالو اول تقسيم:
اسماء افعال د اصالت او عدمِ اصالت په اعتبار سره پر درې قسمه دي: (۱) "مُرتَجَلْ" يعني موضوع غير منقولي چې دوی د اوله سره څخه اسم فعل وضع سوي وي، لکه: "شَتَّانَ وَيْ، مَهْ" (۲) منقولي (۱) چې په اول کې د بلې معنٰی دپاره وضع سوی وي، او بيا وروسته اسم فعل ته نقل سوی وي بيا دا نقل په درو شکلو سره راځي:

۱. اول شکل: کله د ظرف څخه منقول وي، لکه: "مَكَانَكَ، دُوْنَكَ، اَمَامَكَ، وَرَائكَ".
۲. دوهم شکل: کله د جار او مجرور څخه منقول وي، لکه: "عَلَيْكَ، اِلَيْكَ".
۳. دريم شکل: کله د مصدر څخه منقول وي بيا کله د دوی دپاره د خپل لفظ څخه فعل مستعمل وي لکه: "رُوَيْدًا" دا تصغير بنا بر ترخيم دئ، د "اَرْوَدَ، يُرْوِدُ، اِرْوَادًا" څخه، او کله د خپل لفظ څخه يې فعل مستعمل نه وي لکه: "بَلْهَ" او دوی د مصدر څخه په دې شکل را نقل سوي دي چې که چيري د دوی مابعد مجرور سي لکه: "رُوَيْدَ زَيْدٍ، بَلْهَ زَيْدٍ" بيا دوی معنٰی د مصدر ور کوي، يعْني "اِرْوَادُ زَيْدٍ، وَاِمْهَالُهُ". او که چيري د دوی ما بعد منصوب سي نو بيا دوی اسم فعل استعماليږي لکه: "رُوَيْدَ زَيْدًا اَیْ اَمْهِلْهُ، بَلْهَ زَيْدًا اَیْ اُتْرُكْهُ". (۳) معدول، چې دوی را معدول سوي وي، لکه: "نَزَالِ، تَرَاكِ" د "اِنْزِلْ، اُتْرُكْ" څخه معدول دي.

## دريمه خبره:

د اسماء افعال دوهم تقسيم:
اسماء افعال په اعتبار د تعريف و تنکير سره پر درې قسمه دي: (۱) چې همېشه معرفه يعني واجب التعريف وي، لکه: "نَزَالِ تَرَاكِ: اَیْ اِنْزِلِ الْآنَ اُتْرُكِ الْآنَ" (۲) چې همېشه نکره يعني واجب

---

(۱) "اِسْمُ الْفِعْل" منقول او معدول همېشه د امر حاضر په معنی سره راځي او "اِسْمُ الْفِعْل" معدول قياسي دئ او غير محصور دئ او دی همېشه د "فَعَالِ" پر وزن راځي. او د هر فعل ثلاثي مجرد تام، متصرف څخه راتلای سي. او د ثلاثي مزيد فيه څخه د ده راتلل شاذ او نادر دي. لکه: "دَرَاكِ" په معنی د "اَدْرِكْ" سره. او "بَدَارِ" په معنی د "بَادِرْ" سره دئ. (الموجز في قواعد اللغة العربية)

التنكير وي، لكه: "وَاهًا اَیْ اَتَعَجَّبُ فِيْ وَقْتٍ مَّا. وَيْهًا اَیْ اَهِزُ فِيْ وَقْتٍ مَّا". (۳) که چیري منون وه (یعني تنوین والا وه) نو بیا نکره دي لکه: "صَهٍ: اَیْ اُسْکُتْ سُکُوْتًا مَّافِيْ وَقْتٍ مَّا. يَا اُسْکُتْ عَنْ کُلِّ حَدِیْثٍ" او که غیر منون وو بیا معرفه دئ لکه: "صَهْ: اَیْ اُسْکُتْ سُکُوْتَ الْآنَ. يَا اُسْکُتْ عَنْ حَدِیْثِکَ هٰذَا. یا اِیْهِ یعني "اِمْضِ فِيْ حَدِیْثِکَ الْمَعْهُوْدِ، اِیْهٍ یعني خُذْ فِيْ حَدِیْثٍ شِئْتَ".

د اسماء افعال د بناء وجه:

اسماء افعال د شبه استعمالي په وجه مبني دي لېکن عند البعض دوی د مبنيالاصل پر ځای باندي واقع کیږي.

د اسماء افعال دریم تقسیم:

اسماء افعال په اعتبار د معنٰی سره پر دري قسمه دي:

## اول قسم:

اول هغه اسماء افعال دي چي په معنٰی سره د فعل ماضي وي، هغه شپږ (٦) دي:

۱. اول: "هَيْهَاتَ" په معنٰی د "بَعُدَ" دئ (لیري کېدل).
۲. دوهم: "وَوْشْکَانَ" په معنٰی د "اَسْرَعَ" دئ (تېزول).
۳. دریم: "شَتَّانَ" په معنٰی د "اِفْتَرَقَ" دئ لکه: "شَتَّانَ عَلِيٌّ وَمُعَاوِيَةُ فِي الشُّجَاعَةِ" (جلا کېدل).
۴. څلورم: "سُرْعَانَ" په معنٰی د "سَرُعَ" دئ (تېزېدل).
۵. پنځم: "بُطْئَانَ" په معنٰی د "بَطُؤَ" دئ (سست کېدل).
٦. شپږم: "هَبْ" په معنٰی د "سَلِّمْنَا" دئ (تسلیمول).

## څلورمه خبره:

## دوهم قسم:

دوهم هغه اسماء افعال دي چي په معنٰی سره د فعل مضارع وي، هغه نه (۹) داني دي:

۱. اول: "اَوَّهْ" په معنٰی د "اَتَوَجَّعُ" دئ (تکلیف محسوسول).
۲. دوهم: "آهٍ" په معنٰی د "اَتَوَجَّعُ" دئ (تکلیف محسوسول).

۳. دریم: "اُفٍّ" په معنٰی د "اَتَضَجَّرُ" دئ (زړه تنګېدل).

۴. څلورم "وَاهًا" په معنٰی د "اَتَعَجَّبُ" دئ (تعجب کول).

۵. پنځم: "بَخٍ" په معنٰی د "اَسْتَحْسِنُ" دئ (خوښول).

٦. شپږم: "بَجَلْ" په معنٰی د "يَكْفِيْ" دئ (کفایت کول).

۷. اووم: "اَيْنَ" په معنٰی د "اَمْكَنُ" دئ (ممکن کېدل).

۸. اتم: "وَا" په معنٰی د "اَتَعَجُّبُ" دئ (تعجب کول).

۹. نهم: "وَیْ" (۱) په معنٰی د "اَعْجَبُ" دئ لکه "وَيْكَاَنَّ اللهَ" (خوښول).

## پنځمه خبره:

## دریم قسم:

دریم هغه اسماء افعال دي چي په معنٰی سره د امر وي، هغه پنځه څلوېښت (۴۵) دي:

۱. اول: "رُوَيْدَ" په معنٰی د "اَمْهِلْ" دئ (مهلت ورکړه).

۲. دوهم: "بَلْهَ" په معنٰی د "دَعْ" دئ (پرېږده).

۳. دریم: "حَيَّهَلْ" (۲) په معنٰی د "اَقْبِلْ" دئ (مخته راسه).

۴. څلورم: "هَلُمَّ" (۳) په معنٰی د "اِيْتِ" دئ (را یې وړه).

---

(۱) "وَيْ" د تعجب دپاره راځي او د ده سره چي کم کاف راځي هغه زائد دئ لېکن عند البعض د تعليل دپاره دئ. (اشموني جلد ۴)

(۲) "حَيَّهَلْ" مرکب دئ د "حَيَّ هَلًا" څخه يعني په معنی د "اَقْبِلْ" سره او هغه "هَلًا" چي "لِلْحِثِّ وَالْعَجَلَةِ" دپاره راځي بيا الف و غورځېدئ او "حَيَّهَلْ" بلا تنوين او مع التنوين لکه: "حَيَّهَلًا" ويل ټوله فصيح دي او دَی کله متعدي بنفسه وي او کله په "عَلٰی، او لَام او بَا" سره راځي. (جامع الدروس العربية)

(۳) "هَلُمَّ" عند البصريين دَی مرکب دئ د "هَا" تنبيه او د "لُمَّ" فعل امر څخه او د ده معنی "اَیْ: اِجْمَعْ نَفْسَكَ اِلَيْنَا" داغه رنګه دَی کله متعدي بنفسه وي په معنی د "اُحْضُرْ" سره لکه: "هَلُمَّ شُهَدَاءَكُمُ الَّذِيْنَ" او کله متعدي په "اِلٰی" سره وي په معنی د "اَقْبِلْ" سره وي لکه: "هَلُمَّ اِلَيْنَا" او کله متعدي په "لام" سره وي لکه: "هَلُمَّ لِلثَّرِيْدِ" او عند اهل حجاز "هَلُمَّ" اسم فعل دئ کله لازمي وي: لکه: "اُحْضُرْ" په معنی د "حَاضِرْ" سره او کله متعدي وي په معنی د "اِيْتِ" سره، او د بنو تميم په نزد باندي دَی

۵. پنځم: "هَا" په معنٰی د "خُذْ" ده (و یې نیسه).
٦. شپږم: "هَاکَ" په معنٰی د "خُذْ" دئ (و یې نیسه).
۷. اووم: "دُوْنَکَ" په معنٰی د "خُذْ" دئ (و یې نیسه).
۸. اتم: "عِنْدَ" په معنٰی د "خُذْ" دئ (و یې نیسه).
۹. نهم: "لَدَیْکَ" په معنٰی د "خُذْ" دئ (و یې نیسه).
۱۰. لسم: "اَمَامَکَ" په معنٰی د "تَقَدَّمْ" دئ (مخته سه).
۱۱. یوولسم: "وَرَائکَ" په معنٰی د "تَاَخَّرْ" دئ (وروسته سه).
۱۲. دوولسم: "آمِیْنَ" په معنٰی د "اِسْتَجِبْ" دئ (قبول یې کړه).
۱۳. دیارلسم: "قَطُّ" په معنٰی د "اِکْتَفِ" دئ (اکتفا او قناعت وکړه).
۱۴. څوارلسم: "مَهْ" په معنٰی د "اِنْکَفِفْ" دئ (ځان منع کړه).
۱۵. پنځلسم: "صَهْ" په معنٰی د "اُسْکُتْ سُکُوْتَ الْآنَ" (اوس في الحال خاموش سه).
۱٦. شپاړسم: "حَیَّ" په معنٰی د "اَقْبِلْ" دئ (مخته راسه).
۱۷. اوه لسم: "مَکَانَکَ" په معنٰی د "اُثْبُتْ" دئ (پر خپل ځای و دریږه).
۱۸. اتلسم: "اِیْهٖ" په معنٰی د "اِمْضِ" دئ "اَیْ زِدْ مِنْ حَدِیْثِکَ" (خپله خبره جاري و ساته).
۱۹. نولسم: "وَیْهًا" په معنٰی د "اِغْرَ" دئ (هوښیار سه).
۲۰. شلم: "هَیَّا" په معنٰی د "اَسْرِعْ" دئ (ژر کوه).
۲۱. یویشتم: "هَیْتَ" په معنٰی د "اَسْرِعْ" دئ. (ژر کوه).
۲۲. دوه ویشتم: "تَیْدَخْ" په معنٰی د "اَمْهِلْ" دئ (مهلت ور کړه).

---

فعل دئ ځکه دَی "یَا" د مؤنث مخاطب قبلوي لکه: "هَلُمِّيْ" او "هَا" د تنبیه ده "لُمِّيْ" لکه "مُدِّيْ". (همع الهوامع جلد ۳ صفحه ۸٦)

**شپږمه خبره:**

۲۳. درویشتم: "عَلَيْكَ" په معنٰی د "اَلْزِمْ" دئ "اَیْ اَلْزِمْ نَفْسَكَ" (خپل ځان پابنده کړه).

۲۴. څلورویشتم: "تَعَالِ" په معنٰی د "اَقْبِلْ" دئ (مخته راسه).

۲۵. پنځه ویشتم: "نَزَالِ" په معنٰی د "اِنْزِلْ" دئ (را شوه سه).

۲۶. شپږویشتم: "قِتَالِ" په معنٰی د "اُقْتُلْ" دئ (قتل يې کړه).

۲۷. اووه ويشتم: "حَذَارِ" په معنٰی د "اِحْذَرْ" دئ (ځان وګوره).

۲۸. اته ويشتم: "ضَرَابِ" په معنٰی د "اِضْرِبْ" دئ (و يې وهه).

۲۹. نه ويشتم: "تَرَاكِ" په معنٰی د "اُتْرُكْ" دئ (پرېږده).

۳۰. دېرشم: "لَقَاعِ" په معنٰی د "لَاقِعَةٌ" دئ (بد ژبانه زنانه).

۳۱. يو دېرشم: "فَجَارِ" (۱) په معنٰی د "اَلْفُجُوْرُ" دئ (بدکاري).

۳۲. دو دېرشم: "عَلَی الاَمْرِ" په معنٰی د "اَقْبِلْ عَلَيْهِ" دئ (پر کار متوجه سه).

۳۳. درو دېرشم: "هَيْتَ لَكَ" په معنٰی د "عَجِّلْ بِهِ" دئ (ژر سه).

۳۴. څلور دېرشم: "اِلَی الاَمْرِ، وَبِا الاَمْرِ" په معنٰی د "عَجِّلْ بِهِ" دئ (پر کار تلوار وکړه).

۳۵. پنځه دېرشم: "فَسَاقِ" په معنٰیٰ د "فَاسِقَةٌ" دئ (فاسقه ښځه).

۳۶. شپږ دېرشم: "اِلَيْكَ عَنِّيْ" په معنٰی د "تَنَحَّ" دئ (زما څخه ليري سه).

۳۷. اووه دېرشم: "وَبِهِ" په معنی د "اَلْزِمُهُ الْقَصْعَةَ" دئ (و يې نيسه).

---

(۱) "فَعَالِ" اسم فعل په معنی د امر سره د ثلاثي مجرد و د هر وزن څخه دَی قياسي راځي او د هر ثلاثي مجرد څخه دَی په معنی د امر سره مشتق کول صحيح دئ لکه: "ضَرَابِ" په معنی د "اِضْرِبْ" سره "نَزَالِ" په معنی د "اِنْزِلْ" سره "كَتَابِ" په معنی د "اُكْتُبْ" سره او د "فَعَالِ" وزن پر څلور قسمه راځي (۱) "فَعَالِ" امري چي د امر په معنی سره راځي لکه: "نَزَالِ" په معنی د "اِنْزِلْ" سره (۲) "فَعَالِ" مصدري چي د مصدر معرفه په معنی سره راځي لکه: "فَجَارِ" په معنی د "اَلْفُجُوْرُ" سره (۳) "فَعَالِ" صفتي چي د صفت په معنی سره راځي لکه: "فَسَاقِ" په معنی د "فَاسِقَةٌ" سره (۴) "فَعَالِ" "عَلَمِيْ" چي د اعيان مؤنثه دپاره علم وي لکه: "قَطَامِ" "شکره" (يو ښکاري باز دئ). (المفصل في صنعة الاعراب لزمخشري)

۳۸. اته دیرشم: "هَاءَ" په معنی د "خُذْ" دئ (و یې نیسه).
۳۹. نه دیرشم: "قَدْکَ" په معنی د "اِکْتَفِ" دئ (قناعت وکړه).
۴۰. څلویښتم: "فِدَاءَ" په معنی د "اَفْدِکَ" دئ (ځان قربان کړه).
۴۱. یو څلویښتم: "بَسْ" په معنی د "اِکْتَفِ" دئ (قناعت وکړه).
۴۲. دو څلویښتم: "اِیْهًا" په معنی د "کُفَّ" دئ (ځان بند کړه).
۴۳. درو څلویښتم: "شُهَدَائُکُمْ" په معنی د "اُحْضُرُوْا" دئ (حاضر سئ).
۴۴. څلور څلویښتم: "رُوَیْدَ" په معنی د "اَمْهِلْهُ" دئ (مهلت ورکړه).
۴۵. پنځه څلویښتم: "تَیْدَ" په معنی د "اَمْهِلْ" دئ (مهلت ورکړه).

پنجم اسماء اصوات الخ: ......................... الی قولہ ششم اسماء ظروف.

## ترجمه:

د اسم غیر متمکن پنځم قسم اسماء اصوات دي هغه دا دي: "اُخْ، اُحْ، اُفْ، بَخْ، نِخْ، غَاقْ".

## اوومه خبره:

پنځم قسم د اسم غیر متمکن څخه اسماء اصوات دي.

د اسماء اصوات لغوي او اصطلاحي معنٰی:

اصوات جمع د صوت ده صوت په لغت کي اواز ته ویل کیږي او د اصطلاحي معنٰی په اعتبار سره دوی دوې نوعي دي.

د اولي نوعي تعریف:

۱. "نَوْعٌ یُخَاطَبُ بِهٖ مَالَایَعْقِلُ اَوْ صِغَارٌ مِّنَ الْاِنْسَانِ". یوه نوع هغه ده چي په هغه سره و غیر ذوی العقول او کوچیانو ته آواز ورکول کیږي لکه: "عَدَسْ، سَا، کَخْ".

د دوهمي نوعي تعریف:

۱. "نَوْعٌ یُحْکٰی بِهٖ صَوْتٌ مِّنَ الْاَصْوَاتِ الْمَسْمُوْعَةِ". چي په ده سره د اوریدل سوو اوازو نقل کیږي خواه که د غم وي او که د خوشحالۍ وي لکه: "قَبْ، طَاقْ، طَقْ".

د اسماء اصوات معنٰی (۱):

(۱) "اُخ، اُحْ" د ټوخي او د ستوني د درد په وخت کي اواز را ایستل. (۲) "اُفْ" هغه اواز چي د درد او افسوس په وخت کي را ووځي. (۳) "بَخْ" د خوشحالۍ په وخت کي اواز را ایستل. (۴) "نِخْ" د اوښ د کښېنولو په وخت کي اواز را ایستل. (۵) "غَاقَ" د کارګه اواز. (٦) "وَیْ" د تعجب یا مذمت په وخت کي اواز را ایستل. (۷) "هَلًا" د آس د ځغلولو په وخت کي اواز را ایستل.

د اسماء اصوات د بناء وجه:

اسماء اصوات د شبه اهمالي په وجه باندي مبني دي (۲). ځکه دوی نه عامل واقع کیږي او نه معمول.

## جملي:

| عنوان | خبر، انشاء | اقسام اسمیه یا فعلیه | مسند | مسندالیه | معرب | مبنی | تعداد اسم غیر متمکن |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هُوَ الَّذِي خَلَقَكُمْ | خبریه | اسمیه | اَلَّذِي خَلَقَكُمْ | هُوَ | × | ۵_ مبنی | ۳_ ضمیر، ۱_ موصول |
| قَدْ اَفْلَحَ مَنْ زَكّٰهَا | خبریه | فعلیه | اَفْلَحَ | مَنْ زَكّٰهَا | × | ٦_ مبنی | ۲_ ضمیر، ۱_ موصول |
| نَحْنُ ظَلَمْنَا اَنْفُسَنَا | خبریه | اسمیه | ظَلَمْنَا اَنْفُسَنَا | نَحْنُ | ۱_ معرب | ۳_ مبنی | ۳_ ضمیر: ۲_ متصل، ۱_ منفصل |
| عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا اَحْضَرَتْ | خبریه | فعلیه | عَلِمَتْ | نَفْسٌ | ۱. معرب | ۳. مبنی | ۱. اسم موصول ۱. ضمیر |
| تِلْكَ حُدُوْدُ اللهِ | خبریه | اسمیه | حُدُوْدُ اللهِ | تِلْكَ | ۲. معرب | ۱. مبنی | ۱. اسم اشاره |
| تَبَارَكَ الَّذِي نَزَّلَ الْفُرْقَانَ عَلٰى عَبْدِهٖ | خبریه | فعلیه | تَبَارَكَ | اَلَّذِي موصول مع الصلة | ۲. معرب | ٦. مبنی | ۱. موصول ۲. ضمیر متصل |
| قَدْ اَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ الَّذِيْنَ هُمْ فِيْ صَلَاتِهِمْ خَاشِعُوْنَ | خبریه | فعلیه | اَفْلَحَ | اَلْمُؤْمِنُوْنَ موصوف مع الصفة | ۳. معرب | ۷. مبنی | ۱. موصول ۳. ضمیر |
| هٰذَا بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ | خبریه | اسمیه | بُهْتَانٌ عَظِيْمٌ | هٰذَا | ۲. معرب | ۲. مبنی | ۱. ضمیر ۱. اسم اشاره |
| هٰؤُلَاءِ بَنَاتِيْ | خبریه | اسمیه | بَنَاتِيْ | هٰؤُلَاءِ | ۱. معرب | ۲. مبنی | ۱. اسم اشاره، ۱. ضمیر |
| وَالَّذِي جَآءَ بِالصِّدْقِ | خبریه | اسمیه | الْجُمْلَةُ الْآتِيَةُ | وَالَّذِي جَآءَ | ۱. معرب | ۵. مبنی | ۱. موصول ۱. ضمیر |
| اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ | انشائیه | اسمیه | يَكْفُلُ مَرْيَمَ | اَيُّهُمْ | ۲. معرب | ۳. مبنی | ۲. ضمیر |

---

(۱) یو څو نور الفاظ دي چي عرب یې بطور اسماء اصوات استعمالوي لکه: د "عَدَسْ" لفظ د غاتري د ځغلولو دپاره. او د "كَخْ" لفظ د ماشوم د یوشي څخه د لیري کولو دپاره. او د "سَأْ" لفظ د "حِمَار" د زجر دپاره او د "قَبْ" لفظ د توري د واقع کېدلو د آواز دپاره او د "طَقْ" لفظ د ډبري د آواز دپاره او د "وَيْهِ" لفظ پر میت باندي د غم د کولو د آواز دپاره او د "طَاقَ" لفظ د وهلو د آواز دپاره.

(۲) اسماء اصوات چي کله د نقل او حکایت په طور استعمال سي نو دوی مبني دي لېکن کله کله دوی د معرب پر ځای واقع کیږي یا دوی معرب دي، لکه: "رَاَيْتُ غَاقًا، وَرَكِبْتُ عَدَسًا اي: رَاَيْتُ غُرَابًا وَرَكِبْتُ بَغْلًا". (الموجز في قواعد اللغة العربية)

| عنوان | خبر، انشاء | اقسام اربعه یا ثلاثه | مسند | مسندالیه | معرب | مبني | تعداد اسم غیر متمکن |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَبَشِّرِ الَّذِينَ آمَنُوا | انشائیه | فعلیه | بَشِّرْ | أَنْتَ | + | ۶. مبني | ۱. موصول ۲. ضمیر |

## التمرين:

"تَبَارَكَ الَّذِي بِيَدِهِ الْمُلْكُ،، وَاللَّاتِي تَخَافُونَ نُشُوزَهُنَّ فَعِظُوهُنَّ،، أَيُّهُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا،، أَرِنَا اللَّذَيْنِ أَضَلَّانَا،، أَيُّهُمْ بِذَلِكَ زَعِيمٌ،، إِنْ أُمَّهَاتُهُمْ إِلَّا اللَّائِي وَلَدْنَهُمْ،، وَلَا يَقْتُلُونَ النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللهُ،، أَيُّهُمْ أَقْرَبُ لَكُمْ نَفْعًا،، سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرٰى بِعَبْدِهِ لَيْلًا،، مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ".

## الدرس الرابع عشر:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د اسماء ظروف لغوي او اصطلاحي معنٰی:

ظروف جمع د ظرف ده ظرف په لغت کي لوښي ته وايي: او په اصطلاح کي ظروف هغه اسماء دي چي پر زمان یا مکان دلالت کوي.

د اسماء ظروف اول تقسیم:

اسماء ظروف د اول تقسیم په اعتبار سره پر دوه قسمه دي:

۱. ظرف زمان.

۲. ظرف مکان.

بیا هریو پر دوه قسمه دئ:

۱. محدود: چي اندازه یې معلومه وي. لکه: شپه او ورځ، مسجد، او کور.

۲. مبهم: چي د هغه څه اندازه نه وي معلومه لکه: "حِيْنَ، يَا دَهْرَ، زَمانه، یا فَوْقَ، تَحْتَ، قُدَّامٌ".

د اسماء ظروف دوهم تقسیم:

د دوهم تقسیم په اعتبار سره اسماء ظروف پر دري قسمه دي:

۱. اول هغه اسماء ظروف دي چي خاص په زمان پوري وي (۱) لکه: "اِذْ، اِذَا، مَتٰی، کَیْفَ، کَیْفَمَا، مُذْ، مُنْذُ، قَطُّ، عَوْضُ، بَیْنَا، بَیْنَمَا، رَیْثَ، رَیْثَمَا، اَمْسِ اَلْآنَ، لَمَّا، اَیَّانَ" داغه رنګه هغه اسماء چي د ظروف زمان ځخه مرکب سوي وي لکه: "زُرْنَا صَبَاحَ مَسَاءَ، وَلَیْلَ لَیْلَ، وَنَهَارَ نَهَارَ، وَیَوْمَ یَوْمَ اَیْ کُلَّ صَبَاحٍ، کُلَّ مَسَاءٍ، کُلَّ لَیْلٍ وَکُلَّ نَهَارٍ، وَکُلَّ یَوْمٍ".

۲. دوهم هغه اسماء ظروف دي چي خاص په مکان پوري وي لکه: "حَیْثُ، هُنَا، ثَمَّ، اَیْنَ، او جهات سته هغه لکه: "اَمَامٌ" او د ده هم مثل "قُدَّامٌ" او داغه رنګه "وَرَاءٌ" او دده هم مثل "خَلْفٌ وَیَمِیْنٌ اَوْ یَسَارٌ" او د ده هم مثل "شِمَالٌ، اَوْ تَحْتَ، اَوْ فَوْقَ".

۳. دریم هغه اسماء ظروف دي چي مشترک وي "بَیْنَ الزَّمَانِ وَالْمَکَانِ" لکه: "اَنّٰی، لَدُنْ، لَدٰی، او قَبْلُ، وبَعْدُ" په بعض حالاتو کي.

## دوهمه خبره:

د ظروف زمانيه مبهمه مختصر وضاحت او احکام:

چونکه ظرف زمان محدود معرب دئ، نو ځکه مصنف رحمه الله هغه نه دئ ذکر کړئ.

۱. "اِذْ" (۲) د "اِذْ" معنٰی (چي کم وخت) دئ د زمان ماضي دپاره راځي که څه هم پر مضارع داخل سي او د ده ځخه وروسته اکثریت جمله اسميه هم راتلای سي او فعليه هم، لکه: "ذَهَبْتُ اِذِ الشَّمْسُ طَالِعَةٌ، یا اِذْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ".

---

(۱) فائده: دغه تخصيص په زمان يا په مکان پوري څه قاعده کليه نه ده بلکه په اکثره اوقاتو کي دغه تخصيص وي ورنه ظروف زمان و مکان کله کله يو د بل پر ځای هم استعماليږي لکه: په "مَنْ" او "مَا" کي چي کله کله يو د بل پر ځای استعماليږي. (از مرتب عفي عنه)

(۲) "اِذْ" کله کله د تعليل دپاره راځي: لکه: "وَلَنْ یَّنْفَعَکُمُ الْیَوْمَ اِذْ ظَلَمْتُمْ: اَیْ لِاَجْلِ ظُلْمِکُمْ". او کله کله د استقبال دپاره راځي لکه: "اِذِ الْاَغْلَالُ فِيْ اَعْنَاقِهِمْ" "یَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ اَخْبَارَهَا" او دی همېشه و جملې ته مضاف وي کله يې مضاف اليه حذف سوی وي، او په عوض کي يې تنوين راغلی وي، لکه: "وَاَنْتُمْ حِیْنَئِذٍ تَنْظُرُوْنَ: اَیْ وَاَنْتُمْ حِیْنَ اِذْ بَلَغَتِ الرُّوْحُ الْحُلْقُوْمَ تَنْظُرُوْنَ" او کله دی سره د مضاف اليه مفعول فيه جوړيږي د فعل محذوف "اُذْکُرُوْا" دپاره لېکن په قرآن کريم کي د فعل چي "اُذْکُرُوْا" دئ د هغه تصريح موجوده ده لکه "وَاذْکُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَیْکُمْ اِذْ کُنْتُمْ اَعْدَاءً" او کله کله دی مضاف اليه واقع کيږي لکه: "بَعْدَ اِذْ هَدَیْتَنَا" او دلته

۲. "اِذَا" (۱) د "اِذَا" معنٰی (چي کم وخت) (چي کله) (اچانک) "اِذَا" د زمان مستقبل دپاره راځي که څه هم پر ماضي داخل سي په معنٰی د مستقبل يې اړوي لکه: "اِذَا اَکَلْتَ الطَّعَامَ اَکَلْتُ".

"اِذَا" پر دري قسمه دئ: (۱) مکانيه (۲) زمانيه دغه دواړه قسمونه متضمن معنٰی د شرط لره دي، او ضرف پر فعل داخليږي. (۳) "اِذَا" مفاجاتيه[۲] چي د اچانک په معنٰی سره راځي او د ده مدخول جمله اسميه وي لکه: "خَرَجْتُ اِذَا الْاُسْتَاذُ قَائِمٌ".

۳. "مَتٰی" (۱) د "مَتٰی" معنٰی (چه کم وقت) "مَتٰی" د دوو معناوو دپاره راځي: (۱) د استفهام دپاره په دې وخت کي دَی منصوب محلا علی الظرفيت وي لکه: "مَتٰی نَصْرُ اللّٰهِ" (۲) د شرط دپاره لکه: "مَتٰی تَذْهَبْ اَذْهَبْ".

---

دی د "بَعْدُ" دپاره مضاف اليه دئ. او کله مفعول به لکه: "وَاذْكُرُوْا اِذْ كُنْتُمْ قَلِيْلًا" د "اذْكُرُوْا" دپاره مفعول به دئ "اَیْ اذْكُرُوْا وَقْتًا كُنْتُمْ قَلِيْلًا" يا بدل جوړيږي لکه: "وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ مَرْيَمَ اِذِ انْتَبَذَتْ مِنْ اَهْلِهَا مَكَانًا شَرْقِيًّا". دلته "اِذْ" بدل اشتمال دئ د "مَرْيَمُ" څخه او "مَرْيَمُ" مفعول به دئ د "اذْكُرْ" دپاره "اَیْ اُذْكُرْ وَقْتَ اِنْتِبَاذِ مَرْيَمَ" په دې ټولو صورتو کي دی زمان دئ او اسم دئ يا ظرف زمان دئ يا مفعول به و غيره دئ او د اسميت په صورت کي دی همېشه مضاف وي و جمله ته.(جامع الدروس العربية) او "اِذْ" د شبه افتقاري په وجه مبني دئ ځکه کچيري دی اسم سي نو همېشه جملې ته مضاف کيږي يا د شبه وضعي په وجه که چيري دې حرف سي ځکه چي د "مِنْ" او "قَدْ" سره په وضع کي مشابهت لري.

(۱) "اِذَا" کله کله د ماضي دپاره هم استعماليږي لکه: "وَاِذَا رَاَوْ تِجَارَةً. حَتّٰی اِذَا بَلَغَ مَغْرِبَ الشَّمْسِ" لېکن ډېر کم. او کله کله محض د ظرفيت دپاره راځي لکه: "وَاللَّيْلِ اِذَا يَغْشٰی" چونکه په "اِذَا" کي د شرط معنی موجوده وي (يعني د يوې جملې مضمون مُرَتَّبْ وي، د بلې جملې پر مضمون باندي). نو ځکه د ده څخه وروسته جمله فعليه راوړل مختاره دئ.

(۲) او "اِذَا" کله کله د مفاجاة دپاره هم راځي لېکن په دې وخت کي به په ده کي د شرط معنی نه وي موجوده، داغه وجه ده چي د ده مابعد مبتداء جوړول مختاره دي دپاره د فرق په مېنځ کي د "اِذَا" مفاجاتيه او شرطيه او د مفاجاة په وخت کي دَی په معنی د حال سره وي نه د استقبال او دی حرف وي "لَا مَحَلَّ لَهَا مِنَ الْاِعْرَابِ" لکه: "فَاَلْقٰهَا فَاِذَاهِيَ حَيَّةٌ تَسْعٰی" او په اتفاق د محققينو د "اِذَا" زمانيه عامل فعل شرط دئ او دا حمل دئ پر ټولو ادواتو د شرط او "عندالاکثر" د "اِذَا" عامل په جزاء کي نصب ور کونکی فعل يا شبه فعل دئ او "اِذَا" يا د شبه معنوي په وجه مبني دي ځکه دَی متضمن دئ معنی د شرط لره يا د شبه افتقاري په وجه ځکه دَی اکثره و جمله ته مضاف وي.

## دریمه خبره:

۴. "کَیۡفَ" (۲) د "کَیۡفَ" معنٰی (څنګه) "کَیۡفَ" هم د دوو معناوو دپاره راځي: (۱) د استفهام دپاره لکه: "کَیۡفَ حَالُکَ" (۲) د شرط دپاره چي کله د ده څخه وروسته لفظ د "مَا" راسي لکه: "کَیۡفَمَا تَذۡهَبۡ اَذۡهَبۡ".

۵. "اَیَّانَ" (۳) د "اَیَّانَ" معنٰی (کله) دی هم کله د استفهام دپاره راځي لکه: "اَیَّانَ یَوۡمُ الدِّیۡنِ" او کله د شرط دپاره راځي لکه: "اَیَّانَ تَجۡتَهِدۡ تَجِدۡ نَجَاحًا".

۶. "قَطُّ" (۴) د "قَطُّ" معنٰی (هیڅ کله) او "قَطُّ" د ماضي منفي د تاکید دپاره راځي لکه: "مَارَاَیۡتُ زَیۡدًا قَطُّ" (ما هیڅ کله زید نه دئ لیدلی).

۷. "عَوۡضُ" (۵) "عَوۡضُ" د مستقبل منفي د تاکید دپاره راځي لکه: "لَااَشۡرَبُ الۡخَمۡرَ عَوۡضُ" (زه به هیڅ کله شراب نه چیښم) لېکن کچیري دی مضاف واقع سي بیا معرب منصوب دئ لکه "کَمَا یُقَالُ لَا اَفۡعَلُهُ عَوۡضَ الۡعَائِضِیۡنَ" "لَا اَفۡعَلُهُ دَهۡرَ الدَّاهِرِیۡنَ وَ اَبَدَ الۡاٰبِدِیۡنَ".

---

(۱) "مَتٰی" د شبه معنوي په وجه مبني دئ ځکه دَی متضمن معنی د استفهام او شرط لره دئ، او "مَتٰی" کله په "حَتّٰی" او "اِلٰی" سره مجروره وي لکه: "اِلٰی مَتٰی یَرۡتَعُ الۡغَاوِيۡ فِيۡ غَیِّهٖ. حَتّٰی مَتٰی یَبۡقَی الضَّالُّ فِيۡ ضَلَالِهٖ". (همع الهوامع)

(۲) "کَیۡفَ" کله خبر واقع کیږي لکه: "کَیۡفَ اَنۡتَ" (۲) کله د افعالو ناقصو خبر واقع کیږي لکه: "کُنۡتَ کَیۡفَ". (۳) کله حال مقدم واقع کیږي لکه: "کَیۡفَ تَکۡفُرُوۡنَ بِاللّٰهِ" (۴) کله مفعول به واقع کیږي لکه: "کَیۡفَ جِئۡتَ" (۵) کله د افعال قلوب دپاره مفعول ثاني وي لکه: "کَیۡفَ ظَنَنۡتَ الۡاَمۡرَ" او دَی د شبه وضعي او د شبه معنوي په وجه مبني دي ځکه دَی متضمن دي معنی د استفهام لره.

(۳) "اَیَّانَ" د شبه معنوي په وجه مبني دي ځکه دَی متضمن دئ معنی د استفهام لره د "اَیَّانَ" او "مَتٰی" په مینځ کي فرق دا دئ چي "اَیَّانَ" صرف د زمان مستقبل دپاره او د امور عظیمو د پوښتني دپاره راځي او "مَتٰی" عام دئ ماضي، مستقبل امور عظیمه غیر عظیمه د ټولو دپاره راځي. (جامع الدروس العربیة)

(۴) "قَطُّ" کله کله اسم فعل وي په معنی د "یَکۡفِيۡ" سره راځي او مضاف وي، بیا کله مضاف وي و اسم ظاهر ته لکه: "قَطُّ زَیۡدٍ دِرۡهَمٌ یَعۡنِيۡ یَکۡفِيۡ زَیۡدًا دِرۡهَمٌ" او په دې صورت کي دی مبني دئ او کله مضاف وي و ضمیر ته، بیا کله و یا د متکلم ته مضاف کیږي لکه: "قَطِّيۡ" او کله کاف خطاب ته مضاف کیږي لکه: "قَطُّکَ" او دَی کله معرب جوړیږي لکه: "قَطُّ زَیۡدٍ دِرۡهَمٌ" په معنی د "حَسۡبُ زَیۡدٍ دِرۡهَمٌ" سره وي او دَی چي کله ظرف وي نو دَی د شبه جمودي یا د شبه معنوي په وجه مبني دئ ځکه دَی متضمن معنی د "مِنۡ اِسۡتِغۡرَاقِیَّه" یا د "لام استغراقیه" لره وي. (همع الهوامع)

(۵) "عَوۡضُ" د مستقبل منفي د استغراق دپاره راځي او دَی د شبه جمودي یا شبه معنوي په وجه سره مبني دئ "کَمَا مَرَّ".

۸. "اَمسِ" (۱) د "اَمسِ" معنیٰ (تېره سوې ورځ) "اَمسِ" د تیرې سوې ورځې دپاره راځي او دی مبني بر کسره وي لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ اَمْسِ" او لفظ د "مَسَاءَ" هم ظرف دئ په معنیٰ د مابنام سره استعمالیږي.

## څلورمه خبره:

"مُذْ و مُنْذُ" (۲) د دوو معناوو دپاره راځي:

(۱) د ابتداء مدت دپاره راځي. کله چې په جواب د "مَتٰی" کې راسي لکه: "مَتٰی مَا رَاَيْتَ زَيْدًا". جواب "مَارَاَيْتُهُ مُذْ يَوْمُ الْجُمُعَةِ".

(۲) او کله د جميع مدت دپاره راځي چې په جواب کې د "كَمْ" راسي لکه: "كَمْ مُدَّةً مَارَاَيْتَ زَيْدًا" جواب: "مَارَاَيْتُهُ مُذْ يَوْمَانِ".

---

(۱) "اَمسِ" چې کله معرفه وي نو مبني بر کسره وي او منصوب محلاً وي بناءِ بر ظرفیت زمان، او د ده څخه مراد د نن ورځې څخه مخکې پرون ورځ ده لېکن کله کله دَی د نصب علی الظرفیت څخه خارج سي او د "مِنْ" یا د "مُنْذُ مُذْ" په وجه مجروره سي او محلاً فاعل وي یا مفعول او یا بل شی وي "اَمسِ" چې کله نکره وي یا مضاف وي یا الف لام پر داخل سي نو په دې درې صورتو کې په اتفاق سره دَی معرب دئ لکه: "مَضٰى اَمْسُنَا وَ مَضٰى الْاَمْسُ الْمُبَارَكُ كُلُّ غَدٍ صَارَ اَمْسًا اَمْسِ". "اَمسِ" د شبه معنوي په وجه مبني دئ ځکه دَی د فعل ماضي معنی لره متضمن دئ او په دې صورت کې د ده څخه مراد د نن ورځې څخه مخکې هسې يو عامه ورځ ده د تیرو سوو ورځو څخه. (المقاصد النحوية بحواله جامع الدروس العربية)

(۲) "مُذْ. مُنْذُ" کله ظرف واقع کیږي: کله غیر ظرف او حرف جر واقع کیږي. درې صورتونه دي: (۱) که چیرې د دوی څخه وروسته جمله اسمیه وه یا فعلیه ماضویه نو بیا دوی ظرف مضاف وي او د دوی څخه وروسته جمله په محل د جر کې ده لکه: "مَا تَرَكْتُ خِدْمَةَ الْاُمَّةِ مُنْذ نَشَاْتُ". (۲) که چیرې د دوی څخه وروسته اسم مفرد مرفوع وو، نو بیا دوی غیر ظرف دي. لکه: "مَا رَاَيْتُكَ مُذْ يَوْمُ الْجُمُعَةِ اَوْ مُذْ يَوْمَانِ"، نو بیا عند البصریین دوی مبتداء ما بعد اسم مرفوع یې خبر دئ یا برعکس، او عند الکوفیین هغه اسم مرفوع د فعل مقدر په وجه مرفوع دئ، "تَقْدِيْرُهُ اَیْ مُذْ كَانَ اَوْ مَضٰى يَوْمُ الْجُمُعَةِ اَوْ يَوْمَانِ". (۳) که چیرې د دوی څخه وروسته اسم مجرور وي، نو بیا دوی حروف جاره دي بیا که چیرې ماضي زمانه وي نو دوی د "مِنْ" په معنی سره دي لکه: "مَارَاَيْتُهُ مُذْ يَوْمِ الْخَمِيْسِ: اَیْ مِنْ يَوْمِ الْخَمِيْسِ" او که زمانه حال وي نو بیا دوی د "فِيْ" په معنی سره دي لکه: "مَارَاَيْتُهُ مُذْ يَوْمِنَا: اَیْ فِيْ يَوْمِنَا" او که چیرې نکره معدوده وه نو بیا دوی په معنی د "مِنْ او اِلٰی" سره دي لکه: "مَارَاَيْتُهُ مُنْذُ ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ: اَیْ مِنْ یا اِلٰی ثَلَاثَةِ اَيَّامٍ". (حاشية الصبيان على شرح الاشموني)

او دوی د شبه وضعي په وجه باندې مبني دي ځکه د "مُذْ" وضع لکه: د "مِنْ" و "مُنْذُ" حمل دئ پر "مُذْ" باندې.

"لَمَّا" (۱) دا هم ظرف دئ د زمان ماضي دپاره راځي په معنٰی د "حِيْن" يعني د (کم وخت سره) لکه: "لَمَّا هَطَلَ الْمَطَرُ جَرَی السَّيْلُ" (چي کم وخت سخت باران وورېدئ نو سېلاب راغلئ).

"رَيْثَ، رَيْثَمَا" (۲) دا هم ظرف زمان دئ منقول د مصدر څخه دئ "رَاثَ، يَرِيْثُ، رَيْثًا" او بيا دی متضمن معنی د زمان لره سو او د ده څخه مراد مقدار وي لکه: "اِنْتَظَرْتُهُ رَيْثَ صَلّٰى اَیْ: قَدْرَ مُدَّةِ صَلَاتِهٖ، وَانْتَظِرْنِيْ رَيْثَ اَجِیُٔ اَیْ قَدْرَ مُدَّةِ مَجِيْئِيْ".

"آلْآنَ" (۳) ظرف زمان دئ د موجوده وخت دپاره راځي لکه: "آلْآنَ اَذْهَبُ".

"بَيْنَا، بَيْنَمَا" (۴) په اصل کي "بَيْنَ" دئ په آخر کي الف د اشباع دئ دمکان دپاره استعمالېږي لېکن کله د زمان دپاره هم استعمالېږي چي کله د ده په آخر کي الف او ما زائده راسي لکه: "سَاعَةُ الْجُمُعَةِ بَيْنَ خُرُوْجِ الْاِمَامِ وَاِنْقِضَاءِ الصَّلٰوةِ".

---

(۱) "لَمَّا" د شرط او جزاء تقاضا کوي کله چي دواړه فعلونه ماضي وي لکه: "لَمَّا جَاءَ اَكْرَمْتُهُ" او که چيري دَی پر مضارع داخل سي نو بيا دَی حرف جازم دئ لکه: "لَمَّا يَضْرِبْ" او که پر ماضي داخل سي، نو بيا حرف شرط دئ مثال يې تېر سو او که چيري د دې دوه ځايه څخه علاوه راسي نو بيا دَی حرف استثناء دي لکه: "جَاءَنِي الْقَوْمُ وَلَمَّا جَاءَ خَالِدٌ" په دې ټولو صورتو کي دَی "مبني الاصل" حرف دي.

(۲) کله کله د "رَيْثَ، رَيْثَمَا" استعمال د هغه فعل سره راځي چي هغه مُصَدَّرْ په "مَا" او "اَنْ" مصدريتين سره وي لکه: "اِنْتَظِرْنِيْ رَيْثَمَا اَحْضُرُ. وَانْتَظَرْتُهُ رَيْثَ اَنْ صَلّٰى" يا د دوی دواړو څخه مجرد او خالي وي لکه: د متن په مثال کي نو په دې صورت کي به دوی مضاف وي و هغه مصدر مؤول ته چي هغه مؤول وي په "مَا" او "اَنْ" سره لکه د متن په مثال کي. او که چيري دوی مُصَدَّرْ په "مَا" و "اَنْ" سره نه وه نو بيا به دوی مضاف وي وجمله ته که چيري د جملې صدر مبني وو دوی به هم مبني بر فتحه وي لکه: "وَقَفَ رَيْثَ صَلَّيْنَا". او که چيري صدر د جملې معرب وو نو بيا به دوی هم معرب وي لکه: "لَا يَصْعُبُ الْاَمْرُ اِلَّا رَيْثَ يَرْكَبُهُ" او دوی د شبه افتقاري په وجه مبني دي ځکه دوی اکثره و جمله ته مضاف وي. (جامع الدروس العربية)

(۳) "آلْآنَ" يا خو د شبه معنوي په وجه مبني دئ ځکه دَی متضمن معنی لره د "اَلْ" دئ. يا د شبه جمودي په وجه باندي او پر ده باندي د حروف جاره څخه "مِنْ، اِلٰى، حَتّٰى، مُذْ، مُنْذُ" داخلېدای سي لفظا مبني بر فتحه دئ محلا مجروره وي.

(۴) "بَيْنَا، بَيْنَمَا" د دوی څخه وروسته اکثره جمله اسميه راځي لېکن کله کله جمله فعليه هم راځي دوی د مکان دپاره دي کله د زمان دپاره هم راځي لېکن کله چي د ده سره "الف" يا "مَا" زائده ملحق سي نو بيا دوی په زمان پوري خاص دي.

## پنځمه خبره:

ظروف مکان:

ظروف مکان مبهم هم پر دوه قسمه دي:

۱. محدود لکه: "بَيْتٌ، مَسْجِدٌ، دَارٌ" او دوی معرب دي نو ځکه مصنف رحمه الله نه دي ذکر کړي.

۲. مبهم لکه: "قُدَّامٌ، تَحْتَ، فَوْقَ".

د ظروف مکان مبهم مختصره تشریح:

"اَيْنَ، اَنّٰى" (۱) د دوو معناوو دپاره راځي (۱) د استفهام دپاره لکه: "اَيْنَ تَذْهَبُ، اَنّٰى تَذْهَبُ". (۲) د شرط جازم دپاره لکه: "اَيْنَ تَجْلِسْ اَجْلِسْ، اَنّٰى تَقْعُدْ اَقْعُدْ".

"قَبْلَ، بَعْدَ (۲) قُدَّامٌ، فَوْقَ، خَلْفٌ، تَحْتَ، يَمِيْنٌ، شِمَالٌ، يَسَارٌ، اَوَّلُ، اَسْفَلُ، دُوْنَ، عَلُ بمعنی فَوْقَ، لکه: نَزَلْتُ مِنْ عَلٍ، اَمَامٌ، وَرَاءٌ" دا ټوله ظروف غایات دي د دوی دپاره ځلور حالتونه دي صرف په یوه

---

(۱) "اَيْنَ، اَنّٰى" د شبه معنوي په وجه مبني دي او "اَيْنَ" په معنی د استفهام کله منصوب بيا بر ظرفيت وي لکه: "اَيْنَ خَالِدٌ" یا "اَيْنَ كُنْتَ" کله په "مِنْ" او "اِلٰى" سره مجرور وي لکه: "مِنْ اَيْنَ جِئْتَ اِلٰى اَيْنَ تَذْهَبُ" او کله په ده پسي "مَا" زائده د تاکید هم ملحق کيږي لکه: "اَيْنَمَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ". "اَنّٰى" کله اسم شرط وي په معنی د "اَيْنَ" سره راځي لکه: "اَنّٰى تَجْلِسْ اَجْلِسْ" او کله استفهام وي په معنی د "مِنْ اَيْنَ" سره راځي لکه: "يَا مَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا اَیْ مِنْ اَيْنَ لَكِ هٰذَا" او کله په معنی د "كَيْفَ" سره راځي لکه: "اَنّٰى يُحْيِ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعْدَ مَوْتِهَا اَیْ كَيْفَ يُحْيِيْهَا" او "اَنّٰى" کله ظرف زمان په معنی د "مَتٰى" سره راځي د استفهام دپاره لکه: "اَنّٰى جِئْتَ اَیْ مَتٰى جِئْتَ". (جامع الدروس العربية)

(۲) لفظ "غَيْرَ" چي کله د "لَيْسَ" او د "لَا" څخه وروسته راسي لکه: "لَيْسَ غَيْرُ لَا غَيْرَ" او لفظ د "حَسْبُ" و دې ټولو ته د ظروف غایاتو د مشابهت په وجه د ظروف غایاتو حکم ور کول کيږي هغه په دې شکل چي کم ظروف مبني نه وي هغه چي کله مضاف سي و جملې ته یا و کلمه د "اِذْ" ته نو هغه مبني بر فتحه ویل هم جائز دي. د مبني د مصاحبت په وجه یا د اضافت په وجه ځکه مضاف د مضاف اليه څخه بناء حاصلوي لکه: "يَوْمَ يَنْفَعُ الصّٰدِقِيْنَ صِدْقُهُمْ" او د دوی معرب ویل هم جائز دي، ځکه د مضاف د مضاف اليه څخه بناء حاصلول واجب نه دي. دا غه رنګه د لفظ د "غَيْرَ" او "مِثْلُ" هم معرب او مبني دواړه ویل جائز دي. په دې شرط چي یا به د "مَا" مصدريه سره راغلی وي، لکه: "مِثْلَ مَا اَنَّكُمْ تَنْطِقُوْنَ" یا به د "اَنْ" مفتوحه سره راغلی وي لکه: "ضَرَبْتُهُ، غَيْرَ اَنْ ضَرَبَ زَيْدٌ". یا به د "اَنْ" مخفف من المثقل سره وي لکه: "ضَرَبْتُهُ غَيْرَ اَنَّ زَيْدًا قَائِمٌ" او د دوی بناء (مبني والی) د شبه افتقاري په وجه جائز وي، ځکه دوی مضاف اليه ته محتاجه دي او اعراب یې ځکه جائز دئ چي دوی په اصل کي اسم دي او د اسم اعراب جائز دئ او دوی ظروف نه دي صرف د بناء د مناسبت په وجه باندي دلته په ظروفو کي ذکر سوي دي. (همع الهوامع)

حالت کي مبني دي هغه دا چي مضاف اليه يې محذوف منوي وي، تفصيل د صورتو په دې شکل دئ:

۱. دواړه مضاف وي او مضاف اليه مذکور وي لفظًا او معنًا لکه: "جِئْتُکَ قَبْلَ زَيْدٍ وَ بَعْدَ عَمْرٍ".

۲. دواړه مضاف وي او مضاف اليه محذوف وي نسيًا منسيًا لکه: "رُبَّ بَعْدٍ کَانَ خَيْرًا مِنْ قَبْلٍ".

۳. دواړه بالکل مضاف نه وي لکه: "مِنْ قَبْلُ وَ مِنْ بَعْدُ".

۴. د دواړو مضاف اليه محذوف منوي وي يعني په لفظ کي حذف سوی وي صرف په نيت کي موجود وي لکه: "اَمَّا بَعْدُ اَیْ بَعْدَ الْحَمْدِ وَالصَّلٰوةِ وَالتَّسْمِيَةِ" "لِلّٰهِ الْأَمْرُ مِنْ قَبْلُ وَمِنْ بَعْدُ: اَیْ مِنْ قَبْلِ الْغَلَبَةِ وَ مِنْ بَعْدِهَا" صرف په دغه صورت کي دی مبني بر ضمه دئ په باقي صورتو کي معرب دئ.

## شپږمه خبره:

"حَيْثُ" (۱) ظرف مکان مبني على الضم دئ اکثره و جمله فعليه ته مضاف وي لکه: "سَنَسْتَدْرِجُهُمْ مِنْ حَيْثُ لَا يَعْلَمُوْنَ" او کله کله و جمله اسميه ته هم مضاف کيږي لکه: "اِجْلِسْ حَيْثُ خَالِدٌ جَالِسٌ". لېکن کله چي په ده پوري "مَا" زائده ملحق سي نو بيا دَی شرط جازم دئ، لکه: "حَيْثُمَا تَذْهَبْ اَذْهَبْ".

"هُنَا، ثَمَّ" (۲) دا اشارات د مکان دپاره راځي "هُنَا" د مکان قريب دپاره "ثَمَّ" د مکان بعيد دپاره راځي.

---

(۱) "حَيْثُ" د شبه افتقاري په وجه مبني دئ ځکه دَی مضاف اليه ته محتاج دئ او اکثره جمله ته مضاف وي لېکن کله کله مفرد ته هم مضاف وي بيا دی د مکان په معنی سره راځي بيا ځوک وايي دَی معرب دئ او ځوک وايي مبني دئ. لېکن مشهوره بنا ده لکه: "اَمَا تَرٰی حَيْثُ سُهَيْلٌ طَالِعًا اَیْ: مَکَانَ سُهَيْلٍ". او په ترکيب کي به دی مرفوع وي بنا بر ابتدائيت او د ده خبر محذوف وي لکه: "اِجْلِسْ حَيْثُ خَالِدٌ اَیْ حَيْثُ خَالِدٌ جَالِسٌ" او کله په "مِنْ" او "اِلٰی" سره مجروره وي لکه: "مِنْ حَيْثُ اَتَيْتَ اِلٰی حَيْثُ كُنْتَ".

(۲) او کله کله د "ثَمَّ" سره تاء تانيث ملحقه کيږي لکه: "فَمَضَيْتُ ثَمَّةَ قُلْتُ لَا يَعْنِيْنِيْ" په دې وخت کي په محل د نصب کي وي او کله په "مِنْ" او "اِلٰی" سره محلًا مجروره کيږي لکه: "مِنْ هٰهُنَا، اِلٰی هٰهُنَا".

"مَعَ" (١) د مکان او زمان <u>د دوا</u>ړو دپاره استعماليږي او د اجتماع معنٰی ورکوي لکه: "اَنَا مَعَکَ، جِئْتُ مَعَ الْفَجْرِ".

"دُوْنَ" (٢) ظرف مکان دئ او معنٰی د "فَوْقَ" ضد دئ لکه: "هُوَ دُوْنَهُ. اَحَطُّ مِنْهُ رُتْبَةً اَوْ مَنْزِلَةً اَوْ مَکَانًا".

"عِنْدَ، لَدٰی، لَدُنْ" عِنْدَ هم (٣) ظرف مکان دي په معنٰی د (لرولو) سره راځي لکه: "اَلْمَالُ عِنْدَ زَيْدٍ" (مال د زيد سره دئ) او "لَدٰی، لَدُنْ" هم د "عِنْدَ" په معنٰی سره راځي ليکن "عِنْدَ" عام دئ او "لَدٰی او لَدُنْ" خاص دي.

## اوومه خبره:

اسماء کنايات:

اووم قسم د اسم غير متمکن اسماء کنايات دي (۴):

د اسماء کناياتو لغوي او اصطلاحي تعريف:

---

(١) "مَعَ" عند البعض همېشه مبني بر سکون وي ليکن عند البعض دَی معرب لازم النصب دئ دَی اکثره په اضافت سره استعماليږي ليکن کله کله بغير اضافت د تنوين سره استعماليږي لکه: (معًا) په دې صورت کې دَی اکثره حال واقع کيږي لکه: "جِئْنَا مَعًا: اَیْ جَمِيْعًا" او کله په محل د خبر کې وي او دی ظرف متعلق با لخبر وي لکه: "خَالِدٌ وَسَعِيْدٌ مَعًا".

(٢) "دُوْنَ" کله کله د "اَمَامٌ، وَرَاءٌ" په معنی سره هم استعماليږي لکه: "اَلشَّيْئُ دُوْنَکَ اَیْ اَمَامَکَ. قَعَدَ دُوْنَ الصَّفِ اَیْ وَرَائَهُ".

(٣) "عِنْدَ. لَدٰی. لَدُنْ" په "لَدٰی. لَدُنْ" کې حضور شرط وي "فَلَا يُقَالُ لَدَیَّ کِتَابٌ نَافِعٌ اِلَّا اِذَا کَانَ حَاضِرًا" او "عِنْدَ" عام دئ د حاضر او غائب دواړو دپاره استعماليږي لفظ د "اَوَّلُ. او اَسْفَلُ، دُوْنَ" هم په اعراب کې د "قَبْلُ" او "بَعْدُ" په حکم کې دي. او "اَوَّلُ. اَسْفَلُ" د وزن فعل او وصفيت په وجه غير منصرف دي ځکه پر دوی تنوين نه راځي د لفظ "اَوَّلُ" څخه مراد که چيرې وصف وي نو دَی په معنی د "اَسْبَقُ" سره دئ لکه: لَقِيْتُکَ عَامَ اَوَّلَ. او دَی غير منصرف دئ. او که وصف نه وي مراد بيا دَی منصرف دئ. لکه: "مَالَهُ اَوَّلٌ وَلَا آخِرٌ" اَوْ مَالَهُ اَوَّلَةٌ وَلَا آخِرَةٌ".

او کم ظروف چې جمله ته مضاف وي يا و مبهم معرفه ته مضاف وي يا د شرط او استفهام په معنی سره وي هغه نکره وي.

(۴) د کناياتو څخه ټول کنايات نه دي مراد ځکه بعضې کنايات معرب وي لکه: "فُلَانٌ. فُلَانَةٌ" چې د اعلامو څخه کنايه وي نو دوی معرب دي. (همع الهوامع)

کنایات جمع د کنایة ده کنایه په لغت کي "مَا یُکْنٰی بِهٖ" د یو شي د یو غرض پر بنیاد باندي په داسي الفاظو تعبیر کول چي هغه دلالت صراحةً نه وي بلکه کنایةً وي.

او په اصطلاح کي "هِيَ اَلْفَاظٌ مُبْهَمَةٌ مَا یُکْنٰی بِهَا مِنْ عَدَدٍ اَوْ حَدِیْثٍ اَوْ فِعْلٍ" کنایه هغه اسم دئ چي پر مبهم عدد یا پر مبهمه خبره باندي دلالت کوي.

او الفاظ د کنایة پنځه دي:

"کَمْ، کَذَا، کَاَیِّنْ، کَیْتَ، وَ ذَیْتَ".

"کَمْ، کَذَا، کَاَیِّنْ" (۱) کنایه د عدد څخه دي لکه: "کَمْ مَالًا اَنْفَقْتَ، عِنْدِيْ کَذَا دِرْهَمًا، وَ کَاَیِّنْ مِنْ آیَةٍ فِيْ السَّمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ".

"کَیْتَ، ذَیْتَ" (۲) کنایه د خبري څخه دي او دوی اکثره د واو عطف سره مکرر استعمالیږي لکه: "سَمِعْتُ کَیْتَ وَ کَیْتَ" (ما داسي و داسي واورېدل)، یا لکه: "کَانَ بَیْنِيْ وَ بَیْنَ فَلَانٍ ذَیْتَ وَ ذَیْتَ" (زما او د فلانکي په مینځ کي داسي و داسي خبري وسوې) "فَعَلْتُ ذَیْتَ وَذَیْتَ" (ما داسي و داسي کار و کړئ).

مرکب بنائي:

اتم قسم د اسم غیر متمکن مرکب بنائي دئ: چي د ده بحث په تفصیل سره تېر سوی دئ، "فَلَانُعِیْدُهٗ".

---

(۱) "کَمْ" پر دوه قسمه دئ: (۱) "کَمْ" استفهامیه (۲) "کَمْ" خبریه او دَی د شبه معنوي په وجه مبني دئ ځکه دَی متضمن دئ معنی د استفهام لره او کم خبریه پر ده باندي حمل دئ.

"کَذَا" د کاف تشبیه او "ذَا" اسم اشاره څخه مرکب دئ "کَذَا" لکه: ځنګه چي دَی د ترکیبه څخه مخکي مبني وو بعد الترکیب هم مبني دئ.

(۲) د "کَیْتَ و ذَیْتَ" پر "تَا" باندي درې سره اعرابه ویل جائز دي، "کَیْتَ، ذَیْتَ" او دوی د شبه اهمالي یا د شبه وقوعي په وجه مبني دي: ځکه دوی د جملې پر ځای واقع کیږي.

## جملې:

| عنوان | خبر انشاء | مسند | مسند الیه | معرب | مبنی | اسم غیر متمکن | تعیین اقسام اسم غیر متمکن |
|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ بَعَثْنَاكُمْ مِنْ بَعْدِ مَوْتِكُمْ | خبر | بَعَثْنَا | نَا | ۲.معرب | ۶.مبنی | ظرف زمان / اسم ضمیر | بَعْدِ / كُمْ، نَا، كُمْ |
| فَكُلُوا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ | انشاء | كُلُوا | اَنْتُمْ | + | ۸.مبنی | ظرف مکان / اسم ضمیر | حَيْثُ / اَنْتُمْ / هَا / تُمْ |
| هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ | خبر | مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ | هٰذَا | ۳.معرب | ۳.مبنی | اسم اشاره / اسم ظرف | هٰذَا / عِنْدِ |
| اللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ | خبر | يَحْكُمُ | اللّٰهُ | ۳.معرب | ۳.مبنی | ظرف زمان / اسم ضمیر | بَيْنَ / يَوْمَ / هُوَ / هُمْ |
| اَيْنَ تَذْهَبُونَ | انشاء | تَذْهَبُونَ | اَنْتُمْ | ۱.معرب | ۲.مبنی | ظرف زمان / ضمیر | اَيْنَ / اَنْتُمْ |
| وَيَقُولُونَ مَتٰى هٰذَا الْوَعْدُ | خبر | يَقُولُونَ | هُمْ | ۲.معرب | ۳.مبنی | ظرف زمان / اسم اشاره / اسم ضمیر | مَتٰى / هٰذَا / هُمْ |
| وَاجْعَلْ لَنَا مِنْ لَدُنْكَ وَلِيًّا | انشاء | اِجْعَلْ | اَنْتَ | ۱.معرب | ۸.مبنی | ظرف مشترک / اسم ضمیر | لَدُنْ / اَنْتَ / نَا / كَ |
| فَاَيْنَمَا تُوَلُّوا فَثَمَّ وَجْهُ اللّٰهِ | خبر | تُوَلُّونَ، فَثَمَّ | اَنْتُمْ / وَجْهُ اللّٰهِ | ۳.معرب | ۵.مبنی | ظروف مکان / اسم ضمیر | اَيْنَمَا / ثَمَّ / اَنْتُمْ |
| قَبْ قَبْ صَوْتُ السَّيْفِ | خبر | صَوْتُ السَّيْفِ | قَبْ قَبْ | ۲.معرب | ۱.مبنی | اسماء اصوات | قَبْ قَبْ |
| قَدْ زَيْدًا دِرْهَمٌ | خبر | قَدْ | دِرْهَمٌ | ۲.معرب | ۱.مبنی | اسم فعل | قَدْ بمعنی يَكْفِيْ |
| وَكَاَيِّنْ مِنْ آيَةٍ فِي السَّمٰوَاتِ وَالْاَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا | خبر | يَمُرُّونَ | كَاَيِّنْ الخ | ۵.معرب | ۹.مبنی | اسم کنایه / اسم ضمیر | كَاَيِّنْ / هُمْ. هَا |
| اَمَامَكَ | انشاء | اَمَامَكَ بمعنی تَقَدَّمْ | اَنْتَ | ۱.معرب | ۲.مبنی | اسم فعل / اسم ضمیر | اَمَامَكَ بمعنی تَقَدَّمْ / اَنْتَ |

## التمرين:

"فَجَعَلْنَاهَا نَكَالًا لِمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا.، قَالُوا الْآنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ.، أَيْنَ الْمَفَرُّ.، قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ.، وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ.، قَالَ زَيْدٌ نِخْ نِخْ.، وَاذْكُرُوا إِذْ أَنْتُمْ قَلِيلٌ.، وَكَمْ مِنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا.، حَيَّهَلِ الصَّلٰوةَ.، مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِتَسْحَرَنَا بِهَا".

فصل بدانکه اسم بر دو ضرب است معرفه و نکره الخ:............ الی قوله فصل بدانکه اسم بر سه صنف است.

## ترجمه:

پوه سه! چي اسم پر دوه قسمه دئ: (۱) معرفه (۲) نکره.

معرفه هغه ده چي د معین شي دپاره وضع سوی وي او دا پر اووه قسمه ده: اول "مضمرات"، دوهم "اعلام" لکه: "زَيْدٌ وَ عَمْرٌو" دریم "اسماء اشارات"، څلورم "اسماء موصولات"، او دې دوو قسمو ته مبهمات ویل کیږي. پنځم قسم معرفه بنداء لکه: "يَا رَجُل" شپږم قسم معرفه په الف لام سره لکه:

"اَلرَّجُلُ" اووم قسم چي ددوی څخه ویوه ته مضاف وي لکه: "غُلَامُهُ، غُلَامُ زَيْدٍ، غُلَامُ هٰذَا، غُلَامُ الَّذِيْ عِنْدِيْ، غُلَامُ الرَّجُلِ".

او نکره هغه ده چي د غیر معین شي دپاره وضع سوی وي. لکه: "رَجُلٌ، فَرَسٌ".

پوه سه! چي اسم پر دوه قسمه دئ: (۱) مذکر (۲) مؤنث، مذکر: هغه اسم دئ چي په ده کي علامه د تانیث نه وي لکه: "رَجُلٌ" وغیره. او مؤنث هغه کلمه ده چي په ده کي علامه د تانیث موجوده وي، لکه: "اِمْرَاَةٌ" علامې د تانیث څلور دانې دي: اول تاء لکه: "طَلْحَةُ" دوهم الف مقصوره لکه: "حُبْلٰی". دریم الف ممدوده لکه: "حَمْرَاءُ". څلورم تاء مقدره لکه: "اَرْضٌ" چي په اصل کي "اَرْضَةٌ" وو په دلیل د "اُرَيْضَةٌ" سره. ځکه تصغیر شی خپل اصل ته ردوي. او و دې مؤنث ته مؤنث سماعي ویل کیږي.

پوه سه! چي مؤنث پر دوه قسمه دئ مؤنث حقیقي مؤنث لفظي، مؤنث حقیقي هغه دئ چي د ده په مقابله کي یو حیوان مذکر موجود وي. لکه: "اِمْرَاَةٌ" چي د دې په مقابله کي "رَجُلٌ" دئ. او "نَاقَةٌ" د دې په مقابله کي "جَمَلٌ" دئ او مؤنث لفظي هغه دئ چي د ده په مقابله کي حیوان مذکر نه وي. لکه: "ظُلْمَةٌ و قُوَّةٌ".

## الدرس الخامس عشر:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د اسم اول تقسیم:

اسم په اعتبار د عموم او خصوص سره پر دوه قسمه دئ: (۱) معرفه (۲) نکره.

د معرفې تعریف:

معرفه "مَاوُضِعَ لِشَيْءٍ مُعَيَّنٍ" چي دی د یو معلوم شي دپاره وضع سوی وي. لکه: "عَمْرٌو بَكْرٌ".

د معرفې اقسام:

معرفه پر اووه قسمه ده: (۱) أعلام (۲) مضمرات (۳) اشارات (۴) موصولات (۵) معرفه بالنداء (٦) معرفه بالف لام (۷) چي مضاف وي و يوه د دا پنځو اقسامو ته ماسوای د معرفه بالنداء څخه.

**فائده:**

په ټوله دنيا کي اعرف د معارف لفظ د "الله" دئ ځکه چي د ده په وجه باندي و هر شي ته تعين او تعريف حاصل دئ.

اول علم:

د علم تعريف:

"اَلْعَلَمُ مَا وُضِعَ لِشَيْئٍ مُعَيَّنٍ لَا يَتَنَاوَلُ غَيْرَهُ بِوَضْعٍ وَاحِدٍ". علم هغه اسم دئ چي د معين شي دپاره وضع سوی وي. په داسي حال کي چي په وضع واحد سره بل شي لره شامل نه وي.

د علم اقسام (۱):

علم پر درې قسمه دئ: (۱) کنيت (۲) لقب (۳) اسم محضه.

که چيري په سر کي يې لفظ د "اَبٌ" يا د "اُمٌّ" يا د "اِبْنٌ" يا د "بِنْتٌ" راغلی وو هغه کنيت دئ: لکه: "اَبُوْ مُوْسٰى الْاَشْعَرِيّ". او که چيري د ده څخه مقصود مدح وه لکه: "اَلرَّشِيْدُ وَ زَيْنُ الْعَابِدِيْنَ"

(۱) عَلَم د بل تقسيم په اعتبار سره پر دوه قسمه دئ: (۱) علم شخص (۲) علم جنس. علم شخص چي د وضع په اعتبار سره په يو فرد پوري خاص وي د جنس نورو افرادو لره شمول نه کوي لکه: "زَيْدٌ".

علم جنس چي د جنس ټولو افرادو لره شمول کوي او په يو فرد پوري خاص نه وي لکه: "اُسَامَه". چي علم دئ د "اَسَدٌ" دپاره او د لفظ په اعتبار سره پر ده باندي د علم احکام جاري کيږي يعني په ده سره ابتداء کيږي لکه: "اُسَامَةُ هٰذَا" او د ده څخه حال واقع کيږي لکه: "هٰذَا اُسَامَةُ مُقْبِلًا" او دی غير منصرف دئ نه پر ده باندي حرف تعريف داخليدای سي او نه دده اضافت کيږي نو ځکه "اَلْاُسَامَةُ" يا "اُسَامَةُ الْغَابَةِ" ويل جائز نه دي، لکه: څنګه چي "اَلْاَسَدُ" و "اَسَدُ الْغَابَةِ" ويل کيږي، نو په دې اعتبار سره دی معرفه دئ لېکن د معنی په اعتبار سره جنس دئ نکره دئ اطلاق يې پر کثير او قليل دواړو باندي کيږي.

د علم جنس او اسم جنس فرق دا دئ: چي علم جنس لفظا معرفه وي او معنا نکره او اسم جنس لفظا او معنا نکره وي نو ځکه پر ده باندي د علم احکام نسي جاري کېدای.

او اسم به يا د معين شخص دپاره وضع سوی وي. علم شخص دئ لکه: "زَيْدٌ" او که د ماهيت کلي دپاره وضع سوی وي نو بيا به يا په ذهن کي متعين وي يا به نه وي که په ذهن کي متعين وو هغه علم جنس دئ لکه: "اُسَامَةُ" او که په ذهن کي متعين نه وو هغه اسم جنس دئ لکه: "اَسَدٌ". (همع الهوامع جلد ۱ صفحه نمبر ۲۳۲)

او يا ذم وو لکه: "اَعْشٰى" (چي د شپې په سترګو نه ويني) "اَلشَّنْفَرِيُّ" (غټو شونډو والا) بيا لقب دئ او که چيري مدح او ذم مقصود نه وو بيا اسم محضه دئ لکه: "زَيْدٌ".

مضمرات (۱):

په ټولو ضمائرو کي اعرف ضمير د متکلم دئ بيا د مخاطب دئ او بيا د غائب ضمير دئ.

دوهم اسماء اشارات (۲):

دريم موصولات:

"قَدْمَرَّ تَفْصِيْلُهَا".

معرفه بالنداء (۳):

لکه: "يَارَجُلُ" معرفه بالنداء هغه وخت معرفه وي چي کم وخت په ده کي تعين مقصود وي ورنه بيا دی نکره دئ لکه: "يَارَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ".

معرفه بالف لام:

لکه: "اَلرَّجُلُ".

معرفه په اضافت معنوي:

---

(۱) په مضمرات کي اعرف د معارف ضمير د متکلم دئ ځکه په ده کي التباس بالکل نه راځي لېکن د مخاطب په ضمير کي ډېر ځله التباس راځي چي کم وخت مخاطب متعدد وي او بيا د غائب په ضمير کي التباس راځي په دې شرط چي دَی به سالم عن الابهام وي يعني د ده څخه مخکي به يو اسم صريحي وي خواه که معرفه وي او که نکره وي، او دَی هغه ته راجع وي، احترازي مثال لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو فَاَكْرَمْتُهٗ" د "اَكْرَمْتُهٗ" په ضمير کي ابهام دئ چي "زَيْدٌ" ته راجع دئ او که "عَمْرٌو" ته په دې صورت کي د دغه ضمير چي سالم عن الابهام نه دئ د ده مرتبه د علم ده بلکه د علم څخه هم کمه ده. (شرح شذور الذهب صفحه نمبر ۱۳۲، و حاشية الصبيان ج۱ ص ۱۶۰)

(۲) اسماء اشارات و موصولات و دې دوه قسمو ته مبهمات وايي: ځکه اسم اشاره بغير د اشاره حسيه څخه د مخاطب په ذهن کي مبهمه وي هغه په دې شکل چي د متکلم سره ډېر شيان وي او هر شی مشار اليه جوړېدای سي او دا غه رنګه موصول بغير صله مبهم وي نو ځکه دوی ته مبهمات ويل کيږي. (نصر الخبير)

(۳) عند البعض "يَارَجُلُ" نکره دئ لکه: څنګه چي قبل النداء نکره وو او عند البعض معرفه دئ لېکن د معرفه مستقل قسم نه دئ بلکه په معرف باللام کي داخل دئ ځکه دا په اصل کي "اَلرَّجُلُ" وو، کله چي حرف نداء پر داخله سوه نو بيا دوه صورته جوړيږي يا به "اَيُّهَا" د فاصله دپاره راوړل کيږي، يا به الف لام حذف کيږي. (همع الهوامع)

چي يو د دې پنځو شيانو ته مضاف وي. ما سوای د نداء څخه څکه په نداء کي دوه صورتونه ممکن دي او دواړه باطل دي:

۱. اول صورت: "غُلَامُ يَا زَيْدُ" په دې صورت کي فصل په مينځ کي د مضاف او مضاف اليه راځي "وَهُوَ بَاطِلٌ".

۲. دوهم صورت: "يَا غُلَامُ زَيْدٍ" په دې صورت کي زيد منادیٰ نه سو پاته "وَ هٰذَا اَيْضًا بَاطِلٌ لِاَنَّهُ خِلَافُ الْمَفْرُوْضِ".

**دوهمه خبره:**

**فائده:**

بعضي الفاظ د توغل ابهام په وجه باندي د اضافت الی المعرفه باوجود نه معرفه کيږي هغه (۱) لکه: (۱) "نَحْوٌ" (۲) "نَظِيْرٌ" (۳) "شِبْهٌ" (۴) "وَحْدٌ" (۵) "غَيْرٌ" (۶) "مِثْلٌ" (۷) "شَانٌ" (۸) "سِوٰی".

د نکرې تعريف:

"مَا وُضِعَ لِشَيْئٍ غَيْرِ مُعَيَّنٍ" (چي د نا معلوم شي دپاره وضع سوی وي).

د نکرې اقسام (۲):

نکره پر دوه قسمه ده: (۱) اسم ذات چي د جاندار (ساه لرونکي) يا بې جانه شيانو د ذات نوم وي، لکه: "اِنْسَانٌ، فَرَسٌ". (۲) اسم صفت چي د يو شي صفت يا شان بيانوي لکه: "حَسَنٌ، قَبِيْحٌ".

د اسم دوهم تقسيم:

---

(۱) لېکن که چيري د دوی د مضاف اليه ضد يو شی وو نو بيا دوی معرفه کيږي لکه: "غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ" دلته د "اَلْمَغْضُوْب" ضد يو دئ چي "اَلضَّالِيْنَ" دئ او داغه رنګه "عَلَيْکَ بِالْحَرَکَةِ غَيْرَ السُّکُوْنِ" دلته د سکون ضد يو دئ چي حرکت دئ. (خضري جلد ۱ صفحه ۵۳)

(۲) د نکرې علامات دا دي چي پر نکره باندي "اَلِف لَام، رُبَّ، کَمْ خبريه"، داخلېدای سي او حال و تميز واقع کېدای سي او د "لَا" "مُشَبَّهٌ بِلَيْسَ" دپاره اسم واقع کېدای سي.

اسم په اعتبار د جنس سره پر دوه قسمه دئ: (۱) مذکر (۲) مؤنث[۱].

د مذکر تعريف:

مذکر هغه اسم دئ چي په ده کي علامه د تانيث نه وي لکه: "رَجُلٌ".

د مؤنث تعريف:

مؤنث هغه اسم دئ چي په ده کي يوه علامه د علامو څخه د تانيث موجوده وي، لکه: "اِمْرَاَةٌ".

## دريمه خبره:

د تانيث علامات:

د تانيث څلور علامې دي:

۱. "تاء" ملفوظه[۲] لکه: "طَلْحَةُ".

۲. "تاء" مقدره[۳] لکه: "اَرْضٌ" چي په اصل کي "اَرْضَةٌ" وو په دليل د "اُرَيْضَةٌ" سره.

۳. الف مقصوره لکه: "حُبْلٰى".

---

(۱) بعضي حضراتو د مذکر او مؤنث سره د متمکن قيد لګولی دئ چي اسم متمکن په اعتبار د جنس سره پر دوه قسمه دئ مذکر و مؤنث ځکه چي په اسم غير متمکن کي تذکير و تانيث وضعي دي لکه: "هُوَ" د مذکر دپاره او "هِيَ" د مؤنث دپاره وضع سوي دي. لېکن مذکر اصل دئ او مؤنث فرع دئ ځکه په دنيا کي پر هر شي باندي د "شي" اطلاق کېږي خواه که مذکر وي او که مؤنث وي او لفظ د "شي" مذکر دئ. او بله وجه دا ده چي مذکر د علامې او زياتوب محتاجه نه دئ او مؤنث د علامې يا د زياتوب محتاجه دئ، نو ځکه مذکر اصل دئ او مؤنث فرع ده.
که چيري د لفظ "مدلول" مراد سي بيا تذکير و تانيث صرف په اسماء کي متحقق کېږي نه په افعالو کي او نه په حروفو کي او که چيري لفظ "من حيث اللفظ" مراد سي نه د لفظ مدلول نو بيا تذکير و تانيث په اسماؤ او افعالو او حروفو په ټولو کي راتلای سي. (الصبيان جلد ۲ صفحه نمبر ۱۳۴)

(۲) "تَا" چي کله علامه د تانيث جوړېږي نو ددې دپاره شرط دا دئ چي دا به په حالت د وقف کي په "هَا" سره بدلېږي خواه که تاء ملفوظه وي او که مقدره وي لکه: "طَلْحَۃ، اَرْضَۃ".

(۳) "تَا" مقدره په درې علامو سره پېژندل کېږي: (۱) کله په تصغير سره پېژندل کېږي ځکه دا قاعده ده "لِاَنَّ التَّصْغِيْرَ وَالتَّكْسِيْرَ تَرُدَّانِ الشَّيْئَ اِلٰى اَصْلِهَا". لکه: د "اَرْضٌ" تصغير "اُرَيْضَةٌ" راځي. (۲) کله په ضمير سره پېژندل کېږي چي ضمير د مؤنث ورته راجع وي لکه: "فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِيْ اُعِدَّتْ لِلْكَافِرِيْنَ". كَمَا قَالَ الشَّاعِرُ "يُعْرَفُ التَّقْدِيْرُ بِالضَّمِيْرِ... وَنَحْوِهٖ كَالرَّدِّ فِي الصَّغِيْرِ". (۳) او کله په اسم اشاره سره پېژندل کېږي چي د اسم اشاره مؤنث دپاره دی مشار اليه واقع سي لکه "هٰذِهٖ جَهَنَّمُ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ".

۴. الف ممدوده لکه: حَمْرَاءُ".

الف ممدوده چي کله علامه د تانيث جوړيږي د ده دپاره درې شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: د الف څخه وروسته به همزه اصلي نه وي احترازي مثال يې لکه: "قُرَّاءٌ" بر وزن "فُعَّالٌ".

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي همزه به منقلبه نه وي يعني د "واو" او "يَا" څخه به بدل نه وي راغلئ احترازي مثال لکه: "عَلَاءٌ، قَضَاءٌ" په اصل کي "عَلَاوٌ، او "قَضَايٌ" وو.

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي همزه به د الحاق دپاره نه وي زيات سوی احترازي مثال لکه: "عِلْبَاءٌ" (د غاړي هغه اوږده پوله چي و دواړو طرفو ته وجود لري) ملحق د "قِرْطَاسٌ" (نښانه، ورق) اتفاقي مثال "صَحْرَاءُ، خَضْرَاءُ، عَزْرَاءُ".

## فائده:

الف مقصوره چي کله علامه د تانيث جوړيږي نو د ده دپاره هم درې شرطونه دي [1]:

۱. چي الف مقصوره به زائده وي د تانيث دپاره او منقلبه نه وي احترازي مثال لکه: "فَتٰى" (ځوان) "عَصَا" (لکړه) په اصل کي "فَتَيٌ" او "عَصَوٌ" وو.

۲. چي الف مقصوره به د الحاق دپاره نه وي زيات سوی احترازي مثال لکه: "اَرْطٰى" (يو قسم درخته ده) د "جَعْفَرٌ" سره د الحاق په وجه باندي الف مقصوره الحاقي دئ.

۳. الف مقصوره به د محض زيادت دپاره نه وي احترازي مثال لکه: "قَبَعْثَرٰى" (د ډنګر اوښ بچی) اتفاقي مثال لکه: "حُبْلٰى" (حامله ښځه).

---

(۱) الف مقصوره او الف ممدوده مطلقا پر څو قسمه راځي لېکن دلته د تانيث په باب کي مراد هغه الف مقصوره او الف ممدوده دي چي د تانيث دپاره زيات سوي وي نو ځکه بيا اعتراض په "مُوْسٰى، عِيْسٰى، مُصْطَفٰى، فَتٰى، عَصَا، قُرَّاءٌ، عِلْبَاءٌ" و غيره سره نه واردېږي؛ که څه هم په هغه کي الف مقصوره او الف ممدوده سته. (از مرتب عفي عنه)

**څلورمه خبره:**

"تَا" د مختلفو معناوو دپاره استعمالیږي که چیرې د اسم په شروع کې راغلې وه یا به حرف جر وي لکه: "تَاللهِ" یا به اسم اشاره وي لکه: "تَا، تِيْ، تِهٖ، تِهِيْ" او کچیرې د اسم په آخر کې راغلې وه:

۱. کله د خطاب دپاره راځي لکه: "اَنْتَ".

۲. کله د واحد او جنس په مینځ کې د فرق کولو دپاره راځي لکه: "تَمْرٌ، تَمْرَةٌ، کَلِمٌ، کَلِمَةٌ".

۳. کله د مذکر دپاره راځي لکه: "ثَلَاثَةُ رِجَالٍ".

۴. کله د حرف محذوف په عوض کې وي لکه "عِدَّةٌ" (وعده) چې په اصل کې "وِعْدٌ" وو.

۵. کله د یا نسبت په عوض کې د جمع په آخر کې راځي لکه: د "حَنْبَلِيٌّ" څخه "حَنَابِلَةٌ" د "اَشْعَرِيٌّ" څخه "اَشَاعِرَةٌ".

۶. کله د نقل دپاره راځي لکه: "کَافِيَةٌ".

۷. کله د مبالغې دپاره راځي لکه: "رِوَايَةٌ" بمعنی "کَثِيْرُ الرِّوَايَة".

۸. کله د تاکید د مبالغې دپاره راځي لکه: "عَلَّامَةٌ نَسَّابَةٌ".

۹. کله د مصدریت دپاره راځي لکه: "فَاعِلِيَّتْ، مَفْعُوْلِيَّتْ".

۱۰. کله د وحدت دپاره راځي لکه: "نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ".

۱۱. کله د تاکید د تانیث دپاره راځي لکه: "نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ".

۱۲. کله د زینت (ښائست) دپاره راځي لکه: "بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ".

۱۳. کله زائده راځي لکه: د "زِنْدِيْقٌ" څخه "زَنَادِقَةٌ" لیکن د اسم په آخر کې د "تَا" اصل استعمال د مذکر او مؤنث د فرق کولو دپاره دئ په صفاتو کې په کثرت سره لکه: "مُسْلِمٌ، مُسْلِمَةٌ" او په اسماؤ کې په قلت سره.

او که چیرې "تَا" د فعل په شروع کې راغلې وه نو بیا دا اکثره د حروف اتین څخه راځي لکه: "تَضْرِبُ" او که د فعل په آخر کې راغلې وه بیا کله صرف علامه د تانیث وي لکه: "ضَرَبَتْ" او کله

علامه د تانیث او ضمیر د فاعل هم وي لکه: "ضَرَبْتِ" او کله صرف ضمیر د مخاطب وي لکه: "ضَرَبْتَ" او کله ضمیر د متکلم وي لکه: "ضَرَبْتُ".

## پنځمه خبره:

د مؤنث تقسیمات:

په مؤنث کي دوه تقسیمونه کیږي:

"اَلتَّقْسِیْمُ الْاَوَّلُ":

د اول تقسیم په اعتبار سره مؤنث پر دوه قسمه دئ: (۱) مؤنث سماعي (۲) مؤنث قیاسي.

د مؤنث سماعي تعریف:

مؤنث سماعي هغه مؤنث دئ چي په ده کي علامه د تانیث نه وي بلکه اهل لغت دی مؤنث استعمال کړی وي لکه: "شَمْسٌ".

د مؤنث قیاسي تعریف:

مؤنث قیاسي هغه مؤنث دئ چي په ده کي علامه د تانیث موجوده وي لکه: "اِمْرَاَةٌ" او علامې د تانیث څلور دي: "قَدْ مَرَّ تَفْصِیْلُهَا آنِفًا".

د مؤنث سماعي علامات:

د مؤنث سماعي نولس (۱۹) علامات دي:

۱. تاء مقدره ده لکه: "اَرْضٌ".
۲. هغه اسما چي صرف د مؤنث دپاره استعمالیږي لکه: "اُمٌّ، اُخْتٌ، عَرُوْسٌ".
۳. اعلام د مؤنث یعني د مؤنث نومونه لکه: "زَیْنَبُ، مَرْیَمُ".
۴. صفات خاصه د مؤنث دي یعني هغه صفتونه چي صرف په ښځو کي استعمالیږي لکه: "حَائِضٌ، طَالِقٌ، ثَیِّبٌ، بَاکِرٌ، مُطْفِلٌ، مُتْئِمٌ".
۵. د ملکو نومونه لکه: "مِصْرُ شَامٌ".
۶. د قبیلو نومونه لکه: "بَنُوْ نَظِیْر، بَنُوْ قُرَیْظَه".
۷. اعضا متکرره د انسان سِوای د "خَدَّیْنِ او حَاجِبَیْنِ" څخه.

۸. د حيوانانو نومونه لکه: "ثَعْلَبٌ، اَرْنَبٌ".

۹. د قدرتي اشياء نومونه لکه: "اَرْضٌ، نَارٌ، مِلْحٌ".

۱۰. د جهنم نومونه لکه: "سَقَرُ، سَعِيْرٌ".

۱۱. د مصنوعي اشياء نومونه لکه: "عَصًا، دَلْوٌ".

۱۲. د شرابو نومونه لکه: "صَبُوْحٌ، غَبُوْقٌ".

۱۳. د غزاګانو نومونه لکه: "حُنَيْنٍ، بَدْرٍ، اُحُدٌ".

۱۴. د هواګانو نومونه لکه: "قَبُوْلٌ، دَبُوْرٌ".

۱۵. د حروف نومونه لکه: "حُرُوْفِ جَارَهْ، حُرُوْفِ نِدَاءْ".

۱۶. حروف تهجي لکه: "بَا، تَا".

۱۷. کله چي ضمير د مؤنث ورته راجع وي لکه: "وَالسَّمَاءَ بَنَيْنَاهَا".

۱۸. چي اسم اشاره مؤنث ورته استعمال سوې وي، لکه: "هٰذِهٖ جَهَنَّمُ".

۱۹. چي صفت يې مؤنث راغلی وي، لکه: "جَهَنَّمُ الَّتِيْ".

## شپږمه خبره:

## فائده:

يو څو نور الفاظ دي چي عرب يې کله مؤنث استعمالوي او کله مذکر تفصيل يې په حاشيه کي موجود دئ (۱).

---

(۱) بعض الفاظ چي عرب يې کله مذکر استعمالوي او کله مؤنث هغه دا الفاظ دي:
"اَرْضٌ، حَرْبٌ، خَمْرٌ، دَارٌ، رِيْحٌ، عَصًا، قَوْسٌ، رَحِمٌ، سُوْقٌ، نَفْسٌ، نَعْلٌ، كَاْسٌ، سَبِيْلٌ، اِزَارٌ، حَالٌ، حَانُوْتٌ، طَرِيْقٌ، سِكِّيْنٌ، صَاعٌ، لِسَانٌ، اِسْتٌ"
لکه: عرب وايي: "اَلْفٌ فِي الْمَاءِ...وَاِسْتٌ فِي السَّمَاءِ". (ضوابط النحوية)

د مؤنث سماعي اقسام:

مؤنث سماعي پر دوه قسمه دئ: (۱) جائز التانیث (۲) واجب التانیث.

جائز التانیث [۱] هغه مؤنث سماعي دئ چي د ده تذکیر او تانیث دواړه جائز وي یعني کله د مذکر ضمیر ورته راجع کیږي لکه: "اَلسَّمَاءُ مُنْفَطِرٌ بِهِ" او کله د مؤنث ضمیر ورته راجع کیږي لکه: "وَالسَّمَاء بَنَيْنَاهَا".

واجب التانیث [۲] هغه مؤنث سماعي دئ چي د ده تانیث واجب وي یعني د مذکر ضمیر نسي ورته راجع کېدای بلکه همېشه د مؤنث ضمیر ورته راجع کیږي لکه: "عَلِمَتْ نَفْسٌ مَّا اَحْضَرَتْ" "يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ"، "وَنَفْسٍ وَّ مَا سَوَّاهَا".

**فائده:**

هغه مصادر چي د هغه څخه مراد وصف وي په هغه کي تذکیر او تانیث علی السویة (برابر) دي نو ځکه مصدر چي کله مبتداء واقع سي نو د ده خبر مذکر او مؤنث دواړه راوړل کېدای سي لکه: "اَلصَّلٰوةُ حَاضِرٌ، حَاضِرَةٌ". او دَی چي کله خبر واقع سي نو د ده مبتداء مذکر او مؤنث دواړه راتلای سي لکه: "هٰذَا قَوْلٌ حَقٌّ، تِلْكَ قَضِيَّةٌ حَقٌّ".

---

**فوائد:**

۱. او علامې د تانیث همېشه د حروف اصلیه وو څخه جلا وي. نو ځکه لفظ د "شَمْسٌ" په اصل کي "شَمْسَةٌ" وو او "عَيْنٌ" په اصل کي "عَيْنَةٌ" وو.

۲. او د بعضو اسماء وو په آخر کي علامه تانیث وي لېکن هغه مذکر استعمالیږي لکه: "طَلْحَةُ، خَلِيْفَةٌ، مُغِيْرَةُ".

۳. او کله کله د جمع په آخر کي تاء زیاتیږي لکه: "اَشَاعِرَةٌ، تَلَامِذَةٌ، اَسَاتِذَةٌ". (نصر الخبیر)

[۱] د جائز التانیث الفاظ: "سَمَاءٌ، سَلَمٌ، قِدْرٌ، مِسْكٌ، حَالٌ، بَيْتٌ، طَرِيْقٌ، ثَرىٰ، عُنُقٌ، لِسَانٌ، سَبِيْلٌ، ضُحٰى، صَلَاحٌ، قَفَا، سِرْطَانٌ، سِكِّيْنٌ".

[۲] د واجب التانیث الفاظ: "عَيْنٌ، اُذُنٌ، نَفْسٌ، دَارٌ، دَلْوٌ، مِنىٰ، كَفٌّ، جَهَنَّمُ، جَحِيْمٌ، سَعِيْرٌ، نَارٌ، لَظٰى، عَقْرَبٌ، اَرْضٌ، اِسْتٌ، عَضُدٌ، يَدٌ، عَصَا، فِرْدَوْسٌ، رِيْحٌ، خَمْرٌ، فَلَكٌ، غَوْلٌ، ثَعْلَبٌ، فَارِسٌ، اَرْنَبٌ، بِئْرٌ، ذَهَبٌ، تِبْرٌ، يَنْبُوْعٌ، دِرْعٌ، قَدَمٌ، كَبِدٌ، عَقِبٌ، اَفْعٰى، سَقَرٌ، حَرْبٌ، كَاسٌ، ثَدْيٌ، عَنْكَبُوْتٌ، يَمِيْنٌ، شِمَالٌ، اِصْبَعٌ، رِجْلٌ، سَرَاوِيْلُ، ضَبُعٌ، سَاقٌ، شَمْسٌ". (ضوابط نحویه)

**اوومه خبره:**

د يو ځو اوزانو او اسماؤ استعمال په اعتبار د تذکير او تانيث سره على السويه دئ:
يو ځو اسماء او اوزان دي چي د مذکر او مؤنث دپاره على السويه (برابر) استعماليږي.

۱. اسم تفضيل چي کله مستعمل په "مِنْ" سره وي لکه: "اَلصَّلٰوةُ خَيْرٌ مِنَ النَّوْمِ".
۲. حروف هجاء، لکه: "بَا، تَا، ثَا".
۳. مصادر او هغه اوزان چي د هغه په آخر کي تاء نه ملحق کيږي او هغه پنځه وزنونه دي:
۱. "فَعِيْلٌ" وزن دئ چي کله په معنى د مفعول سره وي لکه "رَجُلٌ جَرِيْحٌ، اِمْرَاَةٌ جَرِيْحٌ".
۲. "فَعُوْلٌ" وزن دئ چي کله په معنى د فاعل سره وي لکه "رَجُلٌ صَبُوْرٌ، اِمْرَاَةٌ صَبُوْرٌ".
۳. "مِفْعَالٌ" وزن دئ لکه "مِعْطَارٌ، مِقْوَالٌ، مِفْتَاحٌ".
۴. "مِفْعَلٌ" وزن دئ لکه "مِغْشَمٌ" په معنى د "شجاع او بهادر" سره.
۵. "مِفْعِيْلٌ" وزن دئ لکه "مِنْطِيْقٌ رَجُلٌ مِنْطِيْقٌ وَ اِمْرَاَةٌ مِنْطِيْقٌ، مِعْطِيْرٌ، مِسْكِيْرٌ يَعْنِيْ كَثِيْرُ الشُّكْر".
۶. "فِعْلٌ" وزن دئ چي کله په معنى د مفعول سره وي لکه: "ذِبْحٌ، طِحْنٌ" "نَاقَةٌ ذِبْحٌ" "جَمَلٌ ذِبْحٌ".
۷. "فَعَلٌ" وزن دئ چي کله په معنى د مفعول سره وي لکه: "جَزَرٌ، سَلَبٌ، نَاقَةٌ جَزَرٌ، جَمَلٌ جَزَرٌ".

د مؤنث دوهم تقسيم:
د دوهم تقسيم په اعتبار سره مؤنث پر دوه قسمه دئ:
۱. حقيقي.
۲. لفظي.

د مؤنث حقيقي تعريف:
مؤنث حقيقي هغه مؤنث دئ چي د ده په مقابله کي مذکر حيوان وي، لکه: "اِمْرَاَةٌ" د ده په مقابله کي "رَجُلٌ" دئ، او "نَاقَةٌ" د ده په مقابله کي "جَمَلٌ" دئ.

د مؤنث لفظي تعريف:

مؤنث لفظي هغه مؤنث دئ چي د ده په مقابله كي حيوان مذكر نه وي لكه: "ظُلْمَةٌ، قُوَّةٌ".

## جملي:

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند اليه | تعداد اسم غير متمكن | تعداد معرفه، نكره | اقسام معرفه | مذكر | مؤنث |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كَلَامُ اللهِ دَوَاءُ الْقَلْبِ | خبر | دَوَاءُ الْقَلْبِ | كَلَامُ اللهِ | + | ۳. معرفه | اضافت/معرف باللام | ۳. مذكر | + |
| حِرْفَةُ الْمَرْءِ كَنْزُهُ | خبر | كَنْزُهُ | حِرْفَةُ الْمَرْءِ | ۱. ضمير | ۳. معرفه | اضافت/معرف باللام/ضمير | ۳. مذكر | ۱. مؤنث |
| اَلدُّنْيَا مَشْحُونَةٌ بِالرَّزَايَا | خبر | مَشْحُونَةٌ | اَلدُّنْيَا | هِيَ | ۳. معرفه ۱. نكره | معرف باللام/د ضمير | + | ۳. مؤنث |
| عَلَيْكُمْ بِسُنَّتِي وَسُنَّةِ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِينَ الْمَهْدِيِّينَ | انشاء | اَلْزِمُوْا | أَنْتُمْ | ۱. اسم فعل ۳. ضمائر | ۸. معرفه | اضافت/معرف باللام/ ضمير | ۷. مذكر | ۲. مؤنث |
| إِذَا أَرَادَ اللهُ بِقَوْمٍ سُوْءًا فَلَا مَرَدَّ لَهُ | خبر | أَرَادَ/لَهُ | اللهُ/مَرَدَّ | ۱. اسم ظرف ۱. اسم ضمير | ۳. معرفه ۳. نكره | علم/ضمير | ۶. مذكر | + |
| يَا أَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ | انشاء | اُدْعُوْا | اَنَا | ۲. اسم ضمير | ۶. معرفه | اضافت/معرف باللام/ضمير | ۱. مشترك | ۳. مؤنث |
| وَالْأَرْضُ مَدَدْنٰهَا | خبر | مَدَدْنٰهَا | الْأَرْضَ | ۱. اسم ضمير | ۲. معرفه | ضمير/معرف باللام | + | ۲. مؤنث |
| بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ | خبر | بَلْدَةٌ طَيِّبَةٌ وَرَبٌّ غَفُورٌ | هٰذِهِ/هُوَ | ۱. اسم اشاره ۳. اسم ضمير | ۳. معرفه ۳. نكره | ۱. اسم اشاره/ ۳. اسم ضمير | ۳. مذكر | ۳. مؤنث |
| وَزَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيحَ | خبر | زَيَّنَ | نَا | ۱. اسم ضمير | ۳. معرفه ۱. نكره | ضمير/معرف باللام | ۲. مذكر | ۲. مؤنث |
| أُسْلُكْ يَدَكَ فِي جَيْبِكَ تَخْرُجْ بَيْضَاءَ مِنْ غَيْرِ سُوْءٍ | انشاء | أُسْلُكْ، تَخْرُجْ | هِيَ، أَنْتَ | ۴. اسم ضمير | ۶. معرفه ۳. نكره | اضافت/ اسم ضمير | ۶. مذكر | ۳. مؤنث |
| وَشَجَرَةً تَخْرُجُ مِنْ طُوْرِ سَيْنَاءَ | خبر | اَنْشَاْ | نَا | ۲. اسم ضمير | ۳. معرفه ۱. نكره | ضمير/علم/اضافت | ۱. مذكر | ۳. مؤنث |
| ذٰلِكُمُ الشَّيْطَانُ يُخَوِّفُ أَوْلِيَاءَهُ | خبر | يُخَوِّفُ | ذٰلِكُمُ الشَّيْطَانُ | اسم اشاره ۲. ضمير | ۵. معرفه | اسم اشاره/ضمير/معرف باللام/اضافت | ۵. مذكر | + |

## التمرين:

"وَاللهُ يَعْلَمُ مَا تَصْنَعُونَ،، ذِكْرُ اللهِ طَمَانِيْنَةُ الْقَلْبِ،، هٰذِهِ نَاقَةُ اللهِ،، اَلشَّيْخَانُ اَفْضَلُ الصَّحَابَةِ،، وَأَرْضُ اللهِ وَاسِعَةٌ،، سَادَةُ الْاُمَّةِ الْفُقَهَاءُ،، يَا بُنَيَّ إِنَّهَا إِنْ تَكُ مِثْقَالَ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ فَتَكُنْ فِي صَخْرَةٍ،، وَمِنْهَا نُخْرِجُكُمْ تَارَةً أُخْرَى،، دَوْلَةُ الْاَرْذَالِ آفَةُ الرِّجَالِ،، سَلَامَةُ الْاِنْسَانِ فِي حَبْسِ النَّفْسِ".

بدانكه اسم بر سه صنف است واحد، مثنى مجموع الخ: ............ الى قوله بدانكه اسم متمكن باعتبار وجوه اعراب بر شانزده قسم است.

## ترجمه:

پوه سه! چي "اسم" پر دري قسمه دئ واحد، تثنيه، جمع "واحد" هغه اسم دئ چي پر يوه دلالت كوي لكه: "رَجُلٌ". مثنى هغه اسم دئ چي پر دوو دلالت كوي په دې طريقه: چي په آخر كي الف و

نون مكسوره يا "ياء" ماقبل مفتوح او نون مكسور يې په آخر كي راغلى وي، لكه: "رَجُلَانِ، رَجُلَيْنِ". او جمع هغه اسم دئ چي د دوو څخه پر زياتو باندي دلالت كوي په دې طريقه: چي په واحد كي تغير راغلى وي، لفظًا لكه: "رِجَالٌ" يا تقديرًا لكه: "فُلْكٌ" واحد يې هم "فُلْكٌ" دئ چي كله پر وزن د "قُفْلٌ" راسي او جمع يې هم "فُلْكٌ" ده چي كله پر وزن د "أُسْدٌ" راسي.

پوه سه! چي جمع د لفظ په اعتبار سره پر دوه قسمه ده:

۱. جمع تكسير.
۲. جمع تصحيح.

جمع تكسير هغه جمع ده چي د واحد بنا او وزن په دې كي محفوظه نه وي پاته سوى لكه: "رِجَالٌ، مَسَاجِدُ" د جمع تكسير اوزان په ثلاثي كي په سماع پوري تعلق لري قياس لره په دې كي دخل نسته او په رباعي او خماسي كي جمع تكسير د "فَعَالِلُ" پر وزن راځي لكه: د "جَعْفَرٌ" څخه "جَعَافِرُ" او د "جَحْمَرِشٌ" څخه "جَحَامِرُ" په حذف د حرف خامس سره.

او جمع تصحيح هغه ده: چي د واحد بنا په دې كي سالمه پاته سوې وي (صرف په آخر كي يې زياتوب راغلى وي).

بيا جمع تصحيح پر دوه قسمه ده:

۱. جمع مذكر.
۲. جمع مؤنث.

جمع مذكر هغه ده چي په آخر كي يې واو ماقبل مضموم او نون مفتوح راغلى وي لكه: "مُسْلِمُوْنَ، مُسْلِمِيْنَ".

جمع مؤنث هغه ده چي په آخر كي يې الف و تاء راغلي وي، لكه: "مُسْلِمَاتٌ".

پوه سه! چي جمع د معنىٰ په لحاظ سره پر دوه قسمه ده:

۱. جمع قلته.
۲. جمع كثرته.

جمع قلته هغه ده: چي تر لسو پر کم باندي د دې اطلاق کيږي او د دې څلورو وزنو څخه پر يو وزن راغلي وي هغه: "اَفْعُلٌ" لکه: "اَكْلُبٌ"، "اَفْعَالٌ" لکه: "اَقْوَالٌ"، "اَفْعِلَةٌ" لکه: "اَعْوِنَةٌ"، "فِعْلَةٌ" لکه: "غِلْمَةٌ"، او دوې جمع تصحيح بغير الف و لام لکه: "مُسْلِمُوْنَ مُسْلِمَاتٌ".

او جمع کثرته هغه ده چي پر لس يا تر لسو پر زيات باندي دلالت کوي د دغه شپږو وزنو څخه ماسواى باقي وزنونه د جمع کثرته دي.

## الدرس السادس عشر:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د اسم دريم تقسيم:

اسم په اعتبار د تعدد سره پر درې قسمه دئ:

۱. واحد.
۲. مثنى.
۳. مجموع.

د واحد تعريف (۱):

واحد هغه اسم دئ چي پر يوه باندي دلالت کوي لکه: "رَجُلٌ".

د مثنى تعريف (۲):

---

(۱) واحد هغه مفرد دئ چي دی پر يوه دلالت کوي لکه: "رَجُلٌ" نو ځکه "اَلرَّجُلُ" دوې کلمې جوړېږي. (نصر الخبير)

(۲) بعضو حضراتو د تثنيې تعريف او وضاحت په دې شکل بيان کړی دئ "اِسْمٌ مُعْرَبٌ نَابَ عَنْ مُفْرَدَيْنِ اِتَّفَقَا لَفْظًا وَ مَعْنًا بِزِيَادَةِ اَلِفٍ وَ نُوْنٍ اَوْ يَاءٍ و نُوْنٍ مَكْسُوْرَةٍ فَاِنْ اِخْتَلَفَا فِي اللَّفْظِ فَهُوَ مِنْ بَابِ التَّغْلِيْبِ نَحْوَ عُمَرَيْنِ فَلَا يُثَنَّيَانِ فَاِنْ اِخْتَلَفَا فِي الْمَعْنٰى فَهُوَ مِنَ الْمُشْتَرَكِ نَحْوَ عَيْنَيْنِ فَلَا يُثَنَّيَانِ.
لِلَّفْظِ مَعْنَيَانِ حَقِيْقِيٌّ وَ مَجَازِيٌّ نَحْوَ رَاَيْتُ اَسَدَيْنِ اَیْ اَسَدًا حَقِيْقِيًّا وَ رَجُلًا شُجَاعًا وَ اِنْ نَابَ عَنْ مُفْرَدَيْنِ بِلَا زِيَادَةٍ فَلَيْسَ بِمُثَنًّى كَشَفْعٍ وَ زَوْجٍ وَ اِنْ نَابَ عَنْ مُفْرَدَيْنِ بِزِيَادَةٍ غَيْرِ صَالِحَةٍ لِلْاِسْقَاطِ وَ تَجْرِيْدِ الْاِسْمِ مِنْهَا كَاثْنَيْنِ وَ كِلَا وَ كِلْتَا فَلَيْسَ بِمُثَنًّى بَلْ مُلْحَقٌ بِهٖ فِي الْاِعْرَابِ". (همع الهوامع)

مثنى هغه اسم دئ: چي پر دوو دلالت کوي په دې سبب چي "الف" ماقبل مفتوح یا "یَاء" ماقبل مفتوح او نون مکسوره (١) یې په آخر کي راغلی وي. لکه: "رَجُلَانِ، رَجُلَيْنِ".

**د مجموع تعریف:**

جمع هغه اسم دئ چي د دوو څخه پر زیات باندي دلالت کوي په دې سبب چي په واحد کي یې تغیر یا زیاتوب راغلی وي لکه: "رِجَالٌ، مُسْلِمُوْنَ".

**د تثنیې اقسام:**

تثنیه پر درې قسمه ده:

١. تثنیه حقیقي.
٢. تثنیه مجازي.
٣. تثنیه تغلیبي.

**د تثنیه حقیقي تعریف:**

تثنیه حقیقي هغه تثنیه ده چي دا په حقیقت کي لفظًا، معنًا او مفردًا تثنیه وي لکه: "مُسْلِمَانِ".

**د تثنیې حقیقي شرطونه:**

د تثنیې حقیقي دپاره څلور شرطونه دي:

١. اول شرط یې دا دئ: چي لفظ به یې د تثنیې وي، احترازي مثال لکه: "كِلَا وَكِلْتَا".
٢. دوهم شرط یې دا دئ: چي معنٰی به یې د تثنیې وي احترازي مثال لکه: "صِنْوَانٌ".

---

(١) نون د تثنیې د څو وجو په وجه مکسوره دئ:

١. چي دی د الف او یاء ماقبل مفتوح څخه وروسته راځي نو ځکه پر ده باندي کسره نه ده ثقیله او نون د جمع د واو ماقبل مضموم او یاء ماقبل مکسور څخه وروسته راځي نو پر ده باندي کسره ثقیله ده نو ځکه یې فتحه ور کړه او که چیري یې عکس کړی وای نو بیا ثقل لازمېدئ "لِتَوَالِي الْاَجْنَاسِ اَوْ لِلْخُرُوْجِ مِنَ الضَّمِّ اِلَى الْكَسْرِ" (اسرار العربیة).
٢. او تثنیه متوسطه ده په مینځ د مفرد او جمع کي او کسره متوسطه ده په مینځ د فتحې او ضمې کي نو متوسط یې متوسط ته ور کړئ.
٣. عند البعض نون د تثنیې د تنوین عوض دئ او تنوین په اصل کي نون ساکن دئ او قاعده ده "اَلسَّاكِنُ اِذَا حُرِّكَ حُرِّكَ بِالْكَسْرِ".
۴. او که چیري یې فتحه ور کړې وای، نو بیا توالي د اربع فتحاتو لازمېده.
۵. نون د تثنیې به ځکه مکسوره وي چي فرق راسي په مینځ د تثنیې او جمع کي. (همع الهوامع)

۳. دريم شرط يې دا دئ: چې د خپل لفظ څخه به مفرد لري احترازي مثال لکه: "اِثْنَانِ اِثْنَتَانِ".

۴. څلورم شرط يې دا دئ: چې مرکب مِنَ الْمِثْلَيْن به وي احترازي مثال لکه: "اَبَوَيْنِ، شَمْسَيْنِ" اتفاقي مثال: "مُسْلِمَانِ، مُسْلِمَيْنِ".

## دوهمه خبره:

د تثنيې مجازي تعريف:
تثنيه مجازي هغه تثنيه ده چې حقيقتا تثنيه نه وي: بلکه د تثنيې سره د يو مشابهت په وجه مجازًا تثنيه ورته ويل کيږي لکه: "كِلَا، كِلْتَا، اِثْنَانِ وَاِثْنَتَانِ".
او د دې څلور شکلونه جوړيږي چې د تثنيې حقيقي د شرطو په ضمن کې تېر سو.
د تثنيې تغليبي تعريف:
تثنيه تغليبي هغه تثنيه ده چې د حقيقت په لحاظ سره پر يوه فرد صادقيږي لېکن و دغه فرد ته يې غلبه ور کړې وي پر بل فرد باندي لکه: "اَبَوَيْنِ، شَمْسَيْنِ، قَمَرَيْنِ، عُمَرَيْنِ".
د جمعې تقسيمات:
په جمع کې درې تقسيمونه کيږي:
"اَلتَّقْسِيْمُ الْاَوَّل":
د اول تقسيم په اعتبار سره جمع پر درې قسمه ده:

۱. جمع حقيقي.
۲. جمع حکمي.
۳. اسم جمع.

د جمع حقيقي تعريف (۱):
جمع حقيقي هغه جمع ده چې لفظًا، معنًا او مفردًا جمع وي لکه: "رِجَالٌ، مُسْلِمُوْنَ".

---

(۱) بعضو حضراتو د جمع تعريف په دې ډول کړی دئ: "اِسْمٌ مُعْرَبٌ نَابَ عَنْ ثَلَاثَةٍ اَوْ اَكْثَرَ بِزِيَادَةٍ فِي آخِرِهِ كَكَاتِبِيْنَ اَوْ تَغْيِيْرٍ فِي بِنَائِهِ مِثْلُ "رِجَالٍ". (خضري جلد ۲ صفحه ۱۰۰)

د جمع حقيقي شرائط:

د جمع حقيقي دپاره درې شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي د خپل لفظ څخه به مفرد لري احترازي مثال لکه "أُولُوْ".

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي لفظ به يې د جمع وي، احترازي مثال لکه: "قَوْمٌ، رَهْطٌ".

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي معنٰی به يې د جمع وي احترازي مثال لکه: "عِشْرُوْنَ".

اتفاقي مثال لکه: "رِجَالٌ، مُسْلِمُوْنَ".

## دريمه خبره:

د جمع حکمي تعريف:

جمع حکمي هغه جمع ده چي د حقيقت په لحاظ سره خو جمع نه وي لېکن د جمع سره د مشابهت په وجه حکمًا جمع ورته ويل کيږي لکه: "أُولُوْ، عِشْرُوْنَ".

او د جمع حکمي درې شکلونه جوړيږي، چي د جمع حقيقي په ضمن کي يې تفصيل تېر سو.

د تثنيې او جمعي دپاره چند مشترک شرطونه:

د تثنيې او جمعي د ثبوت دپاره اته (۸) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي افراد به وي (مفرد والی) نو ځکه د تثنيې تثنيه او د جمع جمع نه سي جوړېدای.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي معرب والی به وي، ځکه د مبني تثنيه او جمع نه سي جوړېدای.

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي مرکب به نه وي، ځکه د مرکب لکه: "زَيْدٌ عَالِمٌ" تثنيه او جمع نه سي راتلای.

۴. څلورم شرط يې دا دئ: چي تنکير (۱) به وي، ځکه د علم تثنيه او جمع نه سي جوړېدای. "اِلَّا بَعْدَ التَّنْكِيْرِ".

---

(۱) ځکه د علم جمع نه سي جوړېدای مګر بعد التنکير د غه وجه ده چي کم اسماء د اعلامو څخه کنايه واقع کيږي لکه: "فُلَانٌ، فُلَانَةٌ"، د هغه تثنيه او جمع نه سي جوړېدای چي کله دوی نکره واقع سي د دوی د معرفه توب دپاره پر دوی الف لام داخليږي چي د دوی علميت مسلوب نه سي مګر "جَمَادَيْنِ" چي د دوو مياشتو نومونه دي، او "عَمَايَتَيْنِ" چي د دوو غرو نومونه دي او

۵. پنځم شرط یې دا دئ: چې اتفاق د لفظ (یعني لفظ به یې سره یو وي) لکه: "مُسْلِمٌ، مُسْلِمَانِ، مُسْلِمُوْنَ". لهذا چې د کمو اسماؤ ثاني د اوله سره نه وي لکه: "شَمْسٌ، قَمَرٌ"، د هغه تثنیه او جمع نه سي راتلای. "اِلَّا تَغْلِیْبًا".

۶. شپږم شرط یې دا دئ: چې د دغه تثنیې (۱) او جمع په وجه به د یو بلي تثنیه او جمع څخه استغناء نه راځي نو لهذا د لفظ د "بَعْضٌ، اَوْ سَوَاءٌ"، تثنیه او جمع نه سي راتلای. ځکه د لفظ د "بَعْضٌ" د تثنیه څخه استغناء په لفظ د "جُزْءٌ" د تثنیه سره راځي او د لفظ د "سَوَاءٌ" د تثنیې څخه استغناء په لفظ د "سِیَّانِ" سره راځي.

۷. اووم شرط یې دا دئ: چې د تثنیې او جمعي پر جوړولو باندي به یو فائده مرتبه وي نو لهذا د لفظ د "کُلٌ" تثنیه او جمع جوړول جائز نه دي.

۸. اتم شرط یې دا دئ: چې هغه اسم به مشابهت د فعل سره نه لري نو ځکه کم اسم تفضیل چې مستعمل په "مِنْ" سره وي د هغه تثنیه او جمع راوړل جائز نه دي، ځکه اسم تفضیل د فعل سره په معنی حدثي کي مشابهت لري.

---

"عَرَفَاتٌ" و غیره مستثنی دي ځکه د دوی علمیت په تثنیه او جمع جوړولو سره نه سي مسلوب کېدای نو داغه وجه ده چې نه پر دوی باندي الف لام داخلیږي او نه دوی مضاف واقع کیږي.

(۱) دغه وجه ده چې د اسماء عدد و تثنیه او جمع نه سي راوړل کېدای ماسوا د لفظ د "مِاَةٌ"، او د "اَلْفٌ" څخه ځکه د "ثَلَاثَةٌ" د تثنیې کار "سِتَّةٌ" اجراء کوي داغه رنګه عند البعض د لفظ د "اَجْمَعُ" او د "جُمَعُ" تثنیه جائزه نه ده؛ ځکه د دوی د تثنیې وظیفه "کِلَا وکِلْتَا" اجراء کوي. (همع الهوامع)

او د تثنیې او جمع اصل حقیقت عطف دئ د اختصار دپاره تثنیه او جمع جوړیږي مثلاً "قَامَ الزَّیْدَانِ" په اصل کي "قَامَ زَیْدٌ وَ زَیْدٌ" وو. او د دوی د عطفیت پر اصلیت باندي دلیل دا دئ چې په اضطراري حالت کي د مفرد تکرار را وړل کیږي لکه: "لَیْثٌ وَ لَیْثٌ".

## څلورمه خبره:

د اسم جمع تعريف (۱):

اسم جمع هغه اسم دئ چي معنٰی يې د جمع وي لېکن لفظًا درې شکلونه لري:

د اسم جمع شکلونه:

۱. اول شکل يې دا دئ: چي معنٰی يې د جمع وي، لېکن واحد نه لري لکه: "قَوْمٌ، رَهْطٌ" (قبيله) "جَيْشٌ، قَبِيْلَةٌ".

۲. دوهم شکل يې دا دئ: چي معنًا جمع وي او واحد هم لري لېکن وزن يې د جمع نه وي لکه: "رَكْبٌ" جمع د "رَاكِبٌ" ده او "صَحْبٌ" جمع د "صَاحِبٌ" ده.

۳. دريم شکل يې دا دئ: چي واحد هم لري او وزن يې هم د جمع وي لېکن احکام د مفرد پر جاري کيږي لکه: د "رَكُوْبَةٌ" څخه "رَكَابِيٌّ" په ياء نسبتي سره ويل.

"اَلتَّقْسِيْمُ الثَّانِيْ":

جمع په اعتبار د لفظ سره پر دوه قسمه ده:

۱. جمع تکسير.

۲. جمع تصحيح. (سالم)

د جمع تکسير تعريف:

جمع تکسير هغه جمع ده چي بنا د واحد په دې کي سالمه نه وي پاته سوی. لکه: "رِجَالٌ، مَسَاجِدُ".

## فائده:

په جمع مکسره کي به تغير د واحد څخه راغلی وي او تغير پر دوه قسمه دئ:

---

(۱) يو اسم جمع ده او بل اسم جنس دئ: اسم جنس هغه دئ چي د ده اطلاق پر قليل او کثير باندي على السويه (برابر) کيږي بيا اسم جنس پر درې قسمه دئ: (۱) افرادي (۲) جمعي، (۳) احادي. اسم جنس افرادي هغه اسم جنس دئ چي "مُتَشَابِهُ الْاَجْزَاءِ" وي او د کل او جزء نوم يې سره يو وي يعني پر قليل او کثير باندي برابر صادقيږي لکه: "مَاءٌ اَوْ لَبَنٌ".
او اسم جنس جمعي هغه اسم جنس دئ: چي د وضع په اعتبار سره د ده اطلاق پر قليل او کثير باندي کيږي لېکن د استعمال په اعتبار سره د ده اطلاق تر دوه څخه پر زيات باندي کيږي. او د ده او د واحد په سينځ کي فرق ور کونکی شی "تَا" يا "يَا" وي لکه: "تَمْرٌ، وَتَمْرَةٌ. رُوْمٌ. رُوْمِيٌّ". اسم جنس احادي چي على سبيل البدليت پر هر فرد باندي صادقيږي لکه: "رَجُلٌ". (همع الهوامع)

۱. تغير حکمي.
۲. تغير حقيقي.
د تغير حکمي تعريف:
تغير حکمي هغه تغير دئ چي په لفظو کي بالکل تغير نه وي بلکه تغير فرض سوی وي لکه: "فُلْكٌ" (۱) واحد يې هم "فُلْكٌ" دئ او جمع يې هم "فُلْكٌ" ده لفظًا څه تغير نسته. تقديرًا تغير دا دئ: چي "فُلْكٌ" که چيري پر وزن د "قُفْلٌ" فرض سي بيا دَی واحد دئ او که چيري پر وزن د "أُسْدٌ" فرض سي بيا دی جمع ده.

**پنځمه خبره:**

د تغير حکمي د پېژندلو طريقه:
۱. تغير حکمي يا خو د بين السطور و الحاشية څخه معلومېږي.
۲. يا د ضمير څخه معلومېږي که د مفرد مؤنث ضمير يا د جمع ضمير ورته راجع وو بيا جمع ده او که د مفرد مذکر ضمير ورته راجع وو، نو بيا مفرد دئ.
۳. يا د صفت څخه معلومېږي.

تغير حقيقي:
تغير حقيقي هغه تغير دئ چي دی ظاهرًا په لفظو کي موجود وي او تغير حقيقي په شپږو شکلو باندي راځي:
۱. اول: د مفرد څخه يې تغير په زياتوب سره راغلی وي، مع بقاء الشکل، لکه: د "صِنْوٌ" څخه "صِنْوَانٌ".
۲. دوهم: د مفرد څخه يې تغير په نقصان د حروفو راغلی وي مع بقاء الشکل لکه: د "تُخَمَةٌ" څخه "تُخُمٌ".

(۱) د "فُلْكٌ" مفرد کېدل او جمع کېدل دا د سبويه مذهب دئ او عند صاحب تسهيل مختاره خبره دا ده: چي "فُلْكٌ" لفظ مشترک دئ، په مينځ د مفرد او جمع کي: "فَلَا يُقَدَّرُ فِيْهِ التَّغْيِيْرُ". (حاشية خضري جلد ۲ صفحه ۱۰۰)

۳. دریم: د مفرد څخه یې تغیر په تبدیلي د شکل راغلی وي، نه په تغیر د زیاتوب او نقصان سره د حروفو لکه: د "اَسَدٌ" څخه "اُسْدٌ".

۴. څلورم: د مفرد څخه یې تغیر په زیاتوب د حروفو راغلی وي او شکل یې هم بدل سوی وي، لکه: د رَجُلٌ" څخه "رِجَالٌ".

۵. پنځم: د مفرد څخه یې تغیر په نقصان د حروفو راغلی وي او شکل یې هم بدل سوی وي، لکه: د "رَسُوْلٌ" څخه "رُسُلٌ".

٦. شپږم: د مفرد څخه یې تغیر په زیاتوب او نقصان سره راغلی وي، او شکل یې هم بدل سوی وي. لکه: د "غُلَامٌ" څخه "غِلْمَانٌ".

## شپږمه خبره:

## فائده:

جمع تکسیره کچیري ثلاثي وه بیا په سماع پوري تعلق لري او مستعمل مشهوره اوزان یې په حاشیه کي موجود دئ([1]).

او که چیري رباعي یا خماسي وه بیا پر وزن د "فَعَالِلُ" راځي په حذف د حرف خامس سره لکه: د "جَعْفَرٌ" څخه "جَعَافِرُ" او د "جَحْمَرِشٌ" څخه "جَحَامِرُ".

د جمع تکسیري اقسام:

جمع تکسیره پر دوه قسمه ده:

---

([1]) د جمع تکسیري ثلاثي مشهوره اوزان دا دي: (۱) "فِعَالٌ" لکه: "كِلَابٌ" "كَلْبٌ" (۲) "فُعُوْلٌ" لکه: "حُقُوْقٌ" "حَقٌّ" (۳) "فُعُلٌ" لکه: "كُتُبٌ" "كِتَابٌ" (۴) "فُعْلَانٌ" لکه: "بُلْدَانٌ" "بَلَدٌ" (۵) "اَفْعِلَاءُ" لکه: "اَنْبِيَاءُ" "نَبِيٌّ" (٦) "فَعْلٰى" لکه: "مَرْضٰى" "مَرِيْضٌ" (۷) "فُعَلَاءُ" لکه: "عُلَمَاءُ" "عَالِمٌ". (۸) "فَعَلَةٌ" لکه: "كَفَرَةٌ" "كَافِرٌ" (۹) "فِعَلٌ" لکه: "فِرَقٌ" "فِرْقَةٌ" (۱۰) "فِعْلَانٌ" لکه: "غِلْمَانٌ" "غُلَامٌ" (۱۱) "اَفْعَالٌ" لکه: "اَقْوَالٌ" "قَوْلٌ" (۱۲) "اَفْعُلٌ" لکه: "اَكْلُبٌ" "كَلْبٌ"، (۱۳) "فِعْلَةٌ" لکه: "غِلْمَةٌ" "غُلَامٌ". (۱۴) "اَفْعِلَةٌ" لکه: "اَعْوِنَةٌ" "عَوَانٌ" (۱۵) "فَعِيْلٌ" لکه: "عَبِيْدٌ" "عَبْدٌ". (۱٦) "مَفَاعِلُ" لکه: "مَسَاجِدُ" "مَسْجِدٌ". (۱۷) "فُعَّالٌ" لکه: "خُدَّامٌ" "خَادِمٌ". (۱۸) "فَعَالِلُ" لکه: "عَنَاصِرُ" "عُنْصَرٌ" (۱۹) "فَعَالِلَةٌ" لکه: "تَلَامِذَةٌ" "تِلْمِيْذٌ". (۲۰) "فَعَالِيْلُ" لکه: "صَنَادِيْقُ" "صُنْدُوْقٌ"، (۲۱) "مَفَاعِيْلُ" لکه: "مَكَاتِيْبُ" "مَكْتَبٌ".(نصر الخبیر)

۱. جمع منتهی الجموع.
۲. جمع غیر منتهی الجموع.

د جمع منتهی الجموع تعریف:

جمع منتهی الجموع هغه جمع ده چي په خپل جمعیت کي انتهاء ته رسېدلې وي دوباره په جمع تکسیره سره نسي جمع کېدای لکه: "مَسَاجِدُ".

او د دې مشهوره اوزان پنځه دي: (۱) "مَفَاعِلُ". (۲) "مَفَاعِيْلُ" (۳) "اَفَاعِلُ". (۴) "اَفَاعِيْلُ". (۵) "فَوَاعِلُ".

د جمع غیر منتهی الجموع تعریف:

جمع غیر منتهی الجموع هغه جمع ده چي په خپل جمعیت کي انتهاء ته نه وي رسېدلې بل وار په جمع تکسیره سره جمع کېدای سي، لکه: د "قَوْلٌ" جمع "اَقْوَالٌ" ده او د "اَقْوَالٌ" جمع "اَقَاوِيْلُ" راځي.

د جمع تصحیح (۱) (سالمه) تعریف (۲):

---

(۱) د جمع مکسري او سالمي په مینځ کي یو لوی فرق دا دئ: چي جمع مکسره چي کله فاعل واقع سي د دې دپاره د فعل مذکر او مؤنث دواړه راوړل جائز دي. لکه: "قَالَ الرِّجَالُ. قَالَتِ الرِّجَالُ" او جمع سالمه چي کله فاعل واقع سي، فعل صرف واحد مذکر راوړل جائز دي، لکه: "قَالَ الْمُسْلِمُوْنَ". (حاشیة خضري)

(۲) په الف و تاء سره چي کم جمع راوړل کیږي هغه پر پنځه نوعي ده:

۱. چي په کم چا کي تا د تانیث وي مطلقا خواه که د مذکر علم وي لکه: "طَلْحَةُ" او که د مؤنث علم وي لکه: "فَاطِمَةُ" یا اسم جنس وي لکه: "تَمْرَةٌ" یا صفت وي لکه: "نَسَّابَةٌ" خواه که "تَا" په حالت د وقف کي په "هَا" سره بدله سي لکه: په "طَلْحَةُ" کي او که نسي بدله لکه: په "بِنْتٌ" او "اُخْتٌ" کي د دې شیانو جمع په الف و تاء سره راځي لېکن د دې څخه "شَاةٌ. شَفَةٌ" او "اَمَةٌ" مستثنی دي.
۲. د مؤنث د علم جمع خواه که "تَا" وي او که نه وي خواه که ذو العقول وي او که غیر ذو العقول لکه: "فَاطِمَاتٌ. زَيْنَبَاتٌ".
۳. د مذکر لا یعقل د صفت جمع لکه: "اَيَّامٍ مَعْدُوْدَاتٍ".
۴. د مذکر لا یعقل د تصغیر جمع لکه: "فُلَيْسَاتٌ" په خلاف د مؤنث د تصغیر.
۵. د اسم جنس د مؤنث جمع خواه که اسمي وي لکه: "سَحَرَةٌ" او که صفتي وي لکه: "حُبْلٰى". (همع الهوامع جلد ۱ صفحه ۷۹)

جمع تصحيح هغه جمع ده چي د واحد بنا په دې کي سالمه پاته وي صرف په آخر کي يې زياتوب راغلی وي (۱) لکه: "مُسْلِمُوْنَ، مُسْلِمَاتٌ".

**د جمع تصحيح اقسام:**

جمع تصحيح پر دوه قسمه ده:

۱. جمع مذکر سالمه.

۲. جمع مؤنث سالمه (۲).

**د جمع مذکر سالمي تعريف:**

---

(۱) "اَلْاَسْمَاءُ الَّتِيْ تُجْمعُ هٰذَا الْجَمْعَ اَیْ (اَلْمُؤَنَّثُ السَّالِمُ)":

وَيَطَّرِدُ هٰذَا الْجَمْعُ عَشَرَةَ اَشْيَاءٍ:

۱. "عَلَمُ الْمُؤَنَّثِ كَمَرْيَمَ وَ فَاطِمَةَ".

۲. "مَا خُتِمَ بِتَاءِ التَّانِيْثِ كَشَجَرَةٍ وَ ثَمَرَةٍ وَ طَلْحَةَ وَ حَمْزَةَ. وَيُسْتَثْنٰى مِنْ ذٰلِكَ اِمْرَاَةٌ. شَاةٌ. اَمَةٌ. اُمَّةٌ. شَفَةٌ. مِلَّةٌ".

۳. "صِفَةُ الْمُؤَنَّثِ مَقْرُوْنَةٌ بِالتَّاءِ كَمُرْضِعَةٍ وَ مُرْضِعَاتٍ اَوْ دَالَّةٍ عَلَى التَّفْضِيْلِ كَفُضْلٰى "مُؤَنَّثُ اَفْضَلَ" وَ فُضْلَيَاتٍ. فَلِذٰلِكَ حَامِلٌ وَ حَائِضٌ لَمْ يُجْمَعْ هٰذَا".

۴. "صِفَةُ الْمُذَكَّرِ غَيْرِ الْعَاقِلِ كَجَبَلٍ شَاهِقٍ وَ جِبَالٍ شَاهِقَاتٍ".

۵. "اَلْمَصْدَرُ الْمُجَاوِزُ ثَلَاثَةَ اَحْرُفٍ. (غَيْرُ ثُلَاثِيٍّ) غَيْرُ الْمُؤَكِّدِ لِفِعْلِهٖ كَاِكْرَامَاتٍ. وَاِنْعَامَاتٍ و تَعْرِيْفَاتٍ".

٦. "مُصَغَّرُ مُذَكَّرٍ مَا لَا يَعْقِلُ كَدُرَيْهِمٍ وَ دُرَيْهِمَاتٍ وَ كُتَيِّبٍ وَ كُتَيِّبَاتٍ".

۷. "مَا خُتِمَ بِاَلِفِ التَّانِيْثِ الْمَمْدُوْدَةِ كَصَحْرَاءٍ وَ صَحْرَاوَاتٍ وَ عَذْرَاءٍ وَ عَذْرَاوَاتٍ".

۸. "مَا خُتِمَ بِاَلِفِ التَّانِيْثِ الْمَقْصُوْرَةِ كَذِكْرٰى وَ ذِكْرِيَاتٍ. وَفُضْلٰى وَ فُضْلَيَاتٍ".

۹. "اَلْاِسْمُ لِغَيْرِ الْعَاقِلِ اَلْمُصَدَّرُ بِاِبْنٍ اَوْ ذِيْ: كَابْنِ آوٰى وَ بَنَاتِ آوٰى. وَ ذِی قَعْدَةٍ وَ ذَوَاتِ الْقَعْدَةِ".

۱۰. "كُلُّ اِسْمٍ اَعْجَمِيٍّ لَمْ يُعْهَدْ لَهٗ جَمْعٌ آخَرَ كَالتِّلْغِرَافِ وَ التِّلِفُوْنِ".

او د دې څخه ما سوای ټوله سماعي دي لکه: "سَمَاوَات. اَرَضَات. اُمَّهَات. اُمَّات. سِجِلَّات. اَهِلَّات. حَمَّامَات" او بعض جمع منتهی الجموع لکه: "جِمَالَات. رِجَالَات. كِلَابَات"، دا ټولي جمع سماعي دي. (جامع الدروس العربية).

(۲) جمع مؤنث سالمه کله کله د جمع مذکر سالمي رنګه استعماليږي لکه: "سَنَةٌ" د دې جمع "سِنُوْنَ. سِنِيْنَ. سَنَوَاتٌ" درې قسمه راځي. د بعضو الفاظو جمع پر مختلفو وزنو باندي راځي لکه: "طَلَبَةٌ. طُلَّابٌ. طُلَبَاءُ. طُلَّبٌ" دا ټولي د "طَالِبٌ" جمع دي، او کله کله د معنی د تبديلی په وجه د جمع وزن هم بدليږي لکه: "عَبْدٌ" په معنی د "غُلَامٌ" سره جمع يې "عَبِيْدٌ" راځي، او "عَبْدٌ" په معنی د (بنده) سره. جمع يې "عِبَادٌ" راځي. د "اِبْنٌ" جمع "بَنُوْنَ" او "اَبْنَاءٌ" راځي د "بِنْتٌ" جمع "بَنَاتٌ" د "اَخٌ" جمع "اِخْوَانٌ. اِخْوَةٌ". او د "اُخْتٌ" جمع "اَخَوَاتٌ" او د "اِمْرَاَةٌ" جمع "نِسَاءٌ" يا "نِسْوَةٌ" او د "اُمٌّ" جمع "اُمَّهَاتٌ" راځي. (المعلم العربي و نصر الخبير)

د جمع مذکر سالمي تعریف:

جمع مذکر سالمه هغه جمع ده چي په آخر کي يې واو ماقبل مضموم يا ياء ماقبل مکسور او نون مفتوحه راغلی وي، لکه: "مُسْلِمُوْنَ، مُسْلِمِيْنَ".

**اوومه خبره:**

په جمع مذکر سالمه سره صرف د دوو شیانو جمع راځي: (۱) د عَلم (۲) او د صفت.

"اَلْعَلَمُ لِمُذَكَّرٍ عَاقِلٍ خَالِيًا عَنِ التَّاءِ" د مذکر عاقل نوم چي خالي وي د تاء څخه لکه: "زَيْدٌ، اَحْمَدُ، سَعِيْدٌ".

"اَلصِّفَةُ لِمُذَكَّرٍ عَاقِلٍ خَالِيَةٌ عَنِ التَّاءِ وَصَالِحَةٌ لِدُخُوْلِهَا اَوْ لِلدَّلَالَةِ عَلَى التَّفْضِيْلِ". صفت د مذکر عاقل چي خالي وي د "تَا" څخه او د دخول د "تَا" صلاحیت لري یا دلالت کوي پر تفضیل باندي لکه: "عَالِمٌ، كَاتِبٌ، اَفْضَلُ".

د جمع مؤنث سالمي تعریف:

جمع مؤنث سالم هغه جمع ده: چي په آخر کي يې "الف" و "تَا" راغلي وي، لکه: "مُسْلِمَاتٌ".

د جمع دريم تقسيم:

جمع په اعتبار د معنٰی سره پر دوه قسمه ده:

۱. جمع قلته (۱).
۲. جمع کثرة.

د جمع قلتي تعريف:

جمع قلته هغه جمع ده: چي د لسو څخه پر کم باندي دلالت کوي او د دې دپاره شپږ وزنونه دي:

۱. "اَفْعَالٌ" لکه: "اَقْوَالٌ"، د "قَوْلٌ" جمع ده.

---

(۱) جمع قلته او کثرته د دواړو مبداء يوه ده لېکن جمع قلته صرف د لسو څخه پر کم دلالت کوي او کثرته پر زيات باندي او کله يو د بل پر ځای باندي مجازًا استعمالېږي کله کثرته د قلتي پر ځای مجازًا استعمال سي لکه: "ثَلَاثَةَ قُرُوْءٍ" "قُرُوْءٌ" پر وزن د "فُعُوْلٌ" د جمع کثرتي وزن دئ لېکن په دې ځای کي يې معنی د جمع قلتي ده، ځکه دلته مراد صرف دري دي، او کله قلته د کثرتي پر ځای استعمال سي، لکه: "لَقَدْ كَانَ فِيْ يُوْسُفَ وَاِخْوَتِهِ" "اِخْوَةٌ" د جمع قلتي وزن دئ لېکن معنی يې د کثرتي ده.

۲. "اَفْعُلٌ" لکه: "اَکْلُبٌ" د "کَلْبٌ" جمع ده.

۳. "اَفْعِلَةٌ" لکه: "اَعْوِنَةٌ" د "عَوَانٌ" جمع ده.

۴. "فِعْلَةٌ" لکه: "غِلْمَةٌ" د "غُلَامٌ" جمع ده.

۵. جمع مذکر سالمه چي بغير الف لام وي لکه: "مُسْلِمُوْنَ".

٦. جمع مؤنث سالمه چي بغير الف لام وي لکه: "مُسْلِمَاتٌ".

**د جمع کثرتي تعريف:**

جمع کثرته هغه جمع ده چي پر لسو يا تر لسو څخه پر زيات باندي دلالت کوي د دې شپږو وزنو څخه علاوه باقي اوزان د جمع کثرتي دي. د ټولو جموعو تعين بايد د لاندي نقشې څخه وسي.

## جملې:

| جمع | مفرد | تکسير، صحيح | مذکر، مؤنث | قلت، کثرت | باب |
|---|---|---|---|---|---|
| اَخْيَارٌ | خَيْرٌ | تکسير | مذکر | قلت | ثلاثي |
| مُتَّقُوْنَ | مُتَّقِيْ | صحيح | مذکر | قلت | ثلاثي |
| قَانِتَاتٌ | قَانِتَةٌ | صحيح | مؤنث | قلت | ثلاثي |
| شُمُوْسٌ | شَمْسٌ | تکسير | مؤنث | کثرت | ثلاثي |
| عَقَارِبُ | عَقْرَبٌ | تکسير | مذکر | کثرت | رباعي |
| دَرَاهِمُ | دِرْهَمٌ | تکسير | مذکر | کثرت | رباعي |
| رُکَبٌ | رُکْبَةٌ | تکسير | مؤنث | کثرت | ثلاثي |
| اَبْيَاتٌ | بَيْتٌ | تکسير | مذکر | قلت | ثلاثي |
| اَغْرِبَةٌ | غُرَابٌ | تکسير | مؤنث | قلت | ثلاثي |
| عُلَمَاءُ | عَالِمٌ | تکسير | مذکر | کثرت | ثلاثي |
| کُنُزٌ | کَنْزٌ | تکسير | مذکر | کثرت | ثلاثي |
| مَنَادِيْلُ | مِنْدِيْلٌ | تکسير | مذکر | کثرت | رباعي |
| جَفَنَاتٌ | جَفْنَةٌ | صحيح | مؤنث | کثرت | ثلاثي |
| اَلصَّالِحَاتُ | صَالِحَةٌ | صحيح | مؤنث | کثرت | ثلاثي |
| مَنَازِلُ | مَنْزِلٌ | تکسير | مذکر | کثرت | ثلاثي |
| صَيَاقِلُ | صَيْقَلٌ | تکسير | مذکر | کثرت | رباعي |
| مُصْطَفَوْنَ | مُصْطَفٰى | صحيح | مذکر | قلت | ثلاثي |

## التمرين للجموع :

"مَشَارِقُ، صَلَوَاتٌ، مَصَابِيْحُ، سَفَارِجُ، كَبُوْدٌ، آذَانٌ، رُكُوْبَاتٌ، قَنَادِيْلُ، رِقَابٌ، اَصَابِعُ، كَلَالِيْبُ، مَسَاجِدُ، كُتُبٌ".

## التمرين للجمل :

"وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيِّيْنَ بِغَيْرِ الْحَقِّ،، فِي صُحُفٍ مُكَرَّمَةٍ مَرْفُوعَةٍ مُطَهَّرَةٍ،، بِأَيْدِي سَفَرَةٍ كِرَامٍ بَرَرَةٍ،، وَجِفَانٍ كَالْجَوَابِ وَقُدُوْرٍ رَاسِيَاتٍ،، رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ،، وَأَنْبَتْنَا بِهِ حَدَائِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ،، أَأَنْتُمْ أَنْشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُوْنَ،، هُوَ الَّذِي يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ".

*فصل بدانكه اعراب اسم سه است رفع، نصب، جر واسم متمكن باعتبار وجوه الخ :.*

## الدرس السابع عشر :

د نن د سبقه خلاصه اته (۸) خبري دي:

### اوله خبره:

بحث د منصرف و غير منصرف:

د اسم معرب اقسام:

معرب پر دوه قسمه دئ:

۱. منصرف.
۲. غير منصرف.

د منصرف تعريف:

منصرف (۱) هغه اسم دئ چي دوه سببه يا يو سبب چي قائم مقام د دوو سببو وي، د اسبابو د منع صرفي څخه په ده کي نه وي موجود. لکه: "اَلرَّجُلُ".

د منصرف حکم:

(۱) منصرف ته اسم متمكن هم ويل کيږي ځکه متمکن په معنی د قوي سره راځي، او دی هم قوي دئ ځکه دی دري سره حرکته مع التوينه پر ځان برداشه وای سي.

د منصرف حکم دا دئ: چي پر ده باندي حرکات ثلاثه مع التنوين راتلای سي، لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ، وَرَاَيْتُ زَيْدًا، مَرَرْتُ بِزَيْدٍ".

د غير منصرف تعريف:

غير منصرف هغه اسم دئ چي په ده کي دوه سببه يا يو سبب چي قائم مقام د دوو سببو وي (۱) د اسبابو د منع صرفي څخه موجود وي، لکه: "عُمَرُ".

د غير منصرف حکم:

د غير منصرف حکم دا دئ: چي پر ده باندي کسره (۲) او تنوين نه سي راتلای بلکه همېشه يې حالت جري (۱) تابع د حالت نصبي وي. لکه: "جَائَنِيْ عُمَرُ، وَرَاَيْتُ عُمَرَ. مَرَرْتُ بِعُمَرَ".

---

(۱) کم اسباب چي قائم مقام د دوو سببو جوړېږي هغه درې دي: (۱) "الف مقصوره". (۲) "الف ممدوده". (۳) "جمع منتهی الجموع".

(۲) چونکه غير منصرف د فعل سره مشابهت لري په وجود د فرعتين کي يعني "احتياج الی الفاعل او اشتقاق من المصدر" او پر فعل باندي کسره و تنوين نه سي راتلای نو پر غير منصرف باندي هم د فعل سره د مشابهت په وجه کسره او تنوين نه سي راتلای او د اسم چي د فعل سره مشابهت راځي هغه مشابهت پر درې قسمه دئ: (۱) يو اسم د فعل سره په معنی کي شريک وي لکه: "اسماء افعال" او د دغه قسم مشابهت نتيجه دا راوزي چي په دې صورت کي و اسم ته د فعل دوه اصليتونه ملاوېږي. (۱) اصليت في البناء (۲) اصليت في العمل نو ځکه اسماء افعال به مبني هم وي او عامل به هم وي. (۲) دوهم قسم مشابهت چي يو اسم د فعل سره په حرکاتو و سکناتو او په تعداد د حروفو کي مشابهت لري لکه: اسم فاعل چي د فعل مضارع سره مشابهت لري په دغه مذکوره شيانو کي او د دې دوهم قسم نتيجه دا راوزي چي و داسي اسم ته د فعل يو اصليت ملاوېږي هغه اصليت في العمل يعني هغه اسم به عامل جوړېږي نو ځکه ټوله اسم فاعل به عامل وي په شرائط مذکوره سره. (۳) دريم قسم مشابهت چي يو اسم د فعل سره نه په معنی کي مشابهت لري او نه په حرکاتو، او سکناتو او په تعداد د حروفو کي بلکه د فعل سره په ع صفت کي مشابهت لري هغه دا لکه: څنګه چي فعل فرع دئ د مصدر او د فاعل داغه رنګه د غير منصرف اسباب فرع دئ د نورو شيانو. نو د دې دريم قسم مشابهت نتيجه دا راوزي چي و دې اسم ته به د فعل يو خصوصيت ملاوېږي هغه دا چي پر ده باندي به کسره او تنوين نه داخلېږي. (تنوير)

**فائده:**

د اسم مشابهت به يا د حرف سره وي يا د فعل سره که چيري د حرف سره وو خواه که په وضع کي مشابهت وي او که په معنی کي او که په استعمال کي نو هغه اسم به مبني وي او و هغه ته د اسم غير متمکن نوم ور کول کېږي او که يې چيري د حرف سره مشابهت نه وو بيا هغه اسم معرب دئ بيا که چيري اسم معرب د فعل سره مشابه وو په وجود د فرعتين کي يعني فعل د اسم فرع وي من جهت اللفظ يعني فعل د مصدره څخه مشتق دئ او فرعيت من جهة المعنی احتياج الی الفاعل دئ، نو که چيري اسم معرب د فعل سره

## فائده:

"وَجَمِيعُ الْبَابِ بِاللَّامِ وَ بِالْاِضَافَةِ يَنْجَرُّ بِالْكَسْرِ". که چیري غیر منصرف معرف باللام سي لکه: "ذَهَبْتُ إِلَى الْمَسَاجِدَ". یا مضاف سي لکه: "مَرَرْتُ بِأَحْمَدِكُمْ" نو بیا به دی مجروره په کسره سره وي، او دی د منصرف په حکم کي وي.

## دوهمه خبره:

د غیر منصرف اسباب:

د غیر منصرف نه (۹) اسباب دي: (۱) عدل (۲) وصف (۳) تانیث (۴) معرفه (۵) عجمه (٦) جمع (۷) ترکیبُ (۸) وزن فعل (۹) الف و نون زائدتان. لکه: "عُمَرُ. اَحْمَرُ. طَلْحَةُ، زَيْنَبُ. اِبْرَاهِيمُ، مَسَاجِدُ، مَعْدِيكَرَبَ، اَحْمَدُ، عِمْرَانُ". دا سببونه تنها (یواځي) د غیر منصرف اسباب نه سي جوړېدای تر څو چي هریو د خپلو شرائطو سره موجود نه وي.

د غیر منصرف (۲) د نه (۹) اسبابو مختصره تشریح:

---

په وجود د فرعتین کي مشابه وو نو بیا به په عللو کي یو فرعیت من جهة اللفظ وي او بل فرعیت به من جهة المعنی وي یا به یو قائم مقام د دوه علتو وي نو داسي اسم به غیر منصرف وي. (شرح التصریح جلد ۲ صفحه ۳۱۵)

(۱) پر غیر منصرف باندي جر نه سي راتلای د مختلفو وجوه پر بنیاد باندي: (۱) د فعل سره د مشابهت په وجه لکه: څنګه چي پر فعل باندي تنوین ممتنع دئ داغه رنګه جر هم ممتنع دئ. (۲) جر ځکه ممتنع دئ چي بیا د غیر منصرف د هغه اسم منصرف سره التباس رانه سي چي کم وخت دی مضاف سوی وي و یاء د متکلم ته او بیا یاء د متکلم حذف سوې وي او پر کسره باندي اکتفاء سوی وي لکه: د "غُلَامِيْ" څخه "غُلَامِ" ویل. (۳) چي د بنا وهم ختم سي ځکه کسره بغیر د تنوین او الف لام او اضافته اعراب نه جوړېږي نو چي کله کسره نه سي راتلای نو د دې پر ځای یې جر د نصب تابع کړئ ځکه چي دواړه په فضله والي کي سره مشترک دي. (همع الهوامع جلد ۱ صفحه ۸٦)

(۲) د بصریین او کوفیینو په دې خبره کي اتفاق دئ چي غیر منصرف د ضرورت شعري په وجه منصرف ویل جائز دي، لېکن منصرف د ضرورت شعري په وجه غیر منصرف ویل جائز دي او که نه، عندالکوفیین او بعض اِمامانِ د بصریینو لکه: ابوالحسن اخفش، ابو علی فارسي، ابوالقاسم ابن البرهان، په نزد باندي جائز دي، او عندالبصریین نا جائز دي. داغه رنګه کم اسم تفضیل چي مستعمل په "مِنْ" سره وي د ضرورت شعري په وبحث کي د ده منصرف ویل عند الکوفین نا جائز دي او عندالبصریین جائز دي. (الانصاف جلد ۲ صفحه ۲۰)

## عدل:

د عدل تعریف:

"تَحْوِيْلُ الإِسْمِ مِنْ حَالَةٍ إِلَى حَالَةٍ أُخْرٰى مَعَ بَقَاءِ الْمَادَّةِ الْأَصْلِيَّةِ وَ الْمَعْنٰى الْأَصْلِيِّ بِلَا قَانُوْنٍ صَرْفِيٍّ".

عدل هغه اسم دئ چي د خپل اصلي صورت او شکل څخه وتلی وي، او په بل شکل او صورت کي بدل سوی وي، لېکن ماده اصلي او معنیٰ اصلي یې باقي پاته وي، او دغه تبدیلي بغیر د یو قانون صرفي څخه راغلې وي، لکه: د "عَامِرٌ" څخه "عُمَرُ" د "زَافِرٌ" څخه "زُفَرُ". د "ثَلَاثَةٌ، ثَلَاثَةٌ" څخه "ثُلَاثَ وَ مَثْلَثَ" ویل.

## دریمه خبره:

د عدل اقسام:

عدل پر دوه قسمه دئ:

١. عدل تحقیقي.

٢. عدل تقدیري.

د عدل تحقیقي تعریف:

"مَايُوْجَدُ فِيْهِ دَلِيْلٌ عَلَى وُجُوْدِ الْأَصْلِ سِوَا مَنْعِ صَرْفٍ". چي د ده پر اصل یعني د اول شکل و صورت پر وجود باندي د غیر انصراف څخه علاوه یو بل دلیل هم موجود وي لکه: "ثُلَاثَ" (١) و "مَثْلَثَ"، او په دوی کي عدل تحقیقي دئ، ځکه د دوی پر اصل باندي د غیر انصراف څخه علاوه یعني چي دی غیر منصرف استعمالیږي یو بل دلیل په خارج کي هم موجود دئ، هغه دا چي د "ثُلَاثَ" او "مَثْلَثَ" د دواړو اصل "ثَلَاثَةٌ، ثَلَاثَةٌ" وو، دلیل یې دا دئ: چي د "ثُلَاثَ" معنیٰ ده درې درې په تکرار سره او د "مَثْلَثَ" معنیٰ هم درې درې ده. کله چي د دوی په معنیٰ کي تکرار سته نو لفظ به یې هم لازمي

---

(١) لکه: په قرآن کي په بابت د نکاح کي راځي: "فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنٰى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ". "مَثْنٰى" د "اِثْنَتَيْنِ اِثْنَتَيْنِ" څخه او "ثُلَاثَ" د "ثَلَاثَةٌ ثَلَاثَةٌ" او "رُبَاعَ" د "اَرْبَعَةٌ اَرْبَعَةٌ" څخه را معدول دي، داغه رنګه "مَثْلَثَ، مَرْبَعَ" و غیره. (ضوابط نحوية)

مکرر وي، ځکه دا قاعده ده: چې تکرار د معنٰی پر تکرار د لفظ دلالت کوي نو "ثُلَاثَ" او "مَثْلَثَ" د "ثَلَاثَةٌ ثَلَاثَةٌ" څخه راوتلی دئ په دوی کي عدل تحقيقي دئ.

د عدل تقديري تعريف:

"مَالَمْ يُوْجَدْ فِيْهِ دَلِيْلٌ عَلَى وُجُوْدِ الْاَصْلِ سِوَا مَنْعِ صَرْفٍ" چې د ده پر اصل او معدول عنه باندي د غير انصراف څخه علاوه يو بل دليل نه وي بلکه د ده اصل فرض سوی وي، لکه: "عُمَرُ" اوس دا عرب غير منصرف استعمالوي لېکن په ده کي د غير انصراف يو سبب چې معرفه ده موجود دئ بل سبب نسته نو ځکه موږ د استعمال لحاظ و کړئ. د ده اصل مي "عَامِرٌ" (١) فرض کړئ.

## فائده:

عدل د وزن فعل سره نسي جمع کېدای، ځکه د عدل خپل مخصوص اوزان دي چې هغه په فعل کي وجود نه لري لېکن د علميت او وصف سره جمع کېدای سي لکه: "عُمَرُ، جُمَعُ".

د عدل اوزان:

د عدل اوزان شپږ دي: (١) "فَعَلُ" لکه: "سَحَرُ، صَفَرُ". (٢) "فُعَلُ" لکه: "عُمَرُ، اُخَرُ" (٣) "فُعَالِ" لکه: "ثُلَاثِ" (۴) "فَعَالِ" لکه: "قَطَامِ" (۵) "فَعْلِ" لکه: "اَمْسِ" (٦) "مَفْعَلُ" لکه: "مَثْلَثُ".

## څلورمه خبره:

## وصف:

دوهم سبب وصف دئ:

د وصف تعريف:

وصف: د اسم جامد يا مشتق يا مصدر پر داسي ذات باندي دلالت کول چې د وضع په اعتبار سره دی د يو صفت معنٰی لره متضمن وي. لکه: "اَحْمَدُ" د "حَمْدٌ" معنٰی لره متضمن دئ.

---

(١) د عربي اسماء معدوله چې پر وزن د "فُعَلُ" وي هغه لکه: "بُلَعُ، ثُعَلُ، جُشَمُ، جُحَیُ، جُمَعُ، دُلَفُ، زُجَلُ، زُفَرُ، عُصَمُ، عُمَرُ، قُثَمُ، قُزَحُ، مُضَرُ، هُزَلُ، هُبَلُ" داغه رنګه مؤکدات د جمع مؤنث لکه: "كُتَعُ، بُتَعُ، بُصَعُ" و غيره. (الموجز في قواعد اللغة العربية)

د وصف اطلاق پر دوو معناوو باندي کيږي:

وصف د دوو معناوو (۱) دپاره راځي:

۱. وصف هغه تابع دئ چي د متبوع پر معنٰی باندي دلالت کوي لکه: "جَاءَ رَجُلٌ عَالِمٌ".

۲. وصف هغه اسم دئ چي پر ذات مبهم باندي دلالت کوي او په ده کي د يو صفت لحاظ سوی وي، لکه: "أَحْمَرُ" دلته مراد دغه دوهمه معنٰی دد.

د وصف اقسام:

وصف پر دوه قسمه:

۱. وصف اصلي.

۲. وصف عارضي.

د وصف اصلي تعريف:

وصف اصلي هغه دئ چي واضع خاص د وصف دپاره وضع کړی وي، لکه: "أَسْوَدُ" (تور خطرناکه مار) "أَرْقَمُ" (نقش و نګار والا نر مار) (۲) که څه هم اوس د مارانو دپاره علم جوړ سوی دئ.

د وصف عارضي تعريف:

وصف عارضي هغه دئ چي په اصل وضع کي د صفت دپاره نه وي وضع سوی بلکه د يو عارض په وجه لفظا په ترکيب کي صفت جوړ سوی وي لکه: "مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ أَرْبَعٍ وَرَجُلٍ أَرْنَبٍ" (۳).

د غير منصرف د جوړېدلو دپاره د وصف شرط:

صفت (۱) چي کله د غير منصرف دپاره سبب جوړيږي د ده دپاره شرط دا دئ: چي دی به وصف اصلي وي لکه: "أَسْوَدُ". ځکه وصف عارضي د غير منصرف سبب نه سي جوړېدای لکه: "أَرْبَعٌ".

---

(۱) اول قسم معرفه و نکره دواړه راتلای سي او دوهم قسم صرف نکره جوړېدای سي او په دې باب کي مراد دوهم قسم دئ. (حاشية خضري جلد ۲ صفحه ۱۰۲)

(۲) په "أَسْوَدُ" او په "أَرْقَمُ" کي يو وزن فعل دئ او بل وصف دئ يعني "تور والی" او "کمروالي" که څه هم اوس علم ګرځېدلی دئ.

(۳) په "مَرَرْتُ بِنِسْوَةٍ أَرْبَعٍ" کي "أَرْبَعٍ" په اصل کي علم دئ ځکه دی د يو متعين عدد نوم دئ چي "مَا فَوْقَ الثَّلَاثَةِ أَوْ مَا تَحْتَ الْخَمْسَةِ" دئ لېکن دلته اوس په ترکيب د "نِسْوَةٌ" دپاره لفظا صفت واقع سوی دئ. داغه رنګه "أَرْنَبٌ" په اصل کي د يو معلوم حيوان نوم دئ لېکن اوس لفظا د بزدلی د صفت په خاطر د انسان صفت جوړ سوی دئ.

## پنځمه خبره:

## تانيث:

دريم سبب تانيث دئ:
د تانيث اقسام:
تانيث پر څلور قسمه دئ:

۱. تانيث لفظي. تانيث لفظي چي كله د غير منصرف دپاره سبب جوړيږي نو د ده دپاره (۲) شرط دا دئ، چي دی به علم وي، لكه: "طَلْحَةُ" احترازي مثال لكه: "اِمْرَءَةٌ" (۳).
۲. تانيث معنوي. تانيث معنوي چي كله د غير منصرف دپاره سبب جوړيږي د ده د جواز دپاره خو هغه علميت شرط دئ لكه: هِنْدٌ"[۴] او د وجوب دپاره د علميت سره سره وجود د "اَحَدُ الْاُمُوْرِ الثَّلَاثَةِ". يعني د دا درې شيانو څخه به يو خامخا موجود وي.
   ۱. يا به زائد "عَلَى الثَّلَاثَة" وي لكه: "زَيْنَبُ".
   ۲. يا به ثلاثي "مُتَحَرِّكُ الْاَوْسَطِ" وي لكه: "سَقَرَ"(د جهنم نوم دئ).
   ۳. يا به عجمه وي لكه: "مَاهُ، وَجُوْرَ"(د ښارو نومونه دي).
۳. تانيث "بِالْاَلِفِ الْمَقْصُوْرَةِ" لكه: "حُبْلٰى". تانيث "بِالْاَلِفِ الْمَقْصُوْرَةِ" چي كله سبب د غير منصرف جوړيږي د ده دپاره دوه شرطونه دي:
   ۱. اول شرط يې دا دئ: چي دی به اصلي نه وي احترازي مثال لكه: "عَصًا".
   ۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي تاء به نه قبلوي احترازي مثال لكه: د "فَتٰى" څخه "فَتَاةٌ" ويل.

---

(۱) وصف او علم نسي سره جمع كېدای ځكه وصف پر ذات مبهم دلالت كوي او علم پر ذات معين دلالت كوي او مبهم او معين دواړه سره ضدين دي او اجتماع د ضدين محاله ده.

(۲) د تانيث دپاره علميت ځكه شرط دئ چي په علميت سره تانيث د كلمه سره لازميږي ځكه "اَلْاَعْلَامُ لَا تَتَغَيَّرُ بِقَدَرِ الْاِمْكَانِ" يعني علم "حَتَّى الْاِمْكَان" د تغيره څخه محفوظ وي. (نصر الخبير)

(۳) "طَلْحَةُ" په "طَلْحَةٌ" كي يو علم دئ او بل تانيث لفظي دئ.

(۴) د "هِنْدٌ" انصراف او عدم انصراف دواړه جائز دي، په دې كي يو تانيث معنوي دئ او بل علميت دئ.

۴. تانیث "بِالْاَلِفِ الْمَمْدُوْدَةِ" لکه: "حَمْرَاءُ". (د الف مقصوره او ممدوده د تانیث والي شرطونه په بحث د مذکر او مؤنث کي تېر سوه)

## فائده:

تانیث "بالف مقصوره" او تانیث "بالف ممدوده" دا دواړه قائم مقام د دوو (۱) سببو دي. (چي یو تانیث دئ او بل لزوم د تانیث دئ) یعني د غیرِ انصراف د سبب جوړېدلو دپاره و بل سبب ته ضرورت نه لري.

ځلورم سبب معرفه دئ (۲):

د معرفې دپاره شرط:

معرفه چي کله د غیر منصرف دپاره سبب جوړېږي د دې دپاره شرط دا دئ: چي دا به علم وي، لکه: "اِبْرَاهِيْمُ".

## شپږمه خبره:

## عجمه:

پنځم سبب عجمه (۳) ده:

---

(۱) الف مقصوره او الف ممدوده قائم مقام د دوو سببینو دي په دوی کي یو تانیث دئ او بل لزوم د تانیث دئ ځکه په دوی کي دا خاصیت دئ چي دوی پر کمه کلمه راسي نو د هغه کلمه سره دوی لازم سي خواه که په حالت د وقف کي وي او که په غیر د وقف کي وي په خلاف د "تَا" د تانیث ځکه هغه په حالت د وقف کي په "هَا" سره بدلیږي.

(۲) معرفه: معرفه پر اوه قسمه ده: دلته مراد صرف هغه معرفه ده چي په علم سره معرفه وي لکه: "اِبْرَاهِيْمُ" او باقي نور قسمونه د غیر منصرف سبب نه سي جوړېدای ځکه "مضمرات، اشارات، موصولات" مبني دي او مبني د غیر منصرف سبب نه سي جوړېدای او "معرف باللام او بالاضافت" غیر منصرف د منصرف په حکم کي کرزوي او منادی نحاتو په معرف باللام کي داخله کړې ده. (تنویر)

(۳) عجمه: چونکه د عربو دا عادت دئ چي کم وخت د یو لفظ تلفظ سخت او مشکل وي نو دوی په دې لفظ کي تغیر او تصرف کوي نو لهذا کله چي عجمي لفظ عربي ته منتقل سي نو په ده کي ثقل پکښې وي چونکه عرب د خپل عادت مطابق په دې لفظ کي تغیر و تصرف کوي نو د عربو د تغیر او تصرف ځخه د حفاظت دپاره او د دا لفظ د ثقل برقراره ساتلو دپاره د ده سره علمیت

د عجمي تعريف:

عجمه: د يو لفظ راتلل د هغه الفاظو څخه چي غير عربو وضع كړي وي لكه: "اِبْلِيْس. يُوْسُفْ. اِبْرَاهِيْمُ".

د عجمي شرائط:

عجمه چي كله د غير منصرف سبب جوړيږي د دې دپاره دوه شرطونه دي:

١. "علميت".

٢. "اَحَدُ الْاَمْرَيْنِ".

يعني هغه عجمي به يا زائد "عَلَى الثَّلَاثَةْ" وي لكه: "اِبْرَاهِيْمُ".

او يا به ثلاثي "مُتَحَرِّكُ الْاَوْسَطْ" وي لكه: "شَطَرْ".

## جمع:

شپږم سبب جمع ده:

د جمع په اقسامو كي دلته د غير منصرف په باب كي مراد صرف جمع منتهى الجموع ده چي په خپل جميعت كي انتهاء ته رسيدلې وي، دوباره په جمع تكسيره سره نسي جمع كېداى و دې ته جمع اقصى هم ويل كيږي لكه: "دَوَابٌّ. مَسَاجِدُ. مَصَابِيْحُ".

## فائده:

د جمع منتهى الجموع د جوړولو (١) طريقه، اوزان (١) او مثالونه يې په حاشيه كي موجود دي. "اِنْ شِئْتَ فَانْظُرْ هُنَاكَ".

---

شرط سو ځكه اعلام د تغير او تصرفه څخه بعُد امكان محفوظه دئ نو چي كله د ده ثقل باقي پاته سو نو د دغه ثقل په وجه دى اوس غير منصرف ويل كيږي. (حاشية خضري)

(١) د جمع منتهى الجموع د جوړلو طريقه دا ده: چي اول دوه حرفه به مفتوح وي دريم ځاى به الف علامه د جمع منتهى الجموع وي كه چيري د الف څخه وروسته يو حرف وو هغه به مشدد وي لكه: "دَوَابٌّ" او كه دوه حرفه وه اول به مكسور دوهم به په طبق د عامل سره وي لكه: "مَسَاجِدُ" او كه درې حرفه وه اول به مكسور دوهم به ساكن وي دريم به په طبق د عامل وي لكه: "مَصَابِيْحُ". (معارف الصرف)

د جمع منتهى الجموع شرائط:

جمع منتهى الجموع چي كله د غير منصرف سبب جوړيږي د دې دپاره دوه شرطونه دي:

١. اول شرط يې دا دئ: چي صيغه به د جمع منتهى الجموع وي احترازي مثال لكه: "رِجَالٌ، مُسْلِمُوْنَ، مُسْلِمَاتٌ، قَوْمٌ و رَهْطٌ".

٢. دوهم شرط يې دا دئ: چي په آخر كي به يې داسي "تا" نه وي چي په حالت د وقف كي په "هَا" سره بدليږي احترازي مثال لكه: "فَرَازِنَةٌ، اَشَاعِرَةٌ" اتفاقي مثال لكه: "مَسَاجِدُ، ضَوَارِبُ، مَصَابِيْحُ".

**فائده:**

جمع منتهى الجموع د الف ممدوده او الف مقصوره په شان د غير منصرف دپاره قائم مقامه د دوه سببين ده يو جمعيت دئ بل لزوم د جمعيت دئ.

## تركيب:

اووم سبب تركيب دئ:

د تركيب يعني د مركب په اقسامو كي دلته د غير منصرف په باب كي مراد صرف مركب منع صرف دئ، لكه: "بَعْلَبَكَّ، حَضَرَمَوْتُ".

د تركيب شرائط:

تركيب چي كله د غير منصرف سبب جوړيږي د ده دپاره دوه شرطونه دي يو وجودي دئ بل عدمي دئ.

١. وجودي شرط يې دا دئ: چي دى به علم وي احترازي مثال لكه: "رَجُلٌ عَالِمٌ".

(١) د جمع منتهى الجموع دوولس اوزان دي: (١) "فَعَاعِلُ"، لكه: "ضَرَائِرُ". (٢) "فَوَاعِلُ" لكه: "أَوَامِرُ". (٣) "أَفَاعِلُ" لكه: "أَرَاهِطُ". (۴) "أَفَاعِيْلُ" لكه: "أَبَاطِيْلُ". (۵) "مَفَاعِلُ" لكه: "مَحَاسِنُ". (٦) "مَفَاعِيْلُ" لكه: "مَيَاسِيْرُ". (٧) "فَعَالِيُّ" لكه: "أَنَاسِيُّ و أَرَاضِيُّ". (٨) "فَوَاعِيْلُ" لكه: "دَوَانِيْقُ". (٩) "فَعَالِلُ" لكه: "عَنَاصِرُ، زَلَازِلُ". (١٠) "فَعَالِيْلُ" لكه: "صَنَادِيْقُ، قَنَاجِيْنُ". (١١) "أَفْعِلَاءُ" لكه: "أَصْدِقَاءُ، أَنْبِيَاءُ". (١٢) "فُعَلَاءُ" لكه: "وُزَرَاءُ، شُعَرَاءُ". (معارف الصرف، معلم العربي).

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چې مرکب اضافي يا اسنادي به نه وي احترازي مثال لکه: "غُلَامُ زَیْدٍ". "زَیْدٌ قَائِمٌ" اتفاقي مثال: لکه: "بَعْلَبَکَ، حَضَرَمَوْتُ، مَعْدِیْکَرَبَ".

## اوومه خبره:

## وزن فعل:

اتم سبب وزن فعل دئ:
د وزن فعل تعريف:
د يو اسم پر وزن د فعل کېدل.
د وزن فعل شرائط:
وزن فعل چې کله سبب د غير منصرف جوړېږي په ده کي به يو د دا دوو امرو څخه موجود وي.

۱. اول امر چې دا وزن به په کلام عربي کي په فعل پوري (۱) خاص وي او په اسم کي به نه موجود يږي "اِلَّا مَنْقُوْلاً عَنِ الْفِعْلِ" چې د فعل څخه به و اسم ته را نقل سوی وي، لکه: "شَمَّرَ" دا د تفعيل د باب ماضي صيغه ده کله چې دی علم وي نو په ده کي يو سبب وزن فعل دئ او بل علميت او داغه رنګه "ضَرَبَ، اِسْتَخْرَجَ، تَقَابَلَ".

۲. دوهم امر که چيري دا وزن په فعل پوري خاص نه وي بلکه په فعل او اسم کي مشترک وه نو بيا د ده دپاره يو شرط دا دئ: چې د اسم په شروع کي به يو حرف د حروف اتين څخه راغلی وي، او د ده په آخر کي به داسي "تَا" (۲) نه وي چې په حالت د وقف کي په "هَا" سره بدليږي لکه: "اَحْمَدُ، یَشْکُرُ، تَغْلِبُ، نَرْجِسُ".

---

(۱) يا هغه وزن په فعل کي کثيرالاستعماله وي لکه: "اَصْبَعُ" او "اِثْمَدُ" کله چې دوی علم وي. (شرح ابن عقيل جلد ۳ صفحه ۳۳۲)

(۲) د تا د نه قبلولو شرط يې ځکه لګولی دئ چې تاء متحرکه خاصه د اسم ده نو په دې سره د اسميت جهت قوي کيږي او د فعل سره مشابهت کمزوري کيږي.

## الف و نون زائدتان:

نهم سبب الف و نون زائدتان دي:
الف و نون زائدتان به یا د اسم په آخر کي وي یا د صفت که چیري د اسم په آخر کي وي نو بیا د دوی دپاره علمیت (۱) شرط دئ، لکه: "عُثْمَانُ، عِمْرَانُ، سَلْمَانُ" او که چیري د صفت په آخر کي وو بیا یې شرط دا دئ: چي د دوی مؤنث به د "فَعْلَانَةٌ" پروزن نه وي لکه: "سَكْرَانٌ". په "سَكْرَانٌ" کي دوهم سبب وصف دئ د ده مؤنث "سَكْرٰی" راځي.

## فائده:

"نَدْمَانُ" که چیري د "نَدِيْمٌ" څخه سي په معنٰی د "مصاحب" (ملګری) سره نو بیا دی منصرف دئ ځکه د ده مؤنث "نَدْمَانَةٌ" راځي او که چیري د "نَادِمٌ" څخه سي په معنٰی د (پښېمانه) سره نو بیا دی غیر منصرف دئ ځکه بیا د ده مؤنث "نَدْمٰی" راځي.

## اتمه خبره:

د انبیاء کرام علیهم السلام نومونه:
د انبیاء کرام علیهم السلام په نومو کي صرف اووه نومونه منصرف (۲) دي باقي ټول عجمي غیر منصرف دئ هغه اووه نومونه دا دي: (۱) "محمد ﷺ". (۲) "صالح". (۳) "هود". (۴) "شعیب". دا څلور عربي منصرف دي او (۵) "نوح"، (٦) "لوط" (۷) "شیث" عجمي منصرف دئ.
د ملائکو نومونه:

---

(۱) د کمو اسبابو سره چي علمیت صرف د سبب په طور یا د سببیت او شرطیت په طور باندي جمع کیږي که چیري د دا اسم څخه علمیت زائل سي نو بیا دی منصرف کیږي. (جامي)

(۲) منصرف پر دوه قسمه دئ: (۱) حقیقي (۲) جعلي. د منصرف حقیقي تعریف تېر سو او د منصرف جعلي دپاره پنځه سببونه دي: (۱) د ضرورت شعري په وجه لکه: "مَاذَا عَلَىٰ مَنْ شَمَّ تُرْبَةَ أَحْمَدٍ. أَنْ لَا يَشُمَّ مَدَى الزَّمَانِ غَوَالِيَا". (۲) تناسب بین الکلمتین لکه: "سَلَاسِلًا وَ أَغْلَالًا". (۳) تنکیر بعد العلمیت لکه: "لِكُلِّ فِرْعَوْنٍ مُوْسٰي أَيْ لِكُلِّ مُبْطِلٍ مُحِقٌّ". (۴) د الف لام دخول څخه وروسته لکه: "وَأَنْتُمْ عَاكِفُوْنَ فِي الْمَسَاجِدِ". (۵) د اضافت په وجه لکه: "إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ". (النحو الوافي)

د ملائکو په نومو کي صرف څلور نومونه عربي دي په هغه کي (۱) "رِضْوَان" عربي غیر منصرف دیٔ او (۲) "منکر" (۳) "نکیر" (۴) "مالک" عربي منصرف دیٔ باقي ټول عجمي غیر منصرف دیٔ.

د اسلامي میاشتو نومونه:

د میاشتو په اسلامي نومو کي شپږ منصرف دي هغه لکه: (۱) "شَوَّالَ" (۲) "ذِيْ الْقَعْدَه". (۳) "ذِيْ الْحَجَّه"، (۴) "مُحَرَّمْ". (۵) "رَبِيْعُ الْاَوَّل" (٦) "رَبِيْعُ الثَّانِي". او شپږ غیر منصرف دیٔ هغه لکه: (۱) "جَمَادِی الْاُوْلٰی" (۲) "جَمَادِي الْاُخْرٰی". (۳) "رَجَبْ". (۴) "شَعْبَان" (۵) "رَمَضَان" (٦) "صَفَرْ".

د قبیلو او ځایو نومونه:

که چیري د قبیلو او ځایو په نومو کي د تانیث معنوي څخه علاوه دوه سببونه موجود وي نو دی به همېشه غیر منصرف وي، لکه: "بنو تغلب" دا یو قبیله ده ځکه په ده کي یو وزن فعل او بل علمیت دیٔ.

که چیري د تانیث معنوي څخه علاوه په دې کي دوه سببونه نور موجود نه وه بیا به ورته ګورو چي د عربو څخه د دوی سماع د منصرف راغلی ده او که د غیر منصرف که چیري د دوی سماع د غیر منصرف راغلی وو نو دی به همېشه غیر منصرف وي لکه: "هود، مجوس، دمشق". او که چیري سماع د منصرف راغلی وه نو دوی به منصرف وي لکه: "بنو کلب، بنو ثقیف، بنو نظیر، بنو قریظه، او حنین". او د دې درو صورتو څخه علاوه د دوی انصراف او عدم انصراف دواړه جائز دي که چیري د مذکر په تاویل سره سي نو بیا منصرف دیٔ او که د مؤنث په تاویل سره سي نو بیا غیر منصرف دیٔ.

لفظ د "عُزَیْرُ":

"عُزَیْرُ" که چیري د "تَعْزِیْر" څخه سي او عربي سي نو دی منصرف دیٔ او که چیري عجمي سي نو بیا غیر منصرف دیٔ، ځکه په ده کي عجمه و علمیت موجود دي.

لفظ د "اِبْلِیْس":

"إِبْلِيْس" كه چيري عجمي لفظ سي نو بيا دی د علميت او عجمه په وجه غير منصرف دئ او كه عربي لفظ سي د "إِبْلَاس" څخه مشتق سي نو بيا دی د شبيه عجمه په وجه غير منصرف دئ (١).

## جملي:

| عنوان | خبریه، انشاء | مسند | مسندالیه | معرب، مبنی | اسم غیر متمکن | معرفه، نکره | مذکر، مؤنث | واحد، تثنیه، جمع | منصرف | غیر منصرف |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| نَبِيُّنَا مُحَمَّدٌ | خبریه اسمیه | مُحَمَّدٌ | نَبِيُّنَا | ۲. معرب ۱. مبنی | نَا | ۳. معرفه | ۳. مذکر | ۲. واحد ۱. جمع | ۲. منصرف (نَبِيُّ مُحَمَّدٌ) | + |
| وَنَسُوقُ الْمُجْرِمِينَ إِلَى جَهَنَّمَ | خبریه فعلیه | نَسُوقُ | نَحْنُ | ۳. معرب ۳. مبنی | نَحْنُ | ۳. معرفه | ۲. مذکر ۱. مؤنث | ۱. واحد ۲. جمع | ۱. منصرف الْمُجْرِمِينَ | جَهَنَّمَ علمیت و تانیث |
| وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ أَكْبَرُ | خبریه اسمیه | أَكْبَرُ | وَلَعَذَابُ الْآخِرَةِ | ۳. معرب ۳. مبنی | هُوَ | ۳. معرفه ۱. نکره | ۳. مذکر ۱. مؤنث | ۴. واحد | ۲ منصرف (عَذَابُ، الْآخِرَةِ) | أَكْبَرُ وزن فعل وصفیت |
| جَعَلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا | خبریه فعلیه | جَعَلَ | نَا | ۳. معرب ۵. مبنی | نَا، هُمْ، هَا | ۳. معرفه ۳. نکره | ۵. مذکر ۲. مؤنث | ۳. واحد ۳. جمع | ۳. منصرف كُلِّ، قَرْيَةٍ، مُجْرِمِينَ | أَكَابِرَ جمع منتهی الجموع |
| يَوْمَ نَبْطِشُ الْبَطْشَةَ الْكُبْرَى | خبریه فعلیه | نَبْطِشُ | نَحْنُ | ۳. معرب ۲. مبنی | ۱. ظرف زمان، نَحْنُ، مبنی | ۳. معرفه ۱. نکره | ۲. مذکر ۳. مؤنث | ۳. واحد ۱. جمع | ۲. منصرف: يَوْمَ الْبَطْشَةَ | الْكُبْرَى تانیث بالالف المقصوره |
| وَتَكُونَ لَكُمَا الْكِبْرِيَاءُ فِي الْأَرْضِ | خبریه فعلیه | (لَكُمَا) باعتبار متعلق | الْكِبْرِيَاءُ | ۳. معرب ۳. مبنی | كُمَا، هُوَ | ۳. معرفه | ۱. مذکر ۲. مؤنث | ۲. واحد ۱. تثنیه | ۱. منصرف الْأَرْضِ | الْكِبْرِيَاءُ تانیث بالالف الممدوده |

---

(١) **د غير منصرف د ټوله باب خلاصه:** په دنيا كي غير منصرف صرف دوه قسمه راځي: (١) علم، (٢) نكره، باقي ټوله منصرف دي. اول قسم علم كه چيري علم وو او د دغه شپږو اسمو څخه يو اسم ور سره موجود وو نو بيا دغه علم غير منصرف ورنه بيا علم منصرف دئ هغه شپږ اسمونه دا دي:

١. مؤنث لفظي يا معنوي لكه: "طَلْحَةُ. زَيْنَبُ". ٢. الف و نون زائد تان لكه: "عُثْمَانُ عِمْرَانُ. سلْمَانُ".
٣. وزن فعل لكه: "أَحْمَدُ. يَشْكُرُ". ٤. مركب منع صرف لكه: "بَعْلَبَكّ".
٥. عجمه لكه: "إِبْرَاهِيمُ". ٦. عدل لكه: "عُمَرُ. زُفَرُ".

او دوهم قسم نكره: كه چيري نكره وه او د دغه شپږو اسمو څخه يو اسم ور سره موجود وو بيا دغه نكره غير منصرف ده ورنه منصرف ده هغه شپږ اسمونه دا دي:

١. "أَفْعَلُ" صفتي لكه: "أَحْمَرُ". ٢. "فَعْلَانُ" صفتي لكه: "سَكْرَانُ".
٣. اسم عدد چي د "فُعَالُ" يا د "مَفْعَلُ" پر وزن وي لكه: "ثُلَاثَ و مَثْلَثَ". ٤. الف مقصوره چي تانيثي وي لكه: "حُبْلَى".
٥. الف ممدوده چي زائده وي لكه: "حَمْرَاءُ". ٦. جمع چي اقصى وي لكه: "مَسَاجِدُ. مَصَابِيحُ".
(ضوابط نحويه)

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند الیه | معرب، مبنی | اسم غیر متمکن | معرفه، نکره | مذکر، مؤنث | واحد، تثنیه، جمع | منصرف | غیر منصرف |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَقَدْ آتَيْنَا آلَ إِبْرَاهِيمَ الْكِتَابَ | خبریه فعلیه | آتَیْ | نَا | ۳. معرب ۳. مبنی | نَا | ۳. معرفه | ۳. مذکر | ۳. واحد ۱. جمع | ۲. منصرف: آلَ، الْكِتَابَ | إِبْرَاهِيمَ علمیت، عجمه |
| فَانْكِحُوا مَا طَابَ لَكُمْ مِنَ النِّسَاءِ مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ | انشاء یه فعلیه | فَانْكِحُوا | أَنْتُمْ | ۳. معرب ۱۱. مبنی | أَنْتُمْ، مَا موصول، هُوَ، كُمْ | ۳. معرفه ۳. نکره | ۷. مذکر ۱. مؤنث | ۲. واحد ۶. جمع | ۱. منصرف النِّسَاءِ | مَثْنَى وَثُلَاثَ وَرُبَاعَ عدل، صفت |
| يَأْتِي مِنْ بَعْدِي اسْمُهُ أَحْمَدُ | خبریه فعلیه | يَأْتِي | هُوَ | ۳. معرب ۳. مبنی | هُوَ، ي، هُ | ۶. معرفه | ۶. مذکر | ۶. واحد | ۲. منصرف بَعْدِ، اِسْمُ | أَحْمَدُ وزن فعل علمیت |
| مَكَّةُ بَلْدَةٌ مُبَارَكَةٌ | خبریه اسمیه | بَلْدَةٌ مُبَارَكَةٌ | مَكَّةُ | ۳. معرب ۱. مبنی | هِيَ | ۲. معرفه ۲. نکره | ۳. مؤنث | ۳. واحد | ۲. منصرف بَلْدَةٌ، مُبَارَكَةٌ | مَكَّةُ تانیث لفظی علمیت |
| تِلْكَ أَمَانِيُّهُمْ | خبریه اسمیه | أَمَانِيُّهُمْ | تِلْكَ | ۱. معرب ۲. مبنی | تِلْكَ اسم اشاره، هُمْ | ۳. معرفه | ۱. مذکر ۲. مؤنث | ۱. واحد ۲. جمع | + | أَمَانِيُّ جمع منتهی الجموع |
| عُثْمَانُ ؓ ثَالِثُ الْخُلَفَاءِ | خبریه اسمیه | ثَالِثُ الْخُلَفَاءِ | عُثْمَانُ | ۳. معرب ۳. مبنی | هُ | ۵. معرفه | ۵. مذکر | ۳. واحد ۱. جمع | ۲. منصرف: ثَالِثُ، الْخُلَفَاءِ | عُثْمَانُ علمیت الف نون زائدتان |

# التمرين:

"فَحَيُّوا بِأَحْسَنَ مِنْهَا أَوْ رُدُّوهَا،، إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبَارَكًا،، إِنَّمَا الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ،، شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِي أُنْزِلَ فِيهِ الْقُرْآنُ،، وَقَتَلَ دَاوُدُ جَالُوتَ،، وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِدْرِيسَ،، اَعِدْ ذِكْرَ نَعْمَانٍ لَنَا،، صُبَّتْ عَلَى مَصَائِبُ،، يَا أَهْلَ يَثْرِبَ لَا مُقَامَ لَكُمْ،، وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ إِلَّا بُشْرَى لَكُمْ".

**فصل بدانکه اعراب اسم سه است الخ: ........................ الی قوله فصل بدانکه اعراب مضارع سه است.**

## ترجمه:

پوه سه! چي اعراب د اسم درې دي رفع، نصب، جر او اسم متمکن په اعتبار د وجوه د اعراب (يعني د اعراب د اقسامو په لحاظ سره) پر شپاړس (۱۶) قسمه دئ: اول مفرد منصرف صحيح، لکه: "زَيْدٌ". دوهم مفرد منصرف جاري مجراى صحيح لکه: "دَلْوٌ". دريم جمع مکسر لکه: "رِجَالٌ". د دې درو سره اعراب رفع يې په ضمه سره ده نصب يې په فتحه سره دئ او جر يې په کسره سره دئ. لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ وَ دَلْوٌ وَ رِجَالٌ. وَ رَأَيْتُ زَيْدًا وَ دَلْوًا وَ رِجَالًا. وَ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَ دَلْوٍ وَ رِجَالٍ". څلورم جمع مؤنث سالمه ده: لکه: "مُسْلِمَاتٌ" د دې اعراب رفع په ضمه سره ده او نصب و جر يې دواړه په کسره سره دي، لکه: "هُنَّ مُسْلِمَاتٌ. وَ رَأَيْتُ مُسْلِمَاتٍ وَ مَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ". پنځم غير منصرف دئ، غير

منصرف هغه اسم دئ چي په ده کي دوه سببه يا يو سبب قائم مقام د دوو سببو موجود وي، او نه اسباب دا دي: (١) عدل (٢) وصف (٣) تانيث (۴) معرفه (۵) عجمه (٦) جمع (٧) ترکيب (٨) وزن فعل (٩) الف و نون زائدتان. لکه: "عُمَرُ. اَحْمَرُ. طَلْحَةُ. زَيْنَبُ. اِبْرَاهِيْمُ. مَسَاجِدُ. مَعْدِيْكَرِبُ. اَحْمَدُ. عِمْرَانُ". د دې ټولو رفع په ضمه سره ده او نصب او جريې دواړه په فتحه سره دي. لکه: "جَاءَ عُمَرُ وَ رَاَيْتُ عُمَرَ وَ مَرَرْتُ بِعُمَرَ". شپږم اسماء ستة مکبره دي: په هغه وخت کي چي دوی د يا متکلم څخه علاوه و بل اسم ته مضاف وي، لکه: "اَبٌ. اَخٌ. حَمٌ. هَنٌ. فَمٌ. ذُوْمَالٍ". د دې ټولو رفع په واو سره ده نصب يې په الف سره دئ او جر يې په ياء سره دئ. لکه: "جَاءَ اَبُوْكَ. وَ رَاَيْتُ اَبَاكَ. وَ مَرَرْتُ بِاَبِيْكَ". اووم قسم: تثنيه ده لکه: "رَجُلَانِ. اتم قسم: "كِلَا وَ كِلْتَا" چي کله دوی مضاف وي، و ضمير ته. نهم قسم: "اِثْنَانِ وَ اِثْنَتَانِ" د دې درو سره قسمو اعراب په حالت رفعي کي الف او په حالت نصبي او جري کي ياء ماقبل مفتوح وي. لکه: "جَاءَ رَجُلَانِ وَ كِلَاهُمَا وَ اِثْنَانِ. وَ رَاَيْتُ رَجُلَيْنِ وَ كِلَيْهِمَا وَ اِثْنَيْنِ. وَ مَرَرْتُ بِرَجُلَيْنِ وَ كِلَيْهِمَا وَ اِثْنَيْنِ". لسم قسم: جمع مذکر سالم ده: لکه: "مُسْلِمُوْنَ". او يوولسم قسم "اُولُوْ" جمع د "ذُوْ" ده، لکه: "اُولُوْ". او دوولسم قسم "عِشْرُوْنَ" بيا تر "تِسْعُوْنَ" پوري. د دې ټولو رفع په واو ماقبل مضموم سره ده او نصب و جر يې دواړه په ياء ماقبل مکسور سره دي. لکه: "جَاءَ مُسْلِمُوْنَ وَ اُولُوْ مَالٍ وَ عِشْرُوْنَ رَجُلًا. وَ رَاَيْتُ مُسْلِمِيْنَ وَ اُولِيْ مَالٍ وَ عِشْرِيْنَ رَجُلًا. وَ مَرَرْتُ بِمُسْلِمِيْنَ وَ اُولِيْ مَالٍ وَ عِشْرِيْنَ رَجُلًا". او ديارلسم قسم اسم مقصور دئ، اسم مقصور هغه اسم دئ چي په آخر کي يې الف مقصوره راغلی وي، لکه: "مُوْسٰى". او څوارلسم قسم: غير جمع مذکر سالمه چي مضاف وي و ياء د متکلم ته لکه: "غُلَامِيْ". د دې دواړو قسمو اعراب رفع يې په تقدير د ضمې سره ده او نصب يې په تقدير د فتحې سره دئ او جر يې په تقدير د کسرې سره دئ. او صورةً په لفظ کي په هر حالت کي په يو شکل کي وي، لکه: "جَاءَ مُوْسٰى وَ غُلَامِيْ وَ رَاَيْتُ مُوْسٰى وَ غُلَامِيْ. وَ مَرَرْتُ بِمُوْسٰى وَ غُلَامِيْ". او پنځلسم قسم اسم منقوص دئ: اسم منقوص هغه اسم دئ چي په آخر کي يې ياء ماقبل مکسور وي، او د ده اعراب رفع يې په تقدير د ضمې سره ده او نصب يې په فتحه لفظي سره دئ او جر يې په تقدير د کسرې سره دئ. لکه: "جَاءَ الْقَاضِيْ وَ رَاَيْتُ الْقَاضِيَ وَ مَرَرْتُ بِالْقَاضِيْ". او شپاړسم قسم جمع مذکر سالمه ده: چي مضاف وي و ياء د متکلم ته لکه: "مُسْلِمِيَّ" د دې اعراب

رفع په تقدير د واو سره او نصب جر يې په ياء ماقبل مكسور سره دئ. لكه: "هٰؤُلَاءِ مُسْلِمِيَّ"، په اصل كي "مُسْلِمُوْنَ" وو، نون په اضافت كي و غورځېدئ واو او ياء سره جمع سوه اول په دوى كي ساكن وو، يعني (واو) واو يې په ياء سره بدل كړئ او ياء يې په ياء كي مدغمه كړه. "مُسْلِمُيَّ" سو، بيا يې كسره د ميم په فتحه سره بدله كړه (د ياء د مناسبت په وجه) نو "مُسْلِمِيَّ" سو "وَرَاَيْتُ مُسْلِمِيَّ، وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمِيَّ".

## الدرس الثامن عشر:

**د نن د سبقه خلاصه اووه (٧) خبري دي:**

### اوله خبره:

د نن په سبقه كي مصنف رحمه الله د اسماؤ اعراب ذكر كوي چونكه پر اسماؤ باندي مختلفي معناګاني وارديږي فاعليت، مفعوليت، او اضافت د دغه معناګانو تعين سِوا د اعرابه څخه په بل شي نه سي كېداى نو ځكه مصنف رحمه الله اوس هغه اعراب بيانوي چي هغه د اسم په آخر كي راځي.

**سوال:** اعراب ولي د كلمې پر آخر جاري كيږي؟

**جواب:** اعراب راځي دپاره د تعين د معنىٰ او تعين د معنىٰ راځي وروسته تر اتمام د معنىٰ او اتمام د معنىٰ راځي وروسته تر اتمام د لفظ نو ځكه اعراب به پر آخر د كلمې جاري كيږي لېكن دا توجيه كمزوري ده ځكه بعضي حروف معاني د اسماؤ په شروع كي راځي لكه: "اَلرَّجُلُ". او كله په وسط د كلمې كي راځي لكه: ياء د تصغير په "فُلَيْسٌ" او "رُجَيْلٌ" كي.

صحيح توجيه: دا اعراب پر اول د كلمې يعني پر (فَاء) كلمه نه سي جاري كېداى ځكه پر اول حرف باندي حركت بنائي وي، او س كچيري حركت اعرابيه پر داخل سي نو بيا اجتماع د حركتينو لازميږي او اجتماع د حركتينو پر يو حرف باندي باطله ده. او اعراب پر وسط د كلمې هم نه سي جاري كېداى ځكه وسط د كلمې مختلف وي. بعضي اسماء ثلاثي وي، او بعضي رباعي وي، او بعضي خماسي وي، يعني د اسم اوزان مختلف وي، كه چيري اعراب پر وسط د كلمې جاري سي بيا دا نه معلوميږي چي دا حركت بنائي دئ او كه اعرابي. نو ځكه آخر د كلمې د اعراب دپاره متعين سو.

## دوهمه خبره:

د اعراب تعریف:

"اَلْاِعْرَابُ مَاجِیْئَ بِهٖ لِبَیَانِ مُقْتَضَی الْعَامِلِ مِنْ حَرَکَةٍ اَوْ حَرْفٍ اَوْ سُکُوْنٍ اَوْ حَذْفٍ". یعني د ده په ذریعه سره په محل اعراب کي تبدیلي ښکاره کیږي.

د اعراب تعداد:

د اسم د اعراب تعداد دري دئ:

۱. رفع.
۲. نصب.
۳. جر.

رفع په درو طریقو سره راځي: (۱) رفع کله په ضمه سره راځي لکه: "جَاۤئَنِیْ زَیْدٌ". (۲) کله په الف سره راځي لکه: "جَاۤئَنِیْ مُسْلِمَانِ". (۳) کله په واو سره راځي لکه: "جَاۤئَنِیْ اَبُوْکَ".

نصب په څلورو طریقو سره راځي: (۱) نصب کله په فتحه سره راځي لکه: "رَاَیْتُ زَیْدًا". (۲) کله په کسره سره راځي لکه: "رَاَیْتُ مُسْلِمَاتٍ" (۳) کله په الف سره راځي لکه: "رَاَیْتُ اَبَاکَ". (۴) کله په یاء سره راځي لکه: "رَاَیْتُ مُسْلِمِیْنَ".

جر په درو طریقو سره راځي: (۱) جر کله په کسره سره راځي لکه: "مَرَرْتُ بِزَیْدٍ" (۲) کله په فتحه سره راځي لکه: "مَرَرْتُ بِعُمَرَ" (۳) کله په یاء سره راځي لکه: "مَرَرْتُ بِاَبِیْکَ".

## دریمه خبره:

چونکه په اسم کي دري معناګاني راځي: فاعلیت، مفعولیت، او اضافت. نو ځکه اعراب هم دري دئ، رفع، نصب، جر.

"فَالرَّفْعُ عَلَمُ الْفَاعِلِیَّةِ" رفع د فاعلیت علامه ده.

د حالت رفعي علامات:

د حالت رفعي اته (۸) علامې دي: (۱) فاعل، لکه: "ضَرَبَ زَیْدٌ عَمْرًا" (۲) نائب فاعل لکه: "ضُرِبَ زَیْدٌ" (۳) مبتداء لکه: "زَیْدٌ قَائِمٌ". (۴) خبر لکه: "زَیْدٌ قَائِمٌ". (۵) د "کَانَ" او اخواتو اسم لکه:

"وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا" (٦) د "اِنَّ" او اخواتو خبر لکه: "اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ" (٧) د "مَا وَلَا" مشبهتين بليس اسم لکه: "مَا زَيْدٌ قَائِمًا" (٨) د "لَا" نفي جنس خبر لکه: "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ".

"وَالنَّصْبُ عَلَمُ الْمَفْعُوْلِيَّةِ" او نصب علامه د مفعوليت ده.

د حالت نصبي علامات:

د حالت نصبي دوولس (١٢) علامات دي: (١) مفعول مطلق لکه: "ضَرَبْتُ ضَرْبًا" (٢) مفعول به لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا" (٣) مفعول فيه لکه: "صُمْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ" (۴) مفعول معه لکه: "جَاءَ الْبَرْدُ وَ الْجُبَّاتِ" (٥) مفعول له لکه: "ضَرَبْتُهُ تَأْدِيبًا" (٦) حال لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا" (٧) تميز لکه: "طَابَ زَيْدٌ نَفْسًا" (٨) مستثنى لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا" (٩) د "اِنَّ" او اخواتو اسم لکه: "اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ" (١٠) خبر د "كَانَ" او اخواتو لکه: "وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا" (١١) خبر د "مَا وَلَا" مشبهتين بليس لکه: "لَا زَيْدٌ قَائِمًا" (١٢) د "لَا" نفي جنس اسم لکه: "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ".

"وَالْجَرُّ عَلَمُ الْاِضَافَةِ" او جر علامه د اضافت ده.

د حالت جري علامات:

د حالت جري دوې علامې دي: (١) مضاف اليه کېدل لکه: "غُلَامُ زَيْدٍ" (٢) مجرور کېدل په حرف جر سره لکه: "مَرَرْتُ بِزَيْدٍ".

## څلورمه خبره:

د اعراب اقسام:

اعراب پر دوه قسمه دئ:

١. اعراب بالحرکت.
٢. اعراب بالحرف.

د اعراب بالحرکت تعريف [1]:

---

[1] اعراب بالحرکت اصل دئ تر اعراب بالحرف ځکه اعراب بالحرکت خفيف دئ او اعراب بالحرف ثقيل دئ، اعراب بالحرکت بسيط دئ او اعراب بالحرف مرکب دئ او بل قسم اعراب محلي دئ چي هغه په مبني کي راځي. (نصر الخبير)

اعراب بالحرکت هغه اعراب دئ چي په حرکت سره وي، یعني په زور، زېر، پېښ سره وي، لکه: "زَیْدٌ".

د اعراب بالحرف تعریف:

اعراب بالحرف هغه اعراب دئ: چي په حروفو سره وي، یعني په "واو" "الف" و "یا" سره. بیا هر یو پر درې قسمه دئ:

۱. اعراب لفظي (۱).
۲. اعراب تقدیري.
۳. اعراب مشترک.

اعراب لفظي هغه دئ: چي په لفظو کي ښکاره وي، لکه: "زَیْدٌ".

اعراب تقدیري هغه دئ: چي په لفظو کي ښکاره نه وي، لکه: "مُوْسٰی".

اعراب مشترک هغه دئ: چي دی مشترک وي په مابین د لفظي او تقدیري کي. لکه: اسم منقوص او جمع مذکر سالمه چي مضاف وي و یاء د متکلم ته.

بیا اعراب لفظي پر دوه قسمه دئ:

۱. اعراب تبعي.
۲. اعراب غیر تبعي.

اعراب تبعي هغه دئ: چي یو حالت یې د بل حالت تابع وي.

اعراب غیر تبعي هغه دئ: چي یو حالت یې د بل حالت تابع نه وي.

اسم متمکن په اعتبار د وجوه د اعراب پر شپاړس قسمه دئ:

اول مفرد منصرف صحیح، لکه: "زَیْدٌ".

دوهم: مفرد منصرف جاري مجرای صحیح لکه: "دَلْوٌ، ظَبْيٌ".

دریم جمع مکسر منصرف لکه: "رِجَالٌ".

(۱) اعراب لفظي اصل وي تر اعراب تقدیري ځکه تعین د معاني وو ثلاثه وو په لفظي سره په ښه طریقه کیږي تر اعراب تقدیري.

د دې درو قسمو اعراب رفع يې په ضمه سره ده نصب يې په فتحه سره دئ او جر يې په كسره سره دئ. يعني اعراب بالحركت لفظي (۱) غير تبعي دئ. لكه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ وَ دَلْوٌ وَ ظَبْيٌ وَ رِجَالٌ. وَ رَاَيْتُ زَيْدًا وَ دَلْوًا وَ ظَبْيًا وَ رِجَالًا. وَ مَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَ دَلْوٍ وَ ظَبْيٍ وَ رِجَالٍ".

**فائده:**

"صحيح" عند النحاة هغه اسم ته ويل كيږي چي په آخر كي يې حرف علت نه وي، لكه: "زَيْدٌ" او جاري مجراى صحيح هغه اسم دئ چي په آخر كي يې واو يا ياء ماقبل ساكن وي، لكه: "دَلْوٌ وَ ظَبْيٌ".

**پنځمه خبره:**

څلورم قسم جمع مؤنث سالمه ده:

د جمع مؤنثي سالمي اعراب (۲) رفع يې په ضمه سره ده، نصب او جر يې دواړه په كسره سره دي. يعني اعراب (۱) بالحركت لفظي تبعي دئ، لكه: "جَائَنِيْ مُسْلِمَاتٌ. وَ رَاَيْتُ مُسْلِمَاتٍ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمَاتٍ".

---

(۱) د دې درو سره قسمو اعراب بالحركت دئ، ځكه په زور، زېر، پېښ سره دئ، لفظي دئ ځكه په لفظو كي ښكاره دئ. غير تبعي دئ ځكه يو حالت يې د بل حالت لره تابع نه دئ. (از مرتب عفي عنه).

**فائده:**

خلاصه: په اولو پنځو قسمو كي اعراب بالحركت دئ، بيا په اوو قسمو كي اعراب بالحرف دئ او په اولو دوولس قسمو كي اعراب لفظي دئ او په آخرو څلورو كي اعراب تقديري دئ.

(۲) لفظ د "أَوْلَاتٌ" او "أَذْرِعَاتٌ" (بَلَدٌ فِي شَام)، او د "عَرَفَاتٌ" اعراب هم په شان د جمع مؤنثي سالمي وي، لېكن په "أَذْرِعَاتٌ" او "عَرَفَاتٌ" كي دوه مذهبه نور دي، بعضي حضرات وايي: دا دواړه غير منصرف دي چي پر دوى باندي كسره او تنوين هم راتلاى سي، لېكن دا تنوين، تنوين تمكن نه وي، بلكه تنوين تقابل وي، چي منع نه دئ. او پر دوى باندي كسره راتلل پر خپل اصلي حالت باندي وي، هغه د دې قاعدې څخه مستثنى وي، عند البعض غير منصرف خو وي پر دوى باندي كسره راتلاى سي، لېكن تنوين نه سي پر راتلاى د غير انصراف وجه چي علميت و تانيث دي. لېكن صحيح مذهب دا دئ: چي دوى منصرف دي، او تاء محض علامه د تانيث نه ده، بلكه الف و تاء دواړه د جمع دپاره دي د غير انصراف دپاره چي كمه تاء علامه د تانيث جوړيږي هغه تاء محضه ده. (همع الهوامع صفحه ۱۲۶)

**فائده:**

په جمع مؤنث سالمه کي یو شرط دا دئ: چي الف و تاء به په دې کي زائد وي، احترازي مثال لکه: "اَبْيَاتٌ"، بروزن "اَفْعَالٌ".

او دا جمع عامه ده خواه که یې مفرد مذکر وي، لکه: "مَرْفُوْعَاتٌ" جمع د "مَرْفُوْعٌ" ده او که مؤنث وي، لکه: "مُسْلِمَاتٌ"، جمع د "مُسْلِمَةٌ" ده. خواه که دا جمع د مفرد نوم وي، لکه: "عَرَفَاتٌ". خواه که د مفرد حروف پکښي سالم وي او که نه وي.

**پنځم قسم غیر منصرف دئ:**

د غیر منصرف رفع په ضمه سره او نصب و جر دواړه یې په کسره سره دي. یعني اعراب بالحرکت[2] لفظي تبعي دئ، لکه: "جَائَنِيْ عُمَرُ، وَرَاَيْتُ عُمَرَ، وَمَرَرْتُ بِعُمَرَ".

**شپږم قسم اسماء سته مکبره دي:**

لکه: "اَبٌ، اَخٌ، حَمٌ، هَنٌ، فَمٌ، ذُوْمَالٍ" (۳) د اسماء سته مکبره دپاره څلور شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چي دوی به "مُوَحَّدْ" یعني مفرد به وي، تثنیه او جمع به نه وي که چیري تثنیه او جمع وه بیا یې اعراب د تثنیې او جمع مکسري دي. لکه: "جَائَنِيْ اَبَوَانِ وَرَاَيْتُ اَبَوَيْنِ وَمَرَرْتُ بِاَبَوَيْنِ". او د جمع مثال لکه: "جَائَنِيْ اَبَاءٌ، وَرَاَيْتُ آبَائًا وَمَرَرْتُ بِآبَاءٍ".

---

(۱) د جمع مؤنث سالمي اعراب بالحرکت دئ، ځکه په زور، زېر، پېښ، سره دئ، لفظي دئ، ځکه په لفظو کي ښکاره دئ، تبعي دئ، ځکه حالت نصبي یې تابع حالت جري لره دئ. (از مرتب عفي عنه)

(۲) د غیر منصرف اعراب بالحرکت دئ، ځکه په زور، زېر، پېښ سره دئ، لفظي دئ، ځکه په لفظو کي ښکاره دئ، تبعي دئ، ځکه حالت جري یې تابع حالت نصبي لره دئ. (از مرتب عفي عنه)

(۳) اَبٌ، اَخٌ، حَمٌ، هَنٌ، دا ټول په اصل کي "اَبَوٌ، اَخَوٌ، حَمَوٌ، هَنَوٌ" پر وزن د "فَعَلٌ" وه، بیا خلاف قانون واو په الف سره بدل سو، او الف و غورځېدئ. "ذُوْ" لفیف مقرون دئ، په اصل کي "ذَوِيٌ" وو، په دلیل د "ذَوِيَانِ اَوْ ذَوِيَاتٌ" سره. "فَمٌ" په اصل کي "فَوْهٌ" وو، په دلیل د "اَفْوَاهٌ" سره "لِاَنَّ التَّصَاغِيْرَ وَالتَّكَاسِيْرَ تَرُدَّانِ الشَّيْئَ اِلٰى اَصْلِهٖ" بیا "هَا" خلاف القیاس حذف سوه نو "فَوْ" سو او واو په غیر حالت اضافت کي په میم سره بدلیږي لکه: "فَمٌ" او په حالت د اضافت کي واپس راګرځي لکه: "فُوْكَ". بیا چي کم وخت د متکلم ته مضاف سي نو جمهور نحاة یې "فِيَّ" وایي: او بعضي حضرات یې "فَمِيْ" وایي. د جمهورو بصریینو مذهب دا دئ: چي اسماء سته مکبره معرب بالحرکت دي، د دوی اعراب لفظي دئ، لېکن امام سبویه او ابو علي فارسي وایي: چي د دوی اعراب بالحرکت تقدیري دئ. (همع الهوامع)

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي دوی به مکبره وي، مصغره به نه وي، که چيري مصغره وه بيا د دوی اعراب د مفرد منصرف صحيح والا اعراب دئ، لکه: "جَائَنِيْ اُخَيٌّ وَ رَاَیْتُ اُخَيًّا وَ مَرَرْتُ بِاُخَيٍّ".

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي دوی به مضاف وي، که چيري مضاف نه وه بيا د دوی اعراب د مفرد منصرف صحيح والا اعراب دئ، لکه "جَائَنِيْ اَبٌ، وَرَاَیْتُ اَبًا، وَ مَرَرْتُ بِاَبٍ".

۴. څلورم شرط يې دا دئ: چي دوی به و ياء د متکلم او معرف باللام ته مضاف نه وي، که چيري و ياء د متکلم ته مضاف وه نو بيا د دوی اعراب بالحرکت تقديري د "غُلَامِيْ" والا اعراب دئ. لکه: "جَائَنِيْ اَبِيْ، وَرَاَیْتُ اَبِيْ، وَ مَرَرْتُ بِاَبِيْ". او که چيري معرف باللام ته مضاف وه بيا هم د دوی اعراب تقديري بالحرف دئ لکه: "جَائَنِيْ اَبُو الْقَوْمِ، وَرَاَیْتُ اَبَا الْقَوْمِ، وَ مَرَرْتُ بِاَبِي الْقَوْمِ".

د اسماء سته مکبره اعراب:

رفع يې په واو سره ده: او نصب يې په الف سره دئ، او جر يې په ياء سره دئ. لکه: "جَائَنِيْ اَبُوْکَ وَ رَاَیْتُ اَبَاکَ وَ مَرَرْتُ بِاَبِیْکَ". يعني اعراب بالحرف لفظي غير تبعي دئ (۱).

## فائده:

لفظ د "ذُوْ" په معنٰی د "صاحب" سره دئ، او دَی همېشه مضاف وي و اسم جنس ته لکه: "ذُوْ مَالٍ" او کله مضاف و معرفه ته وي لکه: "ذُو الْحَالِ".

## شپږمه خبره:

اووم قسم تثنيه حقيقي ده:

تثنيه حقيقي هغه ده: چي د واحد څخه جوړه سوې وي، لکه: "رَجُلَانِ" د "رَجُلٌ" څخه.

اتم قسم تثنيه معنوي ده:

---

(۱) د اسماء سته مکبره اعراب بالحرف دئ، ځکه په واو، الف، ياء سره دئ، لفظي دئ، ځکه په لفظو کي ښکاره دئ، او غير تبعي دئ، ځکه يو حالت يې بل حالت لره تابع نه دئ. (از مرتب عفي عنه)

تثنیه معنوي هغه ده چي د تثنيې سره په معنٰی کي مشابهت لري لکه: "كِلَا وَ كِلْتَا" (۱).

**فائده:**

په "كِلَا وَ كِلْتَا" کي دا شرط دئ چي دوی به مضاف و ضمير ته وي (۲) که چيري دوی مضاف و اسم ظاهر ته وو، بيا د دوی اعراب تقديري اسم مقصور والا دئ، لکه: "جَاءَنِيْ كِلَا الرَّجُلَيْنِ، ورَاَيْتُ كِلَا الرَّجُلَيْنِ مَرَرْتُ بِكِلَا الرَّجُلَيْنِ".

نهم قسم تثنيه صوري ده:

تثنيه صوري چي صورةً د تثنيې سره مشابهت لري لکه: "اِثْنَانِ وَ اِثْنَتَانِ".

د دې درو قسمو اعراب: رفع يې په الف سره ده، او نصب او جريې دواړه په يا ماقبل مفتوح سره دئ. يعني اعراب بالحرف لفظي تبعي (۳) دئ. لکه: "جَاءَنِيْ رَجُلَانِ وَ كِلَاهُمَا وَ اِثْنَانِ وَ رَاَيْتُ رَجُلَيْنِ وَ كِلَيْهِمَا وَ اِثْنَيْنِ، وَ مَرَرْتُ بِرَجُلَيْنِ وَ كِلَيْهِمَا وَ اِثْنَيْنِ".

**اوومه خبره:**

لسم قسم جمع مذکر سالمه حقيقي ده:

جمع مذکر سالمه حقيقي چي د مفرد څخه جوړه سوې وي، لکه: "مُسْلِمُوْنَ" او "مُفْلِحُوْنَ" د "مُسْلِمٌ" او "مُفْلِحٌ" څخه.

(۱) "كِلَا" په اصل کي "كِلَوٌ" وو، واو په الف سره بدل سو، او تنوين حذف سو، د لازم الاضافت په وجه او "كِلْتَا" هم په اصل کي "كِلَوٌ" وو، واو يې په الف سره بدل کړئ او الف يې د تثنيې په آخر کي راوړئ. نو "كِلْتَا" سو تاء د تانيث راوړل سوه. (تنوير)

(۲) "كِلَا و كِلْتَا" به مضاف وي و ضمير ته که چيري دوی مضاف وي و اسم ظاهر ته بيا د دوی اعراب تقديري دئ، ځکه د دوی دوه حيثيته دي، د لفظ په اعتبار سره دوی مفرد دي، او د معنی په اعتبار سره دوی تثنيه دي، نو چي کله و اسم ظاهر ته مضاف سي نو دوی ته د مفرد منصرف والا اعراب ور کول کيږي. ځکه اسم ظاهر اصل دئ، او اعراب بالحرکت هم اصل دئ، او چي کله دوی مضاف وي، و ضمير ته نو و دوی ته د تثنيې والا اعراب ور کول کيږي ځکه تثنيه فرع ده او اعراب بالحرف هم فرع دئ، نو اصل يې و اصل ته ور کړئ او فرع يې و فرع ته ور کړه. (تنوير)

(۳) د دې درو قسمو اعراب بالحروف دئ، ځکه په الف و يا ء سره دئ، لفظي دئ، ځکه په لفظو کي ښکاره دئ، او تبعي دئ، ځکه حالت نصبي يې تابع حالت جري لره دئ. (از مرتب عفي عنه).

يوولسم قسم جمع مذكر سالمه معنوي ده:
جمع مذكر سالمه معنوي هغه ده چي د جمع سره په معنٰی كي مشابهت لري لكه: "أُولُوْ".
دوولسم قسم جمع مذكر سالمه صوري ده:
جمع مذكر سالمه صوري هغه ده چي د جمع سره صورة مشابهت لري لكه: "عِشْرُوْنَ" بيا تر "تِسْعُوْنَ" پوري. د دې درو قسمو اعراب رفع يې په واو ماقبل مضموم سره او نصب او جر يې دواړه په يا ماقبل مكسور سره دي. يعني اعراب بالحرف لفظي تبعي دئ (۱). لكه: "جَائَنِيْ مُسْلِمُوْنَ وَأُوْلُوْ مَالٍ وَعِشْرُوْنَ، وَرَأَيْتُ مُسْلِمِيْنَ وَأُوْلِيْ مَالٍ وَعِشْرِيْنَ. وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمِيْنَ وَأُوْلِيْ مَالٍ وَعِشْرِيْنَ".
ديارلسم قسم اسم مقصور دئ:
اسم مقصور هغه اسم دئ چي په آخر كي يې الف مقصوره وي، لكه: "مُوْسٰى، عِيْسٰى".
څوارلسم قسم غير د جمع مذكر سالم چي مضاف وي و ياء د متكلم ته:
يعني هغه اسم چي مضاف وي غير د جمع مذكر سالمي څخه لكه: "غُلَامِيْ، بَيْتِيْ. دَارِيْ". د دې دوو قسمو اعراب رفع په تقدير د ضمې سره نصب يې په تقدير د فتحې سره او جر يې په تقدير د كسرې سره يعني اعراب بالحركت تقديري غير تبعي (۲) دئ. لكه: "جَائَنِيْ مُوْسٰى وَغُلَامِيْ، وَرَأَيْتُ مُوْسٰى وَغُلَامِيْ وَمَرَرْتُ بِمُوْسٰى وَغُلَامِيْ".
پنځلسم قسم اسم منقوص دئ:
اسم منقوص هغه اسم دئ چي په آخر كي يې ياء ماقبل مكسور وي، لكه: "قَاضِيْ، دَاعِيْ، مُتَّقِيْ".

---

(۱) د دې درو قسمو اعراب بالحروف دئ، ځكه په واو و ياء سره دئ، او لفظي دئ، ځكه په لفظو كي ښكاره دئ، او تبعي دئ، ځكه حالت نصبي يې تابع حالت جري لره دئ. (از مرتب عفي عنه)
(۲) د دې دواړو قسمو اعراب بالحركت دئ، ځكه په زور، زېر، پېښ سره دئ، او تقديري دئ، ځكه په لفظو كي پټ دئ او غير تبعي دئ، ځكه يو حالت يې بل حالت لره تابع نه دئ. (از مرتب عفي عنه)

د اسم منقوص اعراب: رفع يې په تقدير د ضمې سره نصب يې په فتحه لفظي سره او جريې په تقدير د كسرې سره دئ، يعني اعراب بالحركت مشترك غير تبعي دئ [1]. لكه: "جَاءَنِيْ قَاضٍ، وَرَاَيْتُ قَاضِيَ، وَمَرَرْتُ بِقَاضٍ". او معرف باللام لكه: "جَاءَنِي الْقَاضِيْ، وَرَاَيْتُ الْقَاضِيَ وَمَرَرْتُ بِالْقَاضِيْ".

شپاړسم قسم جمع مذكر سالمه چي مضاف وي وياء د متكلم ته:

جمع مذكر سالمه چي كله مضاف وي وياء د متكلم ته رفع يې په تقدير د واو سره او نصب او جريې په ياء لفظي ماقبل مكسور سره يعني اعراب بالحرف مشترك تبعي دئ [2] لكه: "جَاءَنِيْ مُسْلِمِيَّ وَرَاَيْتُ مُسْلِمِيَّ وَمَرَرْتُ بِمُسْلِمِيَّ".

## فائده:

"مُسْلِمِيَّ" په اصل كي "مُسْلِمُوْنَ" وو، په اضافت كي نون حذف سو، "مُسْلِمُوْيَ" سو، بيا واو په ياء سره بدل سو، ياء په ياء كي مدغمه سوه "مُسْلِمِيَّ" سو، بيا ضمه د ماقبل په كسره سره بدله سوه د ياء د مناسبت په وجه "مُسْلِمِيَّ" سو.

## جملې:

| عنوان | جمله، [illegible] | مسند | مسند اليه | اسم غير متمكن | معرب، مبني | معرفه، نكره | مذكر، مؤنث | اعراب بالحركت، اعراب بالحرف | لفظي، تقديري مع الاقسام | تبعي، غير تبعي |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُوا الْأَلْبَابِ | خبريه فعليه | يَتَذَكَّرُ | أُولُوا الْأَلْبَابِ | ٠ | ٣... معرب، ٢. مبني | (أُولُوا الْأَلْبَابِ) معرفه | (أُولُوا الْأَلْبَابِ) مذكر | (أُولُوا) بالحرف (٥) حم، (الْأَلْبَابِ) بالحركت (١) حم | لفظي | (أُولُوا) تبعي، (الْأَلْبَابِ) غير تبعي |
| اَللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ | خبريه اسميه | وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ | اَللّٰهُ | هُوَ | ٣. معرب، ١. مبني | ٣. معرفه | ٣ مذكر | (اَللّٰهُ وَلِيُّ) بالحركت (١) حم، (الْمُؤْمِنِيْنَ) بالحرف (١٠) حم | لفظي | (اَللّٰهُ وَلِيُّ) غير تبعي (الْمُؤْمِنِيْنَ) [illegible] |
| قَالَ مُوْسٰى لِأَخِيْهِ | خبريه فعليه | قَالَ | مُوْسٰى | ٥ | ٢. معرب، ٣. مبني | ٣. معرفه | ٣ مذكر | (مُوْسٰى) بالحركت (١٣) حم، (أَخِيْ) بالحرف (١٣) حم | (مُوْسٰى) تقديري أَخِيْ لفظي | أَخِيْ [illegible] |

---

[1] د اسم منقوص اعراب بالحركت دئ، ځكه په زور، زېر، پېښ سره دئ، او مشترك دئ ځكه ذی د لفظي او تقديري په مينځ كي اشتراك لري غير تبعي دئ، ځكه يو حالت يې بل حالت لره تابع نه دئ. (از مرتب عفي عنه)

[2] جمع مذكر سالمه چي مضاف سي وياء د متكلم ته نو د دې اعراب بالحروف دئ، ځكه په واو او ياء سره دئ، او مشترك دئ، ځكه د لفظي او تقديري په مينځ كي اشتراك لري او تبعي دئ، ځكه حالت نصبي يې تابع حالت جري لره دئ. (از مرتب عفي عنه)

| عنوان | جملہ خبریہ، انشائیہ | مسند | مسند الیہ | اسم ضمیر | معرب، مبنی | معرفہ، نکرہ | مذکر، مؤنث | اعراب بالحرکت، اعراب بالحرف | لفظی، تقدیری مع الاقسام | سماعی، غیر سماعی |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِسْمُهُ يَخْفٰى | خبریہ، اسمیہ | يَخْفٰى | إِسْمُهُ | هُ | ۲۔ معرب، ۱۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۳۔ مذکر | (إِسْمُهُ (۱) قسم و يَخْفٰى) بالحرکت (۱۳) قسم | (يَخْفٰى) تقدیری (إِسْمُهُ) لفظی | غیر سماعی |
| هٰذَا كِتَابِيْ | خبریہ، اسمیہ | كِتَابِيْ | هٰذَا | هٰذَا، يْ | ۱۔ معرب، ۲۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۳۔ مذکر | (كِتَابِيْ) بالحرکت (۱۳) قسم | تقدیری | غیر سماعی |
| أُذْكُرُوْا نِعْمَتِيْ | انشائیہ، طلبیہ | أُذْكُرُوْا | أَنْتُمْ | أَنْتُمْ، يْ | ۱۔ معرب ۳۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۲۔ مذکر ۱۔ مؤنث | (نِعْمَتِيْ) بالحرکت (۱۳) قسم | تقدیری | غیر سماعی |
| أُولٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ | خبریہ، اسمیہ | هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ | أُولٰئِكَ | أُولٰئِكَ، هُمْ تاکید | ۱۔ معرب ۲۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۳۔ مذکر | (الْمُفْلِحُوْنَ) بالحرف (۱۰) قسم | لفظی | سماعی |
| وَلَا تُطِعِ الْكَافِرِيْنَ | انشائیہ، طلبیہ | لَا تُطِعْ | أَنْتَ | أَنْتَ | ۲۔ معرب، ۲۔ مبنی | ۲۔ معرفہ | ۲۔ مذکر | (اَلْكَافِرِيْنَ) بالحرف (۱۰) قسم | لفظی | سماعی |
| هُمْ أُولُوْ عَقْلٍ | خبریہ، اسمیہ | أُولُوْ عَقْلٍ | هُمْ | هُمْ | ۲۔ معرب ۱۔ مبنی | ۲۔ معرفہ، ۱۔ نکرہ | ۳۔ مذکر | (أُولُوْ) بالحرف (۱۱)، (عَقْلٍ) بالحرکت (۱) قسم | لفظی | (أُولُوْ) سماعی، (عَقْلٍ) غیر سماعی |
| اَللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ | خبریہ، اسمیہ | يُحِبُّ | اَللّٰهُ | هُوَ | ۳۔ معرب، ۱۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۳۔ مذکر | (اَللّٰهُ) بالحرکت (۱) قسم، (اَلْمُحْسِنِيْنَ) بالحرف (۱۰) قسم | لفظی | (اللّٰهُ) غیر سماعی (اَلْمُحْسِنِيْنَ) سماعی |
| بَلَغَ الْعُلٰى بِكَمَالِهٖ | خبریہ، فعلیہ | بَلَغَ | هُوَ | هُوَ، هٖ | ۲۔ معرب، ۳۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۳۔ مذکر ۱۔ مؤنث | بالحرکت | (اَلْعُلٰى) تقدیری (۱۳)، (كَمَالِ) لفظی (۱) قسم | غیر سماعی |
| كَشَفَ الدُّجٰى بِجَمَالِهٖ | خبریہ، فعلیہ | كَشَفَ | هُوَ | هُوَ، هٖ | ۲۔ معرب، ۳۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۳۔ مذکر ۱۔ مؤنث | بالحرکت | (اَلدُّجٰى) تقدیری (۱۳) قسم (جَمَالِ) لفظی (۱) | غیر سماعی |
| وَلَا تَتَّبِعْ سَبِيْلَ الْمُفْسِدِيْنَ | انشائیہ، طلبیہ | لَا تَتَّبِعْ | أَنْتَ | أَنْتَ | ۲۔ معرب، ۳۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۳۔ مذکر | (سَبِيْلَ) بالحرکت (۱) قسم، (مُفْسِدِيْنَ) بالحرف (۱۰) قسم | لفظی | (سَبِيْلَ) غیر سماعی (مُفْسِدِيْنَ) سماعی |
| فَادْخُلِيْ فِيْ جِنَانِيْ | انشائیہ، طلبیہ | أُدْخُلِيْ | أَنْتِ | أَنْتِ، يَا | ۱۔ معرب ۵۔ مبنی | ۳۔ معرفہ | ۲۔ مذکر ۱۔ مؤنث | (جِنَانِ) بالحرکت (۱۳) قسم | تقدیری | غیر سماعی |
| اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | خبریہ، اسمیہ | زِيْنَةُ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا | اَلْمَالُ وَالْبَنُوْنَ | ۔ | ۵۔ معرب، ۱۔ مبنی | ۵۔ معرفہ | ۲۔ مذکر ۳۔ مؤنث | (اَلْبَنُوْنَ) بالحرف (۱۰) قسم باقی بالحرکت (۱) اور (۱۳) | لفظی و تقدیری (اَلدُّنْيَا) تقدیری | (اَلْبَنُوْنَ) سماعی، باقی غیر سماعی |
| بَشِّرِ الصَّابِرِيْنَ | انشائیہ، طلبیہ | بَشِّرْ | أَنْتَ | أَنْتَ | ۱۔ معرب، ۲۔ مبنی | ۲۔ معرفہ | ۲۔ مذکر | (اَلصَّابِرِيْنَ) بالحرف (۱۰) قسم | لفظی | سماعی |

| عنوان | خبریه، انشائیه، اقسام | مسند | مسندالیه | اسم غیر متمکن | معرب، مبني | معرفه، نکره | مذکر، مؤنث | اعراب بالحرکت، اعراب بالحرف | لفظي، تقدیري مع الاقسام | نحوي ترکیب |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاذْكُرْ فِي الْكِتَابِ إِبْرَاهِيمَ | انشائیه، فعلیه | اُذْكُرْ | اَنْتَ | اَنْتَ | ۲. معرب ۳. مبني | ۳. معرفه | ۳. مذکر | (اَلْكِتَابِ) (۱) قسم (إِبْرَاهِيمَ) بالحرکت (۵) قسم | لفظي | نحوي ترکیب |
| وَعَلَّمَ آدَمَ الْأَسْمَاءَ | خبریه، فعلیه | عَلَّمَ | هُوَ | هُوَ | ۲. معرب ۳. مبني | ۳. معرفه | ۳. مذکر | بالحرکت (۵) (۳) | لفظي | نحوي ترکیب |

# التمرين:

"إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ،، يَا يَحْيَى خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ،، أَنَا يُوسُفُ وَهَذَا أَخِي،، فَاخْلَعْ نَعْلَيْكَ،، فِيهِمَا عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ،، أَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ،، وَ وَاعَدْنَا مُوسَى أَرْبَعِينَ لَيْلَةً،، فَاقْضِ مَا أَنْتَ قَاضٍ،، فَقَدْ جَاءَ أَشْرَاطُهَا،، كِلْتَا الْجَنَّتَيْنِ آتَتْ أُكُلَهَا،، وَأَبُونَا شَيْخٌ كَبِيرٌ".

فصل بدانکه اعراب مضارع سه است رفع، ونصب، وجزم فعل مضارع باعتبار وجوه اعراب الخ:... الی قوله باب اول در حروف عامله.

## ترجمه:

پوه سه! چي اعراب د مضارع درې دي: رفع، نصب، جزم، فعل مضارع په اعتبار د اعراب سره پر څلور قسمه ده:

اول صحيح، چي د ضمائرو بارزو مرفوعه (چي د تثنيې او جمع مذكر او واحد مؤنثي دپاره وي) د هغه څخه خالي وي، نو په دې وخت کي د ذوى رفع، په ضمه سره ده، نصب يې په فتحه سره دئ او جزم يې په سکون سره دئ. لکه: "هُوَ يَضْرِبُ. لَنْ يَضْرِبَ. لَمْ يَضْرِبْ".

دوهم: فعل مضارع مفرده که معتل واوي لکه: "يَغْزُوْ" او که يايي وي، لکه: "يَرْمِيْ". رفع يې په تقدير د ضمې سره نصب يې په فتحه لفظي سره، او جزم يې په حذف د لام سره دئ. لکه: "هُوَ يَغْزُوْ وَ يَرْمِيْ. لَنْ يَغْزُوَ لَنْ يَرْمِيَ. لَمْ يَغْزُ وَلَمْ يَرْمِ".

دريم مفرد متعل الفي: لکه "يَرْضَى" رفع يې په تقدير د ضمې سره ده، نصب يې په تقدير د فتحې سره او جزم يې په حذف د لام سره دئ. لکه: "هُوَ يَرْضَى، وَلَنْ يَرْضَى، وَلَمْ يَرْضَ".

څلورم صحيح وي او که معتل د ضمائرو مذکورو سره يعني چي نون د تثنيې او د جمع مذکر او د واحد مؤنث ور سره وي، نو بيا د دوی رفع په اثبات د نون سره ده، لکه: په تثنيه کي، "هُمَا يَضْرِبَانِ، يَغْزُوَانِ، يَرْمِيَانِ، يَرْضَيَانِ". او په جمع مذکر کي "هُمْ يَضْرِبُوْنَ، وَيَغْزُوْنَ، وَيَرْمُوْنَ، وَيَرْضَوْنَ". او په واحد مؤنث حاضر کي، لکه: "أَنْتِ تَضْرِبِيْنَ، وَتَغْزِيْنَ، وَتَرْمِيْنَ، وَتَرْضَيْنَ".

او نصب و جزم يې په حذف د نون سره دي، لکه: په تثنيه کي "لَنْ يَضْرِبَا، لَنْ يَغْزُوَا، لَنْ يَرْمِيَا، لَنْ يَرْضَيَا". او په حالت جزمي کي "لَمْ يَضْرِبَا، لَمْ يَغْزُوَا، لَمْ يَرْمِيَا، لَمْ يَرْضَيَا" او په جمع مذکر کي "لَنْ يَضْرِبُوْا، لَنْ يَغْزُوْا، لَنْ يَرْمُوْا، لَنْ يَرْضَوْا". او "لَمْ يَضْرِبُوْا، لَمْ يَغْزُوْا لَمْ يَرْمُوْا، لَمْ يَرْضَوْا" او په واحد مؤنث حاضر کي لکه: "لَنْ تَضْرِبِيْ، لَنْ تَغْزِيْ، لَنْ تَرْمِيْ، لَنْ تَرْضَيْ. لَمْ تَضْرِبِيْ، لَمْ تَغْزِيْ، لَمْ تَرْمِيْ، لَمْ تَرْضَيْ".

## الدرس التاسع عشر:

د نن سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د فعل مضارع اعراب (۱):

اعراب د مضارع درې (۳) دي. رفع، نصب، جزم.

په فعل مضارع کي رفع په دوو طريقو سره راځي:

۱. رفع کله په ضمه سره راځي لکه: "هُوَ يَضْرِبُ".

(۱) د فعل مضارع ټولي څوارلس صيغې دي: چي په هغه کي دوې مبني دي، جمع مؤنث غائبات لکه: "يَفْعِلْنَ"، جمع مؤنث مخاطبات لکه: "تَفْعِلْنَ". دوولس صيغې پاته سوې په دغه دوولس صيغو کي اووه صيغې د ضمير بارز سره دي، څلور د تثنيې صيغې دي، لکه: "يَفْعِلَانِ، تَفْعِلَانِ، تَفْعِلَانِ، تَفْعِلَانِ". او دوې د جمع مذکر صيغې دي، لکه: "يَفْعِلُوْنَ، تَفْعِلُوْنَ"، او يوه د واحد مؤنثي مخاطبي صيغه ده: لکه: "تَفْعِلِيْنَ". د دغه مذکوره صيغو اعراب په څلور قسمه کي بيانيږي. او صرف پنځه صيغې پاته کيږي چي "يَفْعِلُ، تَفْعِلُ، تَفْعِلُ، أَفْعِلُ، نَفْعِلُ" دي. او د دغه صيغو اعراب بيا په اولو درو قسمو کي بيانيږي. (العلامات النحوية)

۲. او کله په اثبات د نون سره راځي لکه: "هُمَا يَضْرِبَانِ".

او نصب هم په دوو (۲) طريقو سره راځي:

۱. کله په فتحه سره راځي لکه: "لَنْ يَضْرِبَ".

۲. او کله په حذف د نون سره راځي لکه: "لَنْ يَضْرِبَا".

او جزم په درو (۳) طريقو سره راځي:

۱. کله په حذف د حرکت سره راځي لکه: "لَمْ يَضْرِبْ".

۲. کله په حذف د نون سره راځي لکه: "لَمْ يَضْرِبَا".

۳. او کله په حذف د حرف علت سره راځي لکه: "لَمْ يَغْزُ، لَمْ يَرْمِ".

## دوهمه خبره:

افعال په نزد د صرفيينو خو ډېر دي. لېکن په نزد د نحويينو درې (۳) دي:

۱. فعل ماضي.

۲. امر ([1]).

۳. فعل مضارع.

فعل ماضي او امر حاضر خو مبني دي او فعل مضارع د نون د جمع مؤنث سره هم مبني ده چې هغه دوې (۲) صيغې دي:

۱. "يَضْرِبْنَ".

۲. "تَضْرِبْنَ" او هغه نورې دولس (۱۲) صيغې د مضارع معربې دي.

د فعل مضارع د اعراب اقسام:

اعراب د فعل مضارع پر دوه (۲) قسمه دئ:

---

([1]) په فعل امر کي اختلاف دئ عند البعض دی معرب دي، ځکه پر مضارع باندي چي کله لام داخل سي نو بيا امر ځيني جوړېږي لکه: "لِتَضْرِبْ" او لکه: څنګه چي "لَمْ يَضْرِبْ" معرب دئ، داغه رنګه "لِتَضْرِبْ" هم معرب دئ، بيا تخفيفا "لام و تاء" حذف سول د ابتداء بالسكون څخه د بچاوېدو د پاره يې همزه وصلي راوړئ "اِضْرِبْ" جوړ سو. نو د "اِضْرِبْ" سکون د لام جازم عامل د عمل نتيجه ده، نو ځکه د دې قول پر بنياد باندي د فعل مضارع صرف دوه قسمونه جوړېږي چي په هغو کي يو دغه امر دئ او عند البعض امر مبني دئ، پر علامه د جزم باندي او دی خپل ځان لره جلا مستقل قسم دئ.

۱. بالحرکت.

۲. بالحرف.

د اعراب بالحرکت اقسام:

بالحرکت بیا پر دوه (۲) قسمه دئ:

۱. لفظي.

۲. تقدیري.

د اعراب تقدیري اقسام:

تقدیري بیا پر دوه (۲) قسمه دئ.

۱. "فِيْ حَالَةٍ وَاحِدَةٍ" یعني کله په یو حالت کي تقدیري وي.

۲. "فِيْ حَالَتَيْنِ" او کله په دوه حالته کي تقدیري وي.

## دریمه خبره:

د فعل مضارع اقسام په اعتبار د اعراب سره (1):

فعل مضارع په اعتبار د اعراب سره پر څلور قسمه ده:

## فائده:

دلته په اولو درو قسمو کي صرف د مضارع د پنځو صیغو اعراب بیانیږي؛ (۱) واحد مذکر غائب لکه: "يَفْعِلُ". (۲) واحده مؤنثه غائبه لکه: "تَفْعِلُ" (۳) واحد مذکر مخاطب لکه: "تَفْعِلُ" (۴) واحد متکلم لکه: "اَفْعِلُ" (۵) جمع متکلم لکه: "نَفْعِلُ"..

که چیري صحیح وي، اول قسم اعراب یې دئ، که معتل واوي یا یایي وي، دوهم قسم اعراب یې دئ او که معتل الفي وي، دریم قسم اعراب یې دئ، او که چیري د دغه پنځو صیغو څخه علاوه د

---

(1) د فعل مضارع د معرب والي وجه دا ده: چي دا د اسم فاعل سره چي معرب دئ، لفظا او معنا دواړه قسمه مشابهت لري لفظي مشابهت یې په تعداد د حروفو کي او په حرکاتو و سکناتو کي سره موافقت دئ، لکه: "يَضْرِبُ" بروزن "ضَارِبٌ".
او معنوي مشابهت یې دا دئ: چي فعل مضارع د اسم فاعل په شان په حال او استقبال کي مشترکه ده لکه: "يَضْرِبُ" یعني (هغه یو سړی به اوس یا پس د دې وهل و کړي) او د "ضَارِبٌ" معنی (هغه یو سړی وهونکی دئ نن یا سبا). (نصر الخبیر)

تثنيې، و د جمع او د واحد مؤنث مخاطبِ صيغې وي او نون ور سره وو، خواه که صحيح وي، او که معتل، څلورم قسم اعراب يې دئ.

۱. اول قسم مفرد صحيح چي خالي وي د ضمائرو بارزه وو څخه کم چي د تثنيې او جمع مذکر او د واحده مؤنثه مخاطبه دپاره وي، رفع يې په ضمه لفظي سره ده نصب يې په فتحه لفظي سره دئ، او جزم يې په سکون د لام کلمې سره دئ. يعني اعراب بالحرکت لفظي غير تبعي دئ. لکه: "هُوَ يَضرِبُ. لَن يَّضرِبَ. لَمْ يَضرِبْ".

۲. دوهم قسم مفرد ناقص واوي يا يايي وي لکه "يَغزُوْ وَيَرْمِيْ" رفع يې په تقدير د ضمې سره ده او نصب يې په فتحه لفظي سره دئ، او جزم يې په حذف د لام کلمې سره دئ. يعني اعراب بالحرکت مشترک غير تبعي دئ، لکه: "هُوَ يَغزُوْ وَيَرْمِيْ، لَنْ يَّغزُوَ، وَلَنْ يَّرْمِيَ. لَمْ يَغزُ، وَلَمْ يَرْمِ".

## څلورمه خبره:

دريم قسم:

معتل الفي دئ، رفع يې په تقدير د ضمې سره نصب يې په تقدير د فتحې سره او جزم يې په حذف د لام کلمې سره دئ. يعني اعراب بالحرکت تقديري غير تبعي دئ لکه: "هُوَ يَرْضٰى، لَنْ يَّرْضٰى، لَمْ يَرْضَ".

څلورم قسم:

فعل مضارع صحيح وي او که معتل: ليکن نونات د تثنيې او د جمع او واحده مؤنثه مخاطبه ور سره وي، د دغه قسم اعراب رفع يې په اثبات د نون سره ده او نصب او جزم يې په حذف د نون سره دئ. د حالت رفعي مثال چي کله تثنيه وي، "هُمَا يَرْضَيَانِ، يَغْزُوَانِ، يَرْمِيَانِ". چي کله جمع مذکر وي، لکه: "هُمْ يَضرِبُوْنَ، وَيَغْزُوْنَ ، وَيَرْمُوْنَ، وَيَرْضَوْنَ" چي کله واحد مؤنث وي، ليکه: "اَنْتِ تَضرِبِيْنَ، وَتَغزِيْنَ، وَتَرْمِيْنَ، وَتَرْضَيْنَ". د حالت نصبي او جزمي مثال چي کله تثنيه وي، لکه: "لَنْ يَّضرِبَا، لَنْ يَّغزُوَا، لَنْ يَّرْمِيَا، لَنْ يَّرْضَيَا، لَمْ يَضرِبَا، لَمْ يَغْزُوَا، لَمْ يَرْمِيَا، لَمْ يَرْضَيَا". "وَقِسْ عَلَيْهِ الْجَمْعَ وَالْمُؤَنَّثَةَ الْمُخَاطَبَةَ".

## پنځمه خبره:

د عامل لغوي او اصطلاحي تعریف:

عامل په لغت کي مؤثر ته وایي: او په اصطلاح کي "مَا اَوْجَبَ كَوْنَ آخِرِ الْكَلِمَةِ عَلٰى وَجْهٍ مَخْصُوْصٍ مِنْ رَفْعٍ اَوْ نَصْبٍ اَوْ جَرٍّ اَوْ جَزْمٍ". عامل هغه دئ چي د یو مخصوص وجي پر بنیاد باندي د کلمې آخر مرفوع، منصوب، مجرور، او یا مجزوم کرځوي.

## د عوامل تعداد:

عوامل د نحو ټول سل (۱۰۰) دانې دي:

د عامل اقسام:

عامل پر دوه قسمه دئ:

۱. لفظي.
۲. معنوي.

د عامل لفظي تعریف:

"مَا يُعْرَفُ بِالْقَلْبِ وَيَتَلَفَّظُ بِهٖ" چي په ده سره تلفظ کیږي.

## د عوامل لفظیه وو تعداد:

عوامل لفظیه اته نیوي (۹۸) دانې دي.

د عامل معنوي تعریف:

"مَا يُعْرَفُ بِالْقَلْبِ وَلَايَتَلَفَّظُ بِهٖ". چي په ده سره تلفظ نه کیږي.

## د عوامل معنویه وو تعداد:

عوامل معنویه دوه (۲) دانې دي.

د عامل لفظي تقسیمات:

د عامل لفظي اول تقسیم:

عامل لفظي د سماع او قیاس په اعتبار سره پر دوه قسمه دي:

۱. عامل لفظي قیاسي.

۲. عامل لفظي سماعي.

د عامل لفظي قياسي تعريف:

"مَا لَا يُمْكِنُ تَعْيِيْنُهُ اِلَّا بِمَفْهُوْمٍ كُلِّيٍّ لِتَعَذُّرِ ضَبْطِ جُزْئِيَّاتِهٖ" چي د ده دپاره يو مفهوم كلي (قانون) وضع سوی وي، ځکه د ده د جزئياتو حصر او ضبط بغير د قانونه ممكن نه وي.

## د عوامل لفظيه قياسي تعداد:

عوامل لفظيه قياسي اووه (۷) دانې دي. (۱) فعل مطلقًا. (۲) مصدر. (۳) اسم فاعل. (۴) اسم مفعول. (۵) صفت مشبه. (٦) اسم مضاف. (۷) اسم تام.

د عامل لفظي سماعي تعريف:

"مَا يُمْكِنُ ضَبْطُهُ بِالْجُزْئِيَّاتِ" چي دی د جزئياتو په ذريعه تر ضبط لاندي را وستل ممكن وي.

## د عوامل لفظيه سماعي تعداد:

عوامل لفظيه سماعي يو نيوي (۹۱) دانې دي چي پر ديارلس نوعي باندي مشتمل دي: (۱) حروف جاره اوولس (۱۷) دي. (۲) حروف مشبه بالفعل شپږ (٦) دانې دي. (۳) ما و لا مشبهتان بليس. (۴) حروف نداء اووه (۷) دانې دي. (۵) حروف نواصب څلور (۴) دانې دي. (٦) حروف جوازم پنځه (۵) دانې دي. (۷) اسماء جوازم نه (۹) دانې دي. (۸) اسماء كنايات و اسماء عدد هغه څلور (۴) دي. (۹) اسماء افعال هغه نه (۹) دانې دي. (۱۰) افعال ناقصه ديارلس (۱۳) دانې دي. (۱۱) افعال مقاربه څلور (۴) دانې دي. (۱۲) افعال قلوب اووه (۷) دانې دي. (۱۳) افعال مد و ذم څلور دانې دي.

## شپږمه خبره:

د عامل معنوي اقسام:

عامل معنوي پر دوه قسمه دئ:

۱. ابتداء: چي په مبتداء او خبر كي عامله ده عند الاكثر لكه: "زَيْدٌ قَائِمٌ".
۲. خلو: چي په فعل مضارع كي عامله ده كم وخت چي فعل مضارع د نواصبو او جوازمو څخه خالي وي، لكه: "يَضْرِبُ".

د عواملو تعداد:

عوامل ټوله سل دي: دوه معنوي دي، اول ابتداء دوهم خلوَ، اته نيوي (۹۸) لفظي دي، بيا لفظي پر درې قسمه دي (۱): حروف عامله (۲) افعال عامله (۳) اسماء عامله (۴).

## اوومه خبره:

د عواملِ لفظي تقسيم:

عامل لفظي پر درې قسمه دئ:

۱. حروف عامله.

۲. افعال عامله.

---

(۱) يوه وجه د حصر يې دا ده چې عامل به مستقل الدلالة وي يا به نه وي، كه چيري مستقل الدلالة وو، بيا به د دوو حالتو څخه خالي نه وي، يا به پر زمانه دلالت كوي او يا به يې نه كوي، كه يې چيري دلالت پر زمانه كوئ هغه افعال عامله دي، كه يې چيري پر زمانه دلالت نه كوي، هغه اسماء عامله دي، او كه چيري غير مستقل الدلالة وو هغه حروف عامله دي.

دوهمه وجه د حصر: عامل به يا بالذات وي، يا به باالواسطه وي، كه چيري باالواسطه وو، هغه اسماء عامله دي، كه چيري بالذات وو، بيا به يا عامل ضعيف وي، او يا به عامل قوي وي، كه چيري عامل قوي وو، هغه افعال عامله دي، او كه چيري عامل ضعيف وو هغه حروف عامله دي.

(۲) حرف كه څه هم بالذات عمل كوي لېكن د معنى په اعتبار چونكه دى غير مستقل دئ نو ځكه عامل ضعيف دئ او كله كله د يو عارض په وجه دى ملغى عن العمل جوړېږي نو مصنف رحمة الله عليه په آخر كي مستقل يو فصل د حروف غير عامله وو منعقد كړى دئ.

(۳) فعل چونكه عامل بالذات دئ، او قوي هم دئ ځكه په دنيا كي يو فعل هم غير عامل نسته سوا د يو څو افعالو څخه بلكه خامخايو عمل ضرور كوي نو ځكه مصنف رحمة الله عليه د عواملو لفظيو بيان پر درو بابو تقسيم كړى دئ.

(۴) اسم پر درې قسمه دئ: (۱) اسم جامد. (۲) اسم مشتق (۳) اسم مصدر. اسم جامد هيڅ كله عمل نه كوي دى همېشه بې عمله وي: اسم مشتق او اسم مصدر دواړه عاملان دي لېكن بالذات عمل نه كوي ځكه كه چيري اسم بالذات عمل كولاى سواى نو هر اسم به عامل واى حتى اسم جامد به تر ټولو مخكي عامل واى حالانكه اسم جامد عمل نه سي كولاى نو ځكه د اسم مشتق او مصدر عمل بالذات نه وي، بلكه د فعل سره د مشابهت په وجه دوى عمل كوي د اسم مشتق د فعل سره مشابهت په دوه جهته دئ يو خو د فعل سره په وزن كي مشابهت دئ او بل په معنى كي او د مصدر د فعل سره مشابهت په يو جهت سره دئ هغه په معنى كي مشابهت دئ نه په وزن كي چونكه د اسم مشتق د مشابهت جهت قوي دئ تر مصدر، نو ځكه مشتقات په عمل كي ترمصدر قوي دي، او په "غُلَامُ زَيْدٍ" كي "غُلَامُ" اسم جامد، په "زَيْدٌ" كي ځكه عامل نه دئ چي دلته حرف جر مقدر دئ، په اصل كي "غُلَامٌ لِزَيْدٍ" وو، لېكن دلته مضاف ته مجازا عامل ويل سوي دي ځكه دى د دغه حرف جر قائم مقام دئ لېكن دى اسم جامد دئ په هيڅ حال كي عمل نه سي كولاى. (تنوير)

۳. اسماء عامله.

حروف عامله پر دوه قسمه دي:

۱. عامله در اسم.

۲. عامله در فعل.

بيا عامله در اسم پر اوه قسمه دي: (۱) حروف جاره، هغه اوولس (۱۷) دي: (۲) حروف مشبه بالفعل هغه شپږ (٦) دي. (۳) ما و لا مشبهتان بليس (۴) لاءِ نفي جنس (۵) حروف نداء هغه پنځه (۵) دي: دوه غير مشهور دي: (٦) "إِلَّا" حرف استثنى (۷) واو په معنٰى د "مَعَ" سره.

او عامله در فعل پر دوه قسمه دي: (۱) حروف ناصبه هغه څلور(۴) دي: (۲) حروف جازمه هغه پنځه (۵) دي.

افعال عامله پر شپږ قسمه دي:

۱. فعل معروف: او دده اووه معمولات دي: (۱) فاعل، (۲) مفعول مطلق. (۳) مفعول فيه. (۴) مفعول معه. (۵) مفعول له. (٦) حال. (۷) تميز.

۲. فعل مجهول.

۳. افعال ناقصه.

۴. افعال مقاربه.

۵. افعال مدح و ذم.

٦. فعل تعجب.

اسماء عامله پر يوولس قسمه دي:

۱. اسماء شرطيه.

۲. اسماء افعال په معنٰى د فعل ماضي سره.

۳. اسماء افعال په معنٰى د امر حاضر سره.

۴. اسم فاعل.

۵. اسم مفعول.

٦. صفت مشبه.

۷. اسم تفضيل.

۸. مصدر.

۹. اسم مضاف.

۱۰. اسم تام.

۱۱. اسماء کنایات.

## جملے:

| عنوان | خبر، انشاء مع اقسام | مسند | مسند الیہ | اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی، تقدیری | منصرف، غیر منصرف | اعراب مضارع | حروف عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَدَبُ الْمُؤْمِنِ خَيْرٌ مِّنْ نَّسَبِهٖ | خبریہ اسمیہ | خَيْرٌ مِّنْ نَّسَبِهٖ | أَدَبُ الْمُؤْمِنِ | ۲. هُوَ، ہٖ | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (مِنْ) جارہ |
| تَاللّٰهِ لَأَكِيْدَنَّ أَصْنَامَكُمْ | انشائیہ فعلیہ | أُقْسِمُ | أَنَا | أَنَا، أَنَا، كُمْ | ۳. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱، ۳) قسم | (أُكِيْدُ) حالت رفعی (۱) | ۱. (تَا) جارہ |
| اَلْاِنْسَانُ يَعْلَمُ مِنَ اللِّسَانِ | خبریہ اسمیہ | يَعْلَمُ | اَلْاِنْسَانُ | هُوَ | ۳. معرب | ۲. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | (يَعْلَمُ) حالت رفعی (۱) | ۱. (مِنْ) جارہ |
| لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ | خبریہ اسمیہ | (لَهٗ) باعتبار متعلق | مَا فِي السَّمٰوٰتِ الخ | هُوَ، ہٗ، مَا | ۳.. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت | لفظی | (اَلسَّمٰوٰتِ) (۳) منصرف (۱) غیر منصرف | + | ۲. (لَام) جارہ، (فِيْ) جارہ |
| نُوْرُ الْمُؤْمِنِ يَعْلَمُ مِنْ قِيَامِ اللَّيْلِ | خبریہ اسمیہ | يَعْلَمُ | نُوْرُ الْمُؤْمِنِ | هُوَ | ۵. معرب | ۲. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | (يَعْلَمُ) حالت رفعی (۱) | ۱. (مِنْ) جارہ |
| يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ أَفْوَاجًا | خبریہ فعلیہ | يَدْخُلُوْنَ | هُمْ | هُمْ | ۳. معرب | ۲. مبنی | (يَدْخُلُوْنَ) بالحرف، باقی بالحرکت | لفظی | منصرف غیر منصرف (۱) قسم | (يَدْخُلُوْنَ) حالت رفعی (۳) | ۱. (فِيْ) جارہ |
| أَنْزَلْنَاهُ فِيْ لَيْلَةِ الْقَدْرِ | خبریہ فعلیہ | أَنْزَلَ | نَا | نَا، ہٗ | ۲. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (فِيْ) جارہ |
| مَا رَأَيْتُهٗ مُذْ يَوْمِ الْجُمُعَةِ | خبریہ فعلیہ | رَأَى | تُ | تُ، ہٗ | ۲. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (مُذْ) جارہ |
| فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ | خبریہ فعلیہ | فَضَّلَ | نَا | نَا، هُمْ | ۲. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (عَلٰى) جارہ |
| إِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ | خبریہ اسمیہ | سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ | اَللّٰهُ | هُوَ، هُوَ | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (إِنَّ) مشبہ بالفعل |
| إِنَّهٗ عَلِيٌّ حَكِيْمٌ | خبریہ اسمیہ | عَلِيٌّ حَكِيْمٌ | ہٗ | هُوَ، هُوَ، ہٗ | ۲. معرب | ۴. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (إِنَّ) مشبہ بالفعل |
| اِعْلَمُوْا أَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ | انشائیہ فعلیہ | اِعْلَمُوْا | أَنْتُمْ | أَنْتُمْ، هُوَ | ۳. معرب | ۴. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (أَنَّ) مشبہ بالفعل |
| مَا هٰذَا قَوْلُ الْبَشَرِ | خبریہ اسمیہ | قَوْلُ الْبَشَرِ | هٰذَا | هٰذَا | ۲. معرب | ۲. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف (۱) قسم | + | ۱. (مَا) المشبہ بلیس |

| عنوان | جمله مع علائم | مسند | مسند اليه | اسم غير متمكن | معرب | مبني | بالحركت، بالحرف | لفظي، تقديري | تمي، غير تمي | اعراب مضارع | حروف عامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا هُمْ بِخَارِجِيْنَ مِنَ النَّارِ | خبريه اسميه | بِخَارِجِيْنَ مِنَ النَّارِ | هُمْ | هُمْ، هُمْ | ۲. معرب | ۲. مبني | ۱. بالحرف ۱. بالحركت | لفظي | (بِخَارِجِيْنَ) تمي (۱۰) (النَّارِ) غير تمي | + | ۲. (مَا) المشبه بليس، (مِنْ) جاره |
| مَا أَنْتَ بِمُؤْمِنٍ لَنَا | خبريه اسميه | بِمُؤْمِنٍ لَنَا | أَنْتَ | أَنْتَ، نَا | ۱. معرب | ۵. مبني | (مُؤْمِنٍ) بالحركت | لفظي | غير تمي (۱) حم | + | ۲. (مَا) المشبه بليس، (بَا) جاره، (اللام) جاره |
| يَهْدِيْ مَنْ يَشَاءُ | خبريه فعليه | يَهْدِيْ | هُوَ | ۲. هُوَ، هُوَ، مَنْ | ۲. معرب | ۳. مبني | + | + | + | (يَهْدِيْ) رفعي (۲) (يَشَاءُ) رفعي (۱) حم | + |
| وَلَا تَدْعُ مِنْ دُوْنِ اللهِ | انشائيه فعليه | لَا تَدْعُ | أَنْتَ | أَنْتَ، دُوْنَ | ۲. معرب | ۲. مبني | (دُوْنِ) بالحركت | لفظي | غير تمي (۱) حم | (لَا تَدْعُ) جزمي (۲) حم | (مِنْ) جاره |
| إِنَّمَا يَخْشَى اللهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ | خبريه فعليه | يَخْشَى | الْعُلَمَاءُ | ةُ | ۲. معرب | ۴. مبني | ۳. بالحركت | لفظي | غير تمي (۱.۳) حم | (يَخْشَى) رفعي (۳) حم | (مِنْ) جاره |
| لَنْ أُكَلِّمَ الْيَوْمَ إِنْسِيًّا | خبريه فعليه | أُكَلِّمَ | أَنَا | يَوْمَ، أَنَا | ۳. معرب | ۲. مبني | ۲. بالحركت | لفظي | غير تمي (۱) حم | (أُكَلِّمَ) نصبي (۱) حم | (لَنْ) ناصب |
| يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ | خبريه فعليه | يَخْشَوْنَ | هُمْ | هُمْ، هُمْ | ۲. معرب | ۲. مبني | (رَبَّ) بالحركت | لفظي | غير تمي (۱) حم | (يَخْشَوْنَ) رفعي باثبات نون (۳) حم | + |

## التمرين:

"لَمْ يَجْعَلْنِي جَبَّارًا شَقِيًّا،، يُخَادِعُونَ اللهَ،، يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ،، كَذٰلِكَ يُحْيِ اللهُ الْمَوْتٰى،، يُرِيْدَانِ أَنْ يُخْرِجَاكُمْ،، اَللهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ،، وَلٰكِنْ أَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ،، لِيَبْلُوَكُمْ أَيُّكُمْ أَحْسَنُ عَمَلًا،، لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتّٰى تُنْفِقُوْا،، أَغَيْرَ اللهِ تَدْعُوْنَ،، لَا يَقْضُوْنَ بِشَيْءٍ".

باب اول در حروف عامله ودرو دو فصل است الخ:.............الى قوله دوم حروف مشبه بالفعل.

## ترجمه:

پوه سه چي د اعراب والا عامل پر دوه قسمه دئ: (۱) لفظي (۲) معنوي. بيا لفظي پر دري قسمه دي: حروف افعال، اسماء چي انشاء الله موږ به يې په درو بابو كي بيانوو. اول باب په حروف عامله وو كي دئ او په هغه كي دوه فصلونه دي. اول فصل د حروف عامله وو په بيان كي دئ چي په اسم كي عمل كوي، هغه پر پنځه قسمه دي: اول حروف جاره دي. هغه اوولس دي (هغه دا دي): "بَا، و

تَاء، و كَاف و لَام وَاو، مُنْذُ، و مُذْ، خَلَا، رُبَّ، حَاشَا، مِنْ، عَدَا، فِيْ، عَنْ، عَلٰى، حَتّٰى، اِلٰى". دا او ولس حروف پر اسم داخليږي او آخر ته جرور كوي. لكه: "اَلْمَالُ لِزَيْدٍ".

# الدرس العشرون:

باب اول در حروف عامله.

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

## اوله خبره:

اول قسم (۱) د حروف عامله (۲) در اسم څخه حروف جاره دي (۳):

د حروف جاره لغوي او اصطلاحي تعريف:

---

(۱) کم حروف چي په اسم کي عمل کوي، هغه پنځه قسمه دي: (۱) حروف جاره (۲) حروف مشبه بالفعل (۳) ما و لا مشبهتين بليس (۴) لاء نفي جنس (۵) حروف نداء.

حروف جاره او حروف نداء په يو اسم کي عمل کوي او حروف مشبه بالفعل، ما و لا مشبهتين بليس او لاء نفي جنس په دوو اسمو کي عمل کوي.

(۲) د حروف عامله وجه د حصر: د حروف عامله مدخول به يا مفرد وي او يا به جمله که چيري مفرد وو، بيا د دوو حالو څخه خالي نه دئ: يا به يې اثر جر وي، او يا به نه وي، که يې چيري اثر جر وو، هغه حروف جاره دي او که نه وو حروف نداء دي، که چيري مدخول يې جمله وه يا به بالاتفاق جمله وي او يا به نه وي، که چيري عند البعض جمله وه او عند البعض مفرد وو، هغه "لَا" نفي جنس دئ ځکه د امام سبويه رحمة الله عليه په نزد باندي د لا نفي جنس دپاره صرف اسم راځي او خبر يې کالمعدوم وي، او که چيري بالاتفاق جمله وه بيا به يا په خپل مدخول کي د نفي معنى پيدا کوي، هغه "مَا وَلَا" مشبهتين "بِلَيْسَ" دي، ورنه حروف مشبه بالفعل دي.

او حروف که څه هم د عمل په اعتبار سره ضعيف دي: لېکن حروف د اقسامو په اعتبار سره اعلى دي ځکه حروف شپږويشت قسمه دي، او افعال اووه قسمه دي: او اسماء لس قسمه دي، لېکن د عمل په باب کي اسم د فعل فرع دئ نو ځکه فعل مقدم سوى دئ. (همع الهوامع)

(۳) د حروف جاره عمل د اصالت په وجه دئ او د حروف مشبه بالفعل عمل د فعل سره د مشابهت او فرعيت په وجه دئ نو ځکه حروف جاره را مقدم سول.

جر (۱) په لغت کي راکشولو ته وايي: او په اصطلاح کي "مَا وُضِعَ لِإِفْضَاءِ الْفِعْلِ (۲) أَوْ مَعْنَى الْفِعْلِ (۳) أَوْ شِبْهِهِ (۴) إِلَى مَدْخُوْلِهِ (۵)" چي دی به د خودي فعل او يا به د فعل او شبه فعل معنٰی خپل مدخول (اسم) ته راکشوي لکه: "مَرَرْتُ بِزَيْدٍ".

د حروف جاره وو تعداد:

حروف جاره مشهوره اوولس (۱۷) دي، او غير مشهوره پنځه دانې دي. مشهوره په دې شعر کي دي:

بَا، وتَا، كَافْ، ولامْ، وَاوْ، مُنْذُ، ومُذْ، خَلَا.............. رُبَّ، حَاشَا، مِنْ، عَدَا، فِيْ، عَنْ، عَلٰى، حَتّٰى، إِلٰى.

د حروف جاره وو مشهوره وو مختصره معنٰی او تشريح:

"بَاء" د سببيت او قسم دپاره راځي. "تَاء" د قسم دپاره راځي. "كَافْ" د تشبيه دپاره راځي. "لَامْ" د واسطې، ظرف، وقت دپاره راځي. "وَاوْ" د قسم دپاره راځي، کله په معنٰی د "رُبَّ" سره هم استعماليږي. او "رُبَّ" په معنٰی د ډېر ځله او بعض سره راځي. "مُنْذُ، مُذْ" د وخت معلومولو دپاره راځي. "مِنْ" د بعضيت او سبب په معنٰی استعماليږي لېکن کله زائده وي. "فِيْ" د سببيت و غيره دپاره راځي. "عَنْ" د طرف و غيره په معنٰی سره راځي. "حَتّٰى" د انتهاء په معنٰی سره راځي. "عَلٰى" د

---

(۱) د جر تعريف: "اَلْجَرُّ حَرَكَةٌ أَوْ حَرْفٌ تَدُلُّ عَلٰى كَوْنِ الْاِسْمِ مُضَافًا إِلَيْهِ".

(۲) يعني فعل او د حرف جر مدخول سره جلا وو، بيا د دوی په مينځ کي د ربط پيدا کولو دپاره حرف جر راوړل سو، لکه: په "زَيْدٌ إِسْتَقَرَّ فِي الدَّارِ" کي لفظ د "فِيْ" د "إِسْتَقَرَّ" معنی راکش کړه و "دار" ته يعني "إِسْتِقْرَار" په "دار" کي راغلئ.

(۳) معنی د فعل چي د هغه ځخه د فعل معنی مستنبطه کيږي. لېکن د فعل د مادې ځخه نه وي، لکه: اسماء اشارات، اسماء افعال، حروف تنبيه، ظرف، جار و مجرور، حروف تمنی، حروف ترجی، حروف تشبيه، يعني اسم اشاره پر معنی د فعل چي "أُشِيْرُ" دئ دلالت کوي. او حروف تنبيه پر "أُنَبِّهُ" دلالت کوي، لکه: "هٰذَا فِي الدَّارِ أَبُوْكَ أَيْ أُشِيْرُ إِلٰى أَبِيْكَ فِي الدَّارِ".

(۴) شبه فعل هغه اسم دئ چي د فعل رنګه عمل کوي او د فعل د مادې ځخه وي، لکه: اسم فاعل، اسم مفعول، مصدر، صفت مشبه، و غيره لکه: "إِنَّهُ مَارٌّ بِزَيْدٍ".

(۵) د حروف جاره مدخول خواه که اسم حقيقي وي لکه: اسماء جوامد، مصادر، مشتقات. او که اسم تاويلي وي، لکه: فعل مضارع چي په تاويل د مصدر سره وي، او که اسم حکمي وي، لکه: د جملې ځخه چي تعبير په "هٰذَا" سره وسي. (الموجز في قواعد اللغة العربية)

استعلاء په معنٰی سره راځي. "حَاشَا، خَلَا، عَدَا" د "سِوَاء" په معنٰی کې استعمالیږي. "اِلٰی" د طرف او انتهاء په معنٰی سره راځي. "اِنْ شِئْتَ فَارْجِعْ اِلٰی شَرْحِ مِاَةِ عَامِلٍ".

د حروف جاره غیر مشهوره معنٰی او تشریح:

۱. "کَیْ" دئ چي کله ناصبه وي، او کله جاره وي، د جاره دپاره شرط دا دئ: چي پر ما استفهامیه یا پر ما مصدریه یا پر "اَنْ" مصدریه به داخل سوی وي، لکه: "کَیْمَهْ اَیْ: کَیْمَ فَعَلْتَ هٰذَا" او د مصدریه مثال لکه: "کَیْمَا یَضُرُّ وَ یَنْفَعُ".

۲. "لَوْلَا" دئ، په "لَوْلَا" جاره کې شرط دا دئ: چي مدخول به یې ضمیر وي، لکه: "لَوْلَاکَ، لَوْلَاکَ لَمَا خَلَقْنَا الْاَفْلَاکَ".

۳. "لَاتَ" دئ د "لَاتَ" دپاره شرط دا دئ: چي مدخول به یې ظرف وي، لکه: "وَ لَاتَ حِیْنَ مَنَاصٍ".

۴. "لَعَلَّ" دئ "لَعَلَّ" په لغت د بني عقیل کې جاره دئ لکه: "لَعَلَّ اَبِي الْمِغْوَارِ مِنْکَ قَرِیْبٌ".

۵. "مَتٰی" دئ "مَتٰی" په لغت د بني هذیل کې په معنٰی د "مِنْ" جاره سره دئ لکه: "مَتٰی لُجَجٍ خُضْرٍ لَهُنَّ نَئِیْجُ".

## دوهمه خبره:

د جار او مجرور مختصره تشریح (۱):

---

(۱) حرف جار په شپږو مقاماتو کې قیاسًا حذف کیږي: (۱) کم وخت چي حرف جر د "اَنْ" څخه مخکې راسي لکه: "وَعَجِبُوْا اَنْ جَائَهُمْ اَوَعَجِبْتُمْ اَنْ جَائَکُمْ. اَیْ لِاَنْ جَائَهُمْ". (۲) کله چي دی د "اَنَّ" مشدده څخه مخکې راسي لکه: "شَهِدَ اللهُ اَنَّهُ اَیْ شَهِدَ بِاَنَّهُ"، لیکن په دې دواړو صورتو کې چي د ده په حذف کولو سره به التباس نه راځي. ورنه بیا یې حذف کول جائز نه دي لکه: "رَغِبْتُ اَنْ اَفْعَلَ" ویل غلط دي بلکه دلته "فِيْ" یا د "عَنْ" ذکر کول لازمي دي چي د متکلم مراد یې په میلان او اعراض کې معلوم سي. (۳) کله چي دی د "کَیْ" څخه مخکې راسي لکه: "کَیْ تَقَرَّ عَیْنُهَا اَیْ لِکَیْ تَقَرَّ عَیْنُهَا". (۴) پر ممیز باندې کله چي پر "کَمْ" استفهامیه باندې حرف جر داخل سوی وي لکه: "بِکَمْ دِرْهَمٍ اِشْتَرَیْتَ اَیْ مِنْ دِرْهَمٍ". لیکن که چیري پر "کَمْ" استفهامیه باندې حرف جر نه وي داخل سوی بیا نصب واجب دئ لکه: "کَمْ دِرْهَمًا عِنْدَکَ". (۵) کله چي دی د لفظ "اَللهُ" څخه مخکې راسي او لفظ د "اَللهُ" د قسم دپاره استعمال سوی وي، لکه: "اَللهِ لَاَخْدِمَنَّ الْاُمَّةَ خِدْمَةً صَادِقَةً اَیْ وَاللهِ". (٦) کله چي دی د داسې کلام

جار او مجرور چي کله په کلام کي راسي نو و دوی ته مجازًا ظرف ویل کیږي ځکه ظرف حقیقي زمان وي یا مکان وي.

د ظرف اقسام:

ظرف پر دوه قسمه دئ:

۱. ظرف لغو، "مَايَكُوْنُ عَامِلُهُ مَذْكُوْرًا" چي د ده عامل ذکر سوی وي.

۲. ظرف مستقر "مَايَكُوْنُ عَامِلُهُ مَحْذُوْفًا سَوَاءٌ كَانَ مِنَ الْاَفْعَالِ الْعَامَّةِ اَوِالخَاصَّةِ" چي د ده عامل حذف سوی وي خواه که د افعال خاصه وو څخه وي او که د افعال عامه وو څخه وي.

افعال عامه و خاصه:

افعال خاصه چي پر یو خاص معنٰی دلالت کوي لکه: "اَكَلَ وَشَرِبَ".

افعال عامه ځلور دي "كَوْنٌ، ثُبُوْتٌ، وُجُوْدٌ، حُصُوْلٌ".

د ظرف متعلق:

هر ظرف خپل متعلق غواړي او دی تر ځلورو شیانو پوري تعلق نیولای سي:

۱. کله تر فعل پوري تعلق نسي لکه: "اَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ".

۲. کله تر شبه فعل پوري تعلق نیسي لکه: "غَيْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَيْهِمْ".

۳. کله د ده متعلق مؤل په شبه فعل سره وي، لکه: "وَهُوَ اللّٰهُ فِي السَّمٰوَاتِ وَ فِي الْاَرْضِ اَيْ مَعْبُوْدٌ فِي السَّمٰوَاتِ وَ الْاَرْضِ".

---

څخه وروسته راسي چي هغه هم د ده په شان پر حرف جر باندي مشتمل وي لکه: "مَرَرْتُ بِخَالِدٍ فَيُقَالُ أَخَالِدٍ وَابْنِ سَعِيْدٍ أَيْ أَبِخَالِدِ بْنِ سَعِيْدٍ".

او کله کله دی سماعًا حذف کیږي: نو په دې صورت کي د هغه اسم مجرور منصوب ویل کیږي. د منزوع سره: مشابهت په وجه او په دې وخت کي و ده ته منصوب بنزع الخافظ ویل کیږي. لکه: قول د الله تعالی: "أَلَا إِنَّ ثَمُوْدَ كَفَرُوْا رَبَّهُمْ أَيْ بِرَبِّهِمْ. وَاخْتَارَ مُوْسٰى قَوْمَهُ أَيْ مِنْ قَوْمِهِ". (جامع الدروس العربية)

۴. کله کله د ده متعلق "مُشِيْرٌ إِلَى مَعْنَى الْفِعْلِ" وي، يعني د فعل معناوي بيا کله دا معنٰی د خاص (۱) الکلام څخه معلوميږي لکه: "مَا أَنْتَ بِنِعْمَةِ رَبِّكَ. أَيْ إِنْتَفَى". او کله د سياق الکلام (۲) څخه معلوميږي لکه: "لِأَنَّهَا إِمَّا أَنْ تَدُلَّ أَيْ مُنْحَصِرَةٌ لِأَنَّهَا".

## فائده:

د جار او مجرور مفصل بحث په دريم نمبر سبق کي د جملې ظرفيې په ضمن کي تېر سوی دئ. "إِنْ شِئْتَ فَانْظُرْ هُنَاكَ".

## دريمه خبره:

بعضي حروف جاره چي متعلق نه غواړي:

په هغه کي حروف جاره زائده دي لکه: "مِنْ. بَا. کَافْ. لَامْ" (۳) او داغه رنګه شبيه بالزائده دي هغه لکه: "رُبَّ. لَوْلَا. لَعَلَّ. حَاشَا. خَلَا. عَدَا. لَاتَ".

---

(۱) دلته د "إِنْتَفَى" معنی د لفظ د "مَا" څخه معلوميږي چي پر نفي دلالت کوي.

(۲) دلته د "مُنْحَصِرَةٌ" معنی د سياق الکلام څخه معلوميږي ځکه دلته وجه د حصر بيانيږي.

(۳) په حروف جاره زائده او په شبه زائده سره چي کم اسم لفظا مجروره کيږي هغه به "حَسْبُ الْعَامِلِ" محلا مرفوع وي او يا به منصوبه وي.

۱. مرفوع محلا چي فاعل وي لکه: "مَا جَاءَنَا مِنْ بَشِيْرٍ وَّلَا نَذِيْرٍ. وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا" په اصل کي "مَا جَاءَنَا بَشِيْرٌ وَلَا نَذِيْرٌ، وَكَفَى اللّٰهُ" وو.

۲. مرفوع محلا چي نائب فاعل وي لکه: "قِيْلَ بِشَيْئٍ" په اصل کي "قِيْلَ شَيْئٌ" وو.

۳. مرفوع محلا چي مبتداء وي لکه: "بِحَسْبِكَ اللّٰهُ" په اصل کي "حَسْبُكَ اللّٰهُ" وو.

۴. منصوب محلا چي مفعول به وي، لکه: "مَا رَأَيْتُ مِنْ أَحَدٍ" په اصل کي "مَا رَأَيْتُ أَحَدًا" وو.

۵. منصوب محلا چي مفعول مطلق وي لکه: "مَا سَعٰى فُلَانٌ مِنْ سَعْيٍ يُحْمَدُ عَلَيْهِ" په اصل کي "مَا سَعٰى سَعْيًا يُحْمَدُ عَلَيْهِ" وو.

۶. منصوب محلا چي خبر وي لکه: "أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِيْنَ" په اصل کي "أَلَيْسَ اللّٰهُ أَحْكَمَ الْحَاكِمِيْنَ" وو.

مجرور په حرف جر شبيه بالزائد او مجرور بحرف جر اصلي دپاره هم مختلف ځايونه دي او داغه رنګه حروف جاره زائده چي په کمو ځايو کي زياتيږي او د څه غرض دپاره زياتيږي د دې ټولو مکمل تفصيل په (جامع الدروس العربية) کي موجود دئ. "إِنْ شِئْتَ فَارْجِعْ إِلَيْهِ". (جامع الدروس العربية)

د جار او مجرور ترکيبي حيثيت:

۱. جار او مجرور کله خبر واقع کيږي لکه: "زَيْدٌ فِي الْمَسْجِدِ".

۲. کله صفت واقع کيږي لکه: "غَضَبٌ مِنْ رَّبِّكُمْ".

۳. کله صله واقع کيږي لکه: "اَلَّذِيْ فِي الدَّارِ".

۴. کله حال واقع کيږي لکه: "فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْاَوْثَانِ".

## فائده:

په دغه څلورو ځايو کي چونکه د جار او مجرور متعلق د افعال عامه وو څخه دئ نو ځکه د ده حذف کول واجب دي، يعني "ثَبَتَ" يا "ثَابِتٌ" و غيره ښکاره کول جائز نه دي.

دوم حروف مشبہ بالفعل وآن شش است الخ: ...................... الی قوله سوم ماولا مشبهتان بليس.

## ترجمه:

دوهم قسم د حروف عامله وو څخه حروف مشبه بالفعل دُمي هغه شپږ داني دي، "اِنَّ، اَنَّ، كَاَنَّ، لٰكِنَّ، لَيْتَ، لَعَلَّ". دغه حروف اسم ته نصب او خبر ته رفع ور کوي، لکه: "اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ" "زَيْدًا" ته اسم د "اِنَّ" او "قَائِمٌ" ته خبر د "اِنَّ" ويل کيږي.

پوه سه چي "اِنَّ" و "اَنَّ" حروف تحقيق دي. "كَاَنَّ" حرف تشبيه دئ. "لٰكِنَّ" حرف استدراک دئ. او "لَيْتَ" حرف تمنیٰ او "لَعَلَّ" حرف ترجی دئ.

## څلورمه خبره:

دوهم قسم د حروف عامله وو څخه حروف مشبه بالفعل دي:

د حروف مشبه بالفعل عمل:

حروف مشبه بالفعل پر دوه اسمو داخليږي: اسم ته نصب او خبر (۱) ته رفع ور کوي، لکه: "إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ".

د حروف مشبه بالفعل تعداد:

حروف مشبه بالفعل شپږ دانې دي: "إِنَّ، أَنَّ، كَأَنَّ (۲) لَيْتَ، لٰكِنَّ (۳) لَعَلَّ"

د حروف مشبه بالفعل مشابهت د فعل سره:

۱. اول: د دې حروفو مشابهت د فعل سره په ثلاثيت و رباعيت کې دی "إِنَّ" لکه "ضَرَبَ" "لٰكِنَّ" لکه "دَحْرَجَ".

۲. دوهم: په لحوق د کاف خطاب کې لکه: "إِنَّكَ" او "ضَرَبْتُكَ".

۳. دريم: په لحوق د نون وقايه کې لکه: "إِنَّنِيْ" او "ضَرَبَنِيْ".

۴. څلورم: په وزن کې لکه: "أَنَّ" او "فَرَّ".

۵. پنځم: په معنٰی کې يې سره مشابهت دئ: لکه: "إِنَّ" "أَنَّ" په معنٰی د "حَقَّقْتُ" سره راځي. "كَأَنَّ" په معنٰی د "شَبَّهْتُ" سره راځي. "لَيْتَ" په معنٰی د "تَمَنَّيْتُ" سره راځي، "لٰكِنَّ" په معنٰی د "إِسْتَدْرَكْتُ" سره راځي. "لَعَلَّ" په معنٰی د "تَرَجَّيْتُ" سره راځي.

---

(۱) د حروف مشبه بالفعل په ناصب اسم کې اتفاق دئ يعني چې دوی اسم ته نصب ور کوي لېکن په رفع د خبر کې اختلاف دئ "عند البصريين" خبر ته هم رفع ور کوي ځکه د دوی مشابهت د فعل سره قوي دئ، چې پنځه قسمه دئ. "عند الكوفيين" دوی خبر ته رفع نه ور کوي بلکه د دوی خبر پر هغه خپله پخوانی رفع باندې پاته وي. چې کم د دوی د دخول څخه مخکې وه. "وَالدَّلَائِلُ فِي الْمُطَوَّلَاتِ". (الانصاف صفحه ۱۶۷)

گويا کې د دوی اسم د مفعول سره مشابه سو او خبر يې د فاعل سره مشابه سو لېکن د دوی منصوب پر مرفوع باندې د دوو وجوه څخه مقدم سوی دئ يو خو د فرق کولو د پاره په مينځ کې د افعالو او حروفو او بل دا چې فعل اصل دئ او دا حروف فرع دي، او د منصوب مخکې کېدل پر مرفوع باندې دا هم فرع دئ نو فرع يې فرعي ته ور کړئ نو ځکه د دوی خبر پر اسم باندې مقدم کول جائز نه دي. مگر که چيرې ظرف وو، بيا يې تقديم جائز دئ لکه: "إِنَّ مِنَ الشِّعْرِ لَحِكْمَةً". (حاشية الصبيان جلد ۱ صفحه ۲۵۰)

(۲) په "كَأَنَّ" کې اختلاف دئ چې دی بسيط دئ او که مرکب صحيح دا دئ چې دی مرکب دئ د تشبيه د پاره راځي لېکن کله د تعجب د پاره هم مستعمليږي لکه: "وَيْكَأَنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُوْنَ".

(۳) په "لٰكِنَّ" کې هم اختلاف دئ چې دی بسيط دئ او که مرکب صحيح دا دئ چې دی بسيط دئ. (همع الهوامع جلد ۱ صفحه ۲۳۸)

۶. شپږم: په عمل کي مشابهت لکه: فعل چي په دوو اسمو کي عمل کوي دوی هم په دوو اسمو کي عمل کوي چونکه فعل اصل دئ نو ځکه اول اسم ته رفع او دوهم اسم ته نصب ور کوي.

## پنځمه خبره:

د "إِنَّ، أَنَّ، كَأَنَّ، لٰكِنَّ" عملي حیثیت په حالت د تخفیف کي:

١. "إِن" مخفف من المثقل چي پر فعل داخل سي بالاتفاق عمل نه کوي لکه: دا قول د الله تعالی "وَإِنْ كُنْتَ مِنْ قَبْلِهِ لَمِنَ الْغَافِلِيْنَ، وَإِنْ نَظُنُّكَ لَمِنَ الْكَاذِبِيْنَ". او که چیري پر اسم داخل سي بیا اکثریت دی مهمل یعني عمل نه کوي لکه: دا قول د الله تعالی: "وَإِنْ كُلٌّ لَمَّا جَمِيْعٌ لَدَيْنَا مُحْضَرُوْنَ". لېکن قلیلًا عمل کوي، لکه: "إِنْ زَيْدًا مُنْطَلِقٌ" او دا قول د الله تعالی: "وَإِنْ كُلًّا لَمَّا لَيُوَفِّيَنَّهُمْ رَبُّكَ أَعْمَالَهُمْ" په یو قرائت کي په تخفیف سره راغلی دئ.

٢. "أَنْ" مخفف من المثقل په نزد د کوفیینو او سبویه دی مهمل دئ یعني مطلقا عمل نه کوي نه په ظاهر کي او نه په ضمیر کي او دی حرف مصدریه دئ د نورو حروف مصدریه وو په شان باندي لکه: "وَحَسِبُوْا أَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ" عند الجمهور دَی عمل کوي او د ده دپاره اسم ضمیر شان مستتر وي یعني "ہٗ" ضمیر لکه: قول د الله تعالی "عَلِمَ أَنْ سَيَكُوْنُ مِنْكُمْ: أَیْ أَنَّهٗ".

٣. "لٰكِنَّ" که چیري مخفف سي نو بیا بالاتفاق عمل نه کوي إِلَّا عِنْدَ يُوْنَسَ وَأَخْفَشْ بیا دَی کله عاطفه وي که چیري معطوف مفرد وو لکه: "مَا جَاءَ الْقَوْمُ لٰكِنْ سَعِيْدٌ" او که چیري د واو سره راغلی وي، بیا دَی حرف ابتداء دئ د اعراض دپاره وي لکه: "مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِنْ رِجَالِكُمْ وَلٰكِنْ رَسُوْلَ اللهِ وَخَاتَمَ النَّبِيِّيْنَ" او د دې ځخه علاوه هم راځي لکه: "جَاءَ خَالِدٌ لٰكِنْ سَعِيْدٌ مُسَافِرٌ".

۴. "کَاَنْ" مخففه په نزد د کوفیینو دی مهمل دئ یعني عمل نه کوي او په نزد د جمهورو باندي دی عامل دئ کله په ظاهر کي عمل کوي لکه: "کَاَنْ زَیْدًا اَسَدٌ" کله په ضمیر مستتر کي عمل کوي "کَاَنْ عَلِیٌّ خُلْقُهُ الْمِسْکُ: اَیْ کَاَنَّهُ".

سوم ماولا المشبہتان بلیس الخ ........................ الی قولہ چہارم لاء نفی جنس.

## ترجمه:

څلورم قسم د حروف عامله وو څخه "مَا" و "لَا" دي: چي مشابه دي د "لَیْسَ" سره لکه: "مَا زَیْدٌ قَائِمًا" "زَیْدٌ" اسم د "مَا" دئ او "قَائِمًا" خبر د "مَا" دئ.

## شپږمه خبره:

دریم قسم د حروف عامله وو څخه "مَا" و "لَا" "المشبهتین بلیس دي":

د "مَا" و "لَا" "المشبهتین بلیس" عمل:

"مَا" و "لَا" "المشبهتین بلیس" پر دوو اسمو داخلیږي اول ته رفع دوهم ته نصب ور کوي لکه: "مَا زَیْدٌ قَائِمًا".

د دغه حروفو تعداد:

د دغه حروفو تعداد څلور دي (۱) دوه مشهور دي، هغه "مَا" (۱) و "لَا" (۲) دي او دوه غیر مشهور دي هغه "لَاتَ، وِاِنْ" دي.

---

(۱) د دوی مثالونه د "لَا" مثال لکه: "لَا رَجُلٌ حَاضِرًا". او د "لَاتَ" مثال لکه: "وَلَاتَ حِیْنَ مَنَاصٍ"، او د "اِنْ" مثال لکه: "اِنِ الَّذِیْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللهِ عِبَادٌ اَمْثَالَکُمْ: فِي قِرَاءَةٍ" په یوه قرائت کي "اِنْ" راغلی دئ، او د "مَا" دپاره په قرآن کي صراحةً دري مقامات دي: (۱) "مَاهُنَّ اُمَّهٰتِهِمْ" (۲) "مَا هٰذَا بَشَرًا" (۳) "فَمَا مِنْکُمْ مِنْ اَحَدٍ عَنْهُ حَاجِزِیْنَ". دلته "مِنْ" زائده دئ د دغه مثال دوه ترکیبونه کېدای سي:

۱. اول ترکیب: "مَا" مشابه "بِلَیْسَ" "اَحَدٌ" مرفوع محلا اسم د "مَا". "عَنْهُ" جار او مجرور متعلق تر "حَاجِزِیْنَ" مؤخره پوري، او "حَاجِزِیْنَ" سره د خپله متعلقه خبر د "مَا" دپاره او "مِنْکُمْ" تر فعل محذوف پوري متعلق دئ چي "اَعْنِيْ" دئ.

د "مَا وَلَا" مشابهت د "لَيْسَ" سره:

د "مَا وَلَا" مشابهت د "لَيْسَ" سره په دوو شيانو كي دئ: (۱) په نفي كي (۲) په عمل كي.

د "مَا" د عمل كولو دپاره شرائط:

د "مَا" د عمل دپاره څلور شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي د "مَا" نفي به په "اِلَّا" سره نه وي ماتي سوى بلكه باقي به پاته وي احترازي مثال لكه: "وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ".

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي معمولات به يې مرتب وي يعني خبر به يې پر اسم نه وي مقدم سوى احترازي مثال لكه: "مَا فِي السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ سَحَابًا".

۳. دريم شرط يې دا دئ چي معمول د خبر به يې پر اسم باندي نه وي مقدم سوى احترازي مثال "مَا اَمْرَ اللّٰهِ اَنَا عَاصٍ" او دلته "امر" معمول د "عَاصٍ" دئ "مَا طَعَامَكَ زَيْدٌ اٰكِلٌ" لېكن كچيري معمول ظرف وو بيا مقدم كېداى سي لكه: "مَا عِنْدِيْ اَنْتَ مُقِيْمًا" "مَابِكَ اَنَا مُنْتَصِرًا".

---

۲. دوهم تركيب؛ چي "مِنْكُمْ" جار و مجرور ظرف اعتماد يې پر نفي كړى دئ، "مِنْ" زائده "أَحَدٌ" موصوف "عَنْهُ" متعلق تر "حَاجِزِيْنَ" پوري دئ "حَاجِزِيْنَ" سره د خپله مُتَعَلِّقه صفت دپاره د موصوف، موصوف سره د خپله صفته مرفوع محلا فاعل دپاره د ظرف. دلته كه څه هم "أَحَدٌ" موصوف مفرد دئ "حَاجِزِيْنَ" صفت جمع ده مطابقت نه سو پاته، لېكن "أَحَدٌ" اسم عام دئ او د اسم عام دپاره صفت جمع راتلاى سي لكه؛ په قرآن كريم كي: "لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ أَحَدٍ مِنْ رُسُلِهِ". (مغنى اللبيب).

(۱) "لَا" همېشه حرف نفي وي لېكن "مَا" په اكثره اوقاتو كي اسم هم جوړيږي او په دې وخت كي به دى يا "مَا" استفهاميه وي يا به "مَا" موصوله وي، يا به "مَا" ظرفيه وي، يا به "مَا" مصدريه وي. د "مَا" او د "لَيْسَ" پر خبر باندي كله "بَا" زائده داخليږي لكه: "أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِيْنَ. وَمَا أَنَا بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ". (نصر الخبير)

(۲) د "مَا" او "لَا" فرق په درو شيانو كي دئ؛ (۱) "مَا" عام دئ او "لَا" په نكره پوري خاص دئ. (۲) "لَا" د مطلق نفي دپاره راځي، او "مَا" د نفي حالي دپاره استعماليږي. (۳) او د "لَا" څخه وروسته "اِنْ" نافيه نه سي راتلاى او د "مَا" څخه وروسته "اِنْ" نافيه راتلاى سي لېكن بيا دى ملغى عن العمل دئ. (نصر الخبير)

۴. څلورم شرط یې دا دئ: چې د "مَا" څخه وروسته به "اِنْ" نافیه نه وي راغلی احترازي مثال لکه: "مَا اِنْ زَیْدٌ قَائِمٌ".

په دې ټولو صورتو کي "مَا" ملغٰی عن العمل بلل کیږي او دواړه اسمونه مرفوع دي بناء بر ابتدائیت و خبریت.

## اوومه خبره:

د "لَا" د عمل کولو دپاره شرائط:

د "لَا" د عمل کولو دپاره هم څلور شرطونه دي:

درې شرطونه یې هغه دي: چې کم په "مَا" په اول، دوهم، دریم (۱) نمبر کي تېر سوه.

څلورم شرط یې دا دئ: چې د "لَا" دواړه معمولین به نکره وي احترازي مثال لکه: "لَا زَیْدٌ قَائِمٌ".

د "اِنْ" عمل دپاره شرائط:

د "اِنْ" د عمل دپاره دوه شرطونه دي: کم چې په "مَا" کي په اول، دوهم نمبر کي تېر سوه.

د "لَاتَ" (۲) د عمل دپاره شرائط:

د "لَاتَ" د عمل دپاره دوه شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چې د "لَاتَ" اسم و خبر به د اسماء زمان څخه وي لکه: "اَلْحِیْنُ، اَلسَّاعَةُ، اَلْاَوَانُ" و غیره.

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چې د ده د اسم او خبر څخه به یو محذوفه (۳) وي، لکه: و "لَاتَ حِیْنَ مَنَاصٍ، اَیْ لَیْسَ الْحِیْنُ حِیْنَ فَرَارٍ".

---

(۱) څلورم شرط ځکه نسته چې په کلام عربي کي د "لَا" څخه وروسته "اِنْ" زائده نه راځي.

(۲) په "لَاتَ" کي د عمل کولو والا صرف "لَا" دئ او "تَا" د تاکید د نفي دپاره ده.

(۳) او عام طور د ده اسم حذف کیږي لیکن که چیري "لَاتَ" پر غیر اسم زمان باندي داخل سي بیا دی ملغي عن العمل دئ لکه: "یَنْبَغِيْ جِوَارُکَ حِیْنَ لَاتَ مُجِیْرٌ" او بعض حضرات چي دی جاره استعمالوي هغه د شاذ په طوریې استعمالوي لکه: "طَلَبُوْا صُلْحَنَا وَلَاتَ اَوَانٍ". (جامع الدروس العربیة)

# جملے:

| عنوان | خبریہ، انشائیہ مع الاقسام | مسند | مسند الیہ | اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی، تقدیری | تبعی، غیر تبعی | اعراب مضارع | حروف عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَا يَدْخُلُ الْاِيْمَانُ فِيْ قُلُوْبِكُمْ | خبریہ فعلیہ | يَدْخُلُ | اَلْاِيْمَانُ | ۱. كُمْ | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی ۱، ۳ قسم | غیر تبعی | (لَايَدْخُلُ) حالت رفعی (۱) قسم | ۱. (فِيْ) حرف جارہ |
| لَاتُشْرِكْ بِاللّٰهِ فَتَدْخُلَ الْجَنَّةَ | انشائیہ فعلیہ | لَاتُشْرِكْ | اَنْتَ | ۲. اَنْتَ، اَنْتَ | ۴. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (لَاتُشْرِكْ، فَتَدْخُلَ) حالت جزمی قسم (۱) | ۲. (لَاامر) جازمہ، (بَا) جارہ |
| لَاعَقْلَ لَهٗ | خبریہ اسمیہ | (لَهٗ) باعتبار متعلق | عَقْلَ | ۱. هٗ | ۱. معرب | ۵. مبنی | (عَقْلَ) مبنی بر فتح | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | + | ۲. (لَا) نفی جنس، (لَامْ) جارہ |
| اَلدُّنْيَا دِيْنٌ لِمَنْ لَادِيْنَ لَهٗ | خبریہ اسمیہ | دِيْنٌ | اَلدُّنْيَا | ۲. مَنْ، هٗ | ۳. معرب | ۷. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم وتقدیری (۱۳) قسم | غیر تبعی، (لَادِيْنَ) مبنی بر فتح | + | ۲. (لَامْ) جارہ، (لَا) نفی جنس |
| لَابَيْعٌ فِيْهِ وَلَا خُلَّةٌ | خبریہ اسمیہ | (فِيْهِ) باعتبار متعلق | بَيْعٌ | ۱. هٖ | ۳. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | + | ۲. (لَا) المشبہ بلیس، (فِيْ) جارہ |
| لَا اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ | خبریہ اسمیہ | (فِي الدِّيْنِ) باعتبار متعلق | اِكْرَاهَ | هُوَ | ۲. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | (اِكْرَاهَ) مبنی بر فتح غیر تبعی | + | (لَا) نفی جنس، (فِيْ) جارہ |
| لَادِيْنَ لِمَنْ لَا اَمَانَةَ لَهٗ | خبریہ اسمیہ | لِمَنْ لَا لَهٗ باعتبار متعلق | دِيْنَ، اَمَانَةَ | ۴. مَنْ، هٗ، هُوَ، هُوَ | ۲. معرب | ۱۰. مبنی | (دِيْنَ، اَمَانَةَ) مبنی بر فتح، | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | + | ۳. (لَا) نفی جنس (لَامْ) جارہ |
| يَاذَا الْمَالِ اَنْفِقْ مِنْ مَالِكَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ | انشائیہ فعلیہ | اَدْعُوْ | اَنَا | ۳. اَنْتَ، كَ، اَنَا | ۶. معرب | ۷. مبنی | بالحرکت بالحرف | لفظی (۶) قسم وتقدیری | غیر تبعی | (اَدْعُوْ) حالت رفعی (۲) قسم | ۳. (يَا) حرف ندا، (مِنْ) جارہ، (فِيْ) جارہ |
| يَايَحْيٰى خُذِ الْكِتَابَ بِقُوَّةٍ | انشائیہ فعلیہ | اَدْعُوْ | اَنَا | ۲. اَنَا، اَنْتَ | ۳. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت | (يَحْيٰى) تقدیری (۱۳) قسم باقی لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (اَدْعُوْ) حالت رفعی (۲) قسم | ۲. (يَا) حرف ندا، (بَا) جارہ |
| يَارَحْمٰنُ اِرْحَمْنَا | انشائیہ فعلیہ | اَدْعُوْ | اَنَا | ۳. اَنَا، اَنْتَ، نَا | ۱. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت | مشترک | غیر تبعی | (اَدْعُوْ) حالت رفعی (۳) قسم | ۱. (يَا) حرف ندا |
| يَااَيُّهَا النَّاسُ اعْبُدُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ | انشائیہ فعلیہ | اَدْعُوْ | اَنَا | ۶. اَنَا، اَنْتُمْ، كُمْ، اَلَّذِيْ، كُمْ، هُوَ | ۲. معرب | ۱۲. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (اَدْعُوْ) حالت رفعی (۲) قسم | ۱. (يَا) حرف ندا |
| لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ | انشائیہ فعلیہ | يَرْجِعُوْنَ | هُمْ | ۲. هُمْ، هُمْ | ۱. معرب | ۳. مبنی | بالحرف | لفظی | تبعی | (يَرْجِعُوْنَ) حالت رفعی قسم (۳) | ۱. (لَعَلَّ) مشبہ بالفعل |

| عنوان | خبر، انشاء مع الاقسام | مسند | مسند اليه | اسم غير متمكن | معرب | مبني | بالحركت، بالحرف | لفظي، تقديري | تمي، غير تمي | اعراب مضارع | حروف عامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَا نُوحُ إِنَّهُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِكَ | انشائيه فعليه | أُدْعُوْ | أَنَا | ٣. أَنَا، ة. هُوَ، كَ | ٣. معرب | ١٠. مبني | بالحركت | لفظي(١) حم | غير تمي | (أُدْعُوْ) حالت رفعي (٢) حم | ٣. (يَا) حرف ندا، (إِنَّ) مشبه بالفعل، (مِن) جاره |

## التمرين:

"أَأَنْتُمْ أَنْشَأْتُمْ شَجَرَتَهَا أَمْ نَحْنُ الْمُنْشِئُونَ،، يَا نَارُ كُونِي بَرْدًا وَسَلَامًا عَلَى إِبْرَاهِيمَ،، وَالَّذِينَ لَا يَدْعُونَ مَعَ اللهِ إِلَهًا آخَرَ،، اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي فَضَّلَنَا عَلَى كَثِيرٍ مِنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِينَ،، وَيَوْمَ نُسَيِّرُ الْجِبَالَ وَتَرَى الْأَرْضَ بَارِزَةً،، هُوَ الَّذِي يُسَيِّرُكُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ،، فَأَنْبَتْنَا بِهِ حَدَائِقَ ذَاتَ بَهْجَةٍ،، وَجَاءَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَعَهَا سَائِقٌ وَشَهِيدٌ".

## الدرس الحادي و العشرون:

د نن د سبق خلاصه اووه (٧) خبري دي:

### اوله خبره:

د "إِنَّ" مکسوره او مفتوحه بحث:

د "إِنَّ" مکسوره ځایونه:

"إِنَّ" په یوولسو (١١) ځایو کي مکسوره ويل کيږي، يعني چي کله د ده ما بعد په تاویل د مصدر سره اړول صحیح نه وي.

١. په ابتداء[1] د کلام کي لکه: "إِنَّا أَعْطَيْنَا، يَا إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا".

٢. په ابتداء د صله کي لکه: "وَآتَيْنَاهُ مِنَ الْكُنُوزِ مَا إِنَّ مَفَاتِحَهُ".

---

(١) "إِنَّ" به په ابتداء د کلام کي وي يعني د يو عامل معمول به نه وي خواه که حقيقتًا په ابتداء د کلام کي وي لکه: "إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا". او يا حکمًا په ابتداء د کلام کي وي. چي تر تنبيه، او "حرف افتتاح" او "حَتّٰى" ابتدائيه، او تر "كَلَّا" زجريه، او تر حرف "تَحْضِيض"، او تر حرف جواب "نَعَمْ". او "لَا" وروسته چي راسي نو بيا دی حکمًا په ابتداء د کلام کي وي، لکه: "أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ،، قُلْ إِي وَرَبِّي إِنَّهُ لَحَقٌّ،، كَلَّا إِنَّ مَعِيَ رَبِّي سَيَهْدِينِ". (تشوير)

۳. په ابتداء د حال کي لکه: "وَاِنَّ فَرِيقًا مِنَ الْمُؤْمِنِينَ لَكَارِهُوْنَ".
۴. په ابتداء د مقصود بالنداء کي لکه: "يَانُوحُ اِنَّهُ لَيْسَ مِنْ اَهْلِكَ".
۵. په ابتداء د قسم کي لکه: "وَالْعَصْرِ اِنَّ الْاِنْسَانَ لَفِي خُسْرٍ".
٦. په ابتداء د صفت کي لکه: "مَرَرْتُ بِرَجُلٍ اِنَّهُ فَاضِلٌ".
۷. د "حَيْثُ" يا "اِذْ" وروسته لکه: "جَلَسْتُ حَيْثُ اِنَّكَ قَائِمٌ. جِئْتُكَ اِذْ اِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ".
۸. تر قول او تر حکايت وروسته کله چي په معنیٰ د نقل وي نه د تکلم لکه: "قَالَ اِنِّي عَبْدُ اللهِ".
۹. چي کله د ده پر خبر باندي لام معلقه يعني لام ابتداء داخل سوی وي لکه: "وَاللهُ يَعْلَمُ اِنَّكَ لَرَسُولُهُ".
۱۰. د اسم عين (۱) پر خبر باندي چي راسي لکه: "خَلِيْلٌ اِنَّهُ كَرِيْمٌ"
۱۱. تر نهي وروسته لکه: "وَلَاتُسْرِفُوْا اِنَّ اللهَ لَايُحِبُّ الْمُسْرِفِيْنَ. يا لکه: لَا تَحْزَنْ اِنَّ اللهَ مَعَنَا".

## دوهمه خبره:

د "اَنَّ" مفتوحه (۲) ځايونه:

---

(۱) "اِسْمُ الْعَيْنِ" هغه دئ چي دلالت کوي پر ذات يعني پر هغه شي باندي چي هغه قائم بنفسه وي او د ده په مقابله کي "اِسْمُ الْمَعْنٰى" راځي چي دلالت کوي پر هغه شي باندي چي هغه قائم بالغير وي.

(۲) "تُفْتَحُ اَنَّ وُجُوْبًا حَيْثُ يَجِبُ اَنْ يُؤَوَّلَ بِمَصْدَرٍ مَرْفُوْعٍ او مَنْصُوْبٍ اَوْ مَجْرُوْرٍ وَذَالِكَ فِي اَحَدَ عَشَرَ مَوْضِعًا" (۱) چي کله فاعل وي لکه: "بَلَغَنِيْ اَنَّكَ مُجْتَهِدٌ: اَيْ بَلَغَنِيْ اِجْتِهَادُكَ". (۲) نائب فاعل لکه: "عُلِمَ اَنَّكَ مُنْصَرِفٌ اَيْ عُلِمَ اِنْصِرَافُكَ". (۳) مبتداء لکه: "حَسَنٌ اَنَّكَ مُجْتَهِدٌ اَيْ حَسَنٌ اِجْتِهَادُكَ". (۴) د "اِسْمُ الْمَعْنٰى" خبر وي لکه: "حَسْبُكَ اَنَّكَ كَرِيْمٌ اَيْ اِكْرَامُكَ". (۵) يا د مرفوع تابع وي خواه که معطوف وي لکه: "بَلَغَنِيْ اِجْتِهَادُكَ وَاَنَّكَ حَسَنُ الْخُلُقِ" او که بدل وي لکه: "يُعْجِبُنِيْ سَعِيْدٌ اَنَّهُ مُجْتَهِدٌ" په دغه پنځو صورتو کي به په تاويل د مصدر مرفوع سره ويل کيږي. (جامع الدروس العربية)

او که چيري مفعول وو، يا د افعال ناقصه وو اسم معنیٰ وو يا د منصوب تابع وو نو بيا په دې درو صورتو کي به په تاويل د مصدر منصوب سره ويل کيږي. "وَالْاَمْثِلَةُ مَوْجُوْدَةٌ فِي الْمَتْنِ"

او که مجرور بالحرف وو، يا مجرور بالاضافة وو او يا د يو مجرور تابع وو، نو بيا په دغه درو ځايو کي په تاويل د مصدر مجرور سره ويل کيږي. "وَالْاَمْثِلَةُ مَوْجُوْدَةٌ فِي الْمَتْنِ".

"اَنَّ" په یوولس ځایو کي مفتوحه ویل کیږي:

۱. چي کله فاعل (۱) واقع سي لکه: "أَوَلَمْ يَكْفِهِمْ أَنَّا أَنْزَلْنَا".

۲. کله چي نائب فاعل واقع سي لکه: "وَأُوحِيَ إِلَى نُوحٍ أَنَّهُ، یا لکه: عُلِمَ اَنَّکَ مُنْصَرِفٌ".

۳. کله چي مفعول واقع سي سواء د مقولي څخه لکه: "وَلَا تَخَافُوْنَ اَنَّکُمْ اَشْرَکْتُمْ".

۴. کله چي مبتداء (۲) واقع سي لکه: "وَمِنْ آيَاتِهِ أَنَّكَ تَرَى الْأَرْضَ خَاشِعَةً، یالکه "حَسَنٌ اَنَّکَ مُجْتَهِدٌ".

۵. کله چي دهغه اسم چي د قول څخه علاوه وي خبر واقع سي لکه: "اِعتِقَادِيْ اَنَّکَ فَاضِلٌ".

٦. چي د اسم المعنٰی خبر واقع سي لکه: "حَسْبُکَ اَنَّکَ فَاضِلٌ".

۷. کله چي د یو مرفوع تابع واقع سي یعني بدل یا معطوف وي، لکه: "يُعْجِبُنِيْ سَعِيْدٌ اَنَّهٗ مُجْتَهِدٌ، یا لکه: بَلَغَنِيْ اَنَّکَ مُجْتَهِدٌ وَاَنَّکَ حُسْنُ الخُلُقِ".

۸. کله چي د افعال ناقصه وو اسم معنًی واقع سي لکه: "كَانَ عِلْمِيْ وَيَقِيْنِيْ اَنَّکَ تَتَّبِعُ الحَقَّ".

۹. کله چي د یو منصوب تابع وي لکه: "وَإِذْ يَعِدُكُمُ اللّٰهُ إِحْدَى الطَّائِفَتَيْنِ أَنَّهَا لَكُمْ".

۱۰. کله چي دی مجرور په حرف جار سره وي لکه: "ذَالِکَ بِاَنَّ اللّٰهَ هُوَ الحَقُّ".

۱۱. کله چي مجرور په اضافت (۳) سره وي لکه: "مِثْلَ مَا اَنَّکُمْ تَنْطِقُوْنَ".

د "اِنَّ، اَنَّ" د جواز مشترک ځایونه:

په یو څو ځایو کي "اِنَّ، اَنَّ" دواړه ویل جائز دي:

۱. د "اِذَا" مفاجاتیه وروسته لکه: "خَرَجْتُ فَاِذَا اَنَّ سَعِيْدًا وَاقِفٌ".

---

(۱) د فاعل په صورت کي "لَوْ" چي په معنی د "ثَبَتَ" سره راځي د فاعل او تر "مَا" مصدریه ظرفیه وروسته راسي هغه هم په دې صورت کي یعني د مصدر مرفوع په تاویل کي داخل دئ لکه: "وَلَوْ أَنَّهُمْ آمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوبَةٌ.، لَا اُكَلِّمُكَ مَا اَنَّکَ کَسُوْلٌ بِتَاوِيْلِ مَا ثَبَتَ كَسَلُكَ".

(۲) د مبتداء په صورت کي "لَوْلَا" هم د مصدر مرفوع په تاویل کي داخل دئ لکه: "فَلَوْلَا أَنَّهُ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ".

(۳) کله چي مجرور بالاضافة وي لېکن په دې شرط چي مضاف به لفظ د "اِذْ" او د "حَيْثُ" نه وي. (جامع الدروس العربية)

۲. تر فاء جزائيه وروسته لکه: "مَنْ يُحَادِدِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَأَنَّ لَهُ نَارَ جَهَنَّمَ".

۳. تر تعليل وروسته لکه: "وَصَلِّ عَلَيْهِمْ إِنَّ صَلَاتَكَ سَكَنٌ لَّهُمْ".

تر "لَاجَرَمَ" (۱) وروسته لکه: "لَا جَرَمَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ، يا لکه: لَا جَرَمَ أَنَّكَ عَلَى الْحَقِّ".

چہارم لاء نفی جنس الخ: .................... الی قوله پنجم حروف نداء.

## ترجمه:

څلورم قسم د حروف عامله وو څخه "لَا" نفي جنس دئ د ده اسم اکثره مضاف او منصوب وي، او د ده خبر مرفوع وي لکه: "لَا غُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٌ فِي الدَّارِ" او که چيري د ده اسم نکره مفرده وي نو بيا به دی مبني بر فتحه وي لکه: "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ" او که چيري د "لَا" څخه وروسته اسم معرفه وي نو بيا تکرار د "لَا" د بلي معرفې سره لازم دئ او "لَا" ملغی عن العمل دئ او هغه معرفه مرفوع بنا بر ابتدائيت ده لکه: "لَا زَيْدٌ عِنْدِيْ وَلَا عَمْرٌو". او که چيري د "لَا" څخه وروسته نکره مفرده وي او مکرره وي نو بيا په دې کي د اعراب پنځه صورتونه جائز دي: اول لکه: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ". دوهم "لَا حَوْلٌ وَلَا قُوَّةٌ اِلَّا بِاللهِ". دريم "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةً اِلَّا بِاللهِ". څلورم: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةٌ اِلَّا بِاللهِ". پنځم: "لَا حَوْلٌ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللهِ".

---

(۱) که چيري "لَاجَرَمَ" په معنی د قسم سره وي نو بيا "اِنَّ" مکسوره او که چيري په معنی د "ثَبَتَ" سره وي نو بيا مفتوحه ويل کيږي لېکن د امام فراء په نزد باندي "لَاجَرَمَ" د "لَابُدَّ" په شان دئ يعني "لَا" نفي جنس دئ او "جَرَمَ" مبني بر فتحه اسم د "لَا" دئ لېکن اوس په معنی د قسم سره دئ او د ده وروسته جواب د قسم دئ چي دی يې د خبره څخه مستغني کړئ دئ.

"عِنْدَ الْبَعْض" "لَا" نافيه دئ "جَرَمَ" فعل ماضي دئ په معنی د "ثَبَتَ" او "حَقَّ" سره او مابعد يې فاعل دئ.

او داغه رنګه د "واو" عطف څخه وروسته "اَنَّ" مفتوحه ويل کيږي او معطوف عليه جمله او مفرد دواړه جوړېدای سي لکه: "اِنَّ لَكَ أَلَّا تَجُوعَ فِيهَا وَلَا تَعْرَى، وَأَنَّكَ لَا تَظْمَأُ فِيهَا وَلَا تَضْحَى".

خلاصه دا: چي کم ځای کي د جملې ضرورت وي هلته به "اِنَّ" مکسوره وي او په کم ځای کي چي د مفرد ضرورت وي هلته به "اَنَّ" مفتوحه وي. او په کم ځای کي چي د دواړو ضرورت وي هلته دواړه جائز دي. (قدوة العامل)

## دریمه خبره:

څلورم قسم د حروف عامله څخه "لَا" نفي جنس (¹) دئ يعني (هغه "لَا" چي د جنس څخه د خبر (²) د حکم نفي کوي):

د "لَا" نفي جنس عمل:

"لَا" نفي جنس پر دوو اسمو داخليږي اول ته نصب دوهم ته رفع ور کوي لکه: "لَا غُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٌ فِي الدَّارِ" او د ده عمل د اِنَّ" سره د مشابهت په وجه دئ په تاکيد کي.

د "لَا" نفي جنس د عمل شرائط:

د "لَا" نفي جنس د عمل دپاره اووه (۷) شرطونه دي: څلور د "لَا" دپاره دي دوه د "لَا" د اسم دپاره دي: او يو د "لَا" د خبر دپاره دئ:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي "لَا" به نافيه وي زائده به نه وي احترازي مثال لکه: "لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَلَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ".

---

(¹) "لَا" پر څلور قسمه راځي: (۱) "لَا" ناهيه چي د مضارع سره خاص وي او مضارع ته جزم ور کوي لکه "لَا يَضْرِبْ". (۲) "لَا" زائده لکه: "مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ.، لِئَلَّا يَعْلَمَ أَهْلُ الْكِتَابِ أَلَّا يَقْدِرُونَ عَلَىٰ شَيْءٍ". (۳) "لَا" نافيه چي پر دوه قسمه دئ: اول که چيري پر معرفه داخل سي نو "مُلْغٰى عَنِ الْعَمَلْ" دئ يعني مهمل غير عامل دئ او تکرار د "لَا" لازم دئ سره د بلي معرفه لکه: "لَا زَيْدٌ فِي الدَّارِ وَلَا عَمْرٌو". (۴) "لَا" عاطفه دئ چي د هغه دپاره دري شرطونه دي اول د ده څخه مخکي به اثبات وي دوهم د ده سره به حرف عطف نه وي دريم د ده مابعد به د ده د ماقبل مخالف وي لکه: "جَاءَنِيْ زَيْدٌ لَا عَمْرٌو. اِقْرَأِ الْكِتَابَ لَا الْمَجَلَّةَ". (ضوابط نحويه) دوهم که چيري پر نکره داخل سي نو بيا دی پر دوه قسمه دئ: اول "لَا" مشابه بليس اسم ته رفع خبر ته نصب ور کوي او دی قليل العمل دئ. دوهم "لَا" نفي جنس چي د "اِنَّ" عمل کوي اسم ته نصب او خبر ته رفع ور کوي.

(²) "لَا" نفي جنس د جنس نفي نه کوي بلکه د جنس څخه د خبر حکم نفي کوي مثلا په "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ" کي "لَا" د جنس "رَجُلْ" نفي نه کوي بلکه "رَجُلْ" چي جنس دئ د ده څخه د "اِسْتِقْرَار فِي الدَّارِ" د حکم نفي کوي نه د نفس "رَجُلْ" يعني "رَجُلْ" خو سته په دنيا کي لېکن "مُسْتَقِرٌ فِي الدَّارِ" نه دئ. ځکه د نفي تعلق د احکاماتو سره وي نه د ذواتو سره نو لهذا د "لَا" نسبت و نفي جنس ته په طريقه د مجاز عقلي دئ يعني "لَا الَّتِيْ لِنَفْيِ حُكْمِ الْخَبَرِ عَنِ الْجِنْسِ" او و ده ته "لَا" نفي جنس "لَا تَبْرِئَةْ" "لَا تَنْزِيْهِيَّةْ" هم ويل کيږي. (حاشية خضري جلد ۱ صفحه ۱۴۰)

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چي نفي د جنس به وي، یعني نفي د وحدت به نه وي [۱] احترازي مثال لکه: "لَا رَجُلٌ قَائِمًا بَلْ رَجُلَانِ" دلته نفي د وحدت دي.

۳. دریم شرط یې دا دئ: په نفي د جنس کي به دَی نص وي یعني نفي به عامي وي على السبيل الاحتمال به نه وي احترازي مثال لکه: "لَا رَجُلٌ مُسَافِرٌ" دلته نفي احتمالي دي چي یو "رَجُلٌ" نه دئ مسافر او که جنس "رَجُلٌ" نه دئ مسافر.

۴. څلورم شرط یې دا دئ: چي پر ده باندي به جار [۲] نه وي داخل سوی، احترازي مثال لکه: "غَضِبْتُ مِنْ لَاشَيْئٍ" "سَافَرْتُ بِلَا زَادٍ".

د "لَا" نفي جنس د اسم شرطونه:

د "لَا" نفي جنس د اسم دپاره دوه شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چي دی به نکره وي احترازي مثال لکه: "لَا زَيْدٌ عِنْدِيْ وَلَا عَمْرٌو".

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چي په "لَا" پوري به متصل وي احترازي مثال لکه: "لَا فِيهَا غَوْلٌ وَلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُونَ".

د "لَا" نفي جنس د خبر شرط:

د "لَا" نفي جنس د خبر دپاره شرط دا دئ: چي دی به نکره وي، احترازي مثال لکه: "لَا رَجُلٌ عَمْرٌو".

---

[۱] کم وخت چي نفي عامي مراد سي نو بیا هلته "مِنْ" استغراقیه مقدر ګرځي. او "لَا" متضمن وي معنی د "مِنْ" استغراقیه لره ځکه "مِنْ" د جنس دپاره وضع سوی دئ که چیري "مِنْ" مقدر نه سي نو بیا په "لَارَجُلَ فِي الدَّارِ" کي نفي د "رَجُلٍ وَاحِدٍ" راځي، چي خلاف مقصود دئ او نحاة فرمايي: چي "لَا رَجُلَ" په جواب د سوال مقدر کي راځي یعني د "هَلْ مِنْ رَجُلٍ فِي الدَّارِ" او په سوال کي "مِنْ" موجود دئ. نو په جواب کي به هم مقدر وي چي جواب مطابق د سوال سي. (معجم النحو و الصرف، معجم قواعد اللغة العربية بمع ابن جني جلد ۱ صفحه ۱۶۴ کتاب سبويه)

[۲] که چیري پر "لَا" باندي حرف جار داخل سي نو بیا "لَا" ملغی عن العمل دئ او دده څخه وروسته اسم به مجرور وي په حرف جار سره او عند الکوفيين "لَا" په دې مقام کي حرف نه دئ بلکه په معنی د "غَيْرٌ" سره دئ نو "لِهٰذَا" اوس "لَا" مضاف مجرور دئ لکه: "جِئْتُ بِلَازَادٍ". (شرح التصريح)

## څلورمه خبره:

د "لَا" نفي جنس د اسم اقسام:

د "لَا" نفي جنس اسم پر شپږ قسمه راځي:

۱. کله د "لَا" نفي جنس اسم مضاف وي، لکه "لَا غُلَامَ رَجُلٍ ظَرِيْفٌ فِي الدَّارِ".
۲. کله مشابه باالمضاف وي او مشابه باالمضاف کله په شکل د عامل او معمول کي وي، لکه: "لَا طَالِعًا جَبَلًا"، او کله په شکل د معطوف او معطوف عليه کي وي، لکه: "لَاثَلٰثَةً وَ ثَلَاثِيْنَ".

په دې دوه صورتو کي د "لَا" نفي جنس د اسم د اعراب حکم:

په دې دوو صورتو کي د "لَا" نفي جنس اسم معرب او منصوب وي.

۳. کله د "لَا" نفي جنس اسم مفرد معرفه وي لکه: "لَا زَيْدٌ عِنْدِيْ وَلَا عَمْرٌو".
۴. او کله مفرد نکره مفصوله وي لکه: "لَا فِيْهَا رَجُلٌ وَلَا اِمْرَاَةٌ".

د دغه دوو صورتو اعراب:

په دې دوو صورتو کي "لَا" ملغی عن العمل دئ او تکرار د "لَا" سره د معرفې او نکرې لازم دئ او اسم د "لَا" مرفوع بنا بر ابتدائيت دئ.

۵. کله اسم د "لَا" نفي جنس مفرد نکره موصوله غير مکرره وي لکه: "لَارَجُلَ فِي الدَّارِ".

د دې پنځم قسم د اعراب حکم:

په دې صورت کي به اسم د "لَا" مبني بر فتحه وي.

۶. کله اسم د "لَا" مفرد نکره موصوله مکرره وي لکه: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ".

## پنځمه خبره:

د شپږم قسم د اعراب حکم:

په دغه شپږم صورت کي پنځه (۱) وجهي ویل جائز دي:

۱. دواړه مبني بر فتحه او "لَا" د نفي د جنس دپاره دئ. لکه: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ".

۲. دواړه اسمونه مرفوع بنا بر ابتدائیت دي او "لَا" زائده ملغٰی عن العمل دئ لکه: "لَا حَوْلٌ وَلَا قُوَّةٌ إِلَّا بِاللهِ".

۳. اول اسم مبني بر فتحه او "لَا" د نفي د جنس دپاره وي او دوهم اسم منصوب په تنوین سره وي، او دی عطف وي پر لفظ د اول اسم، او "لَا" زائده وي. لکه: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةً إِلَّا بِاللهِ".

۴. اول اسم مبني بر فتحه او "لَا" د نفي د جنس دپاره او دوهم اسم مرفوع په تنوین سره دئ او دی عطف دئ پر محل د اول اسم او "لَا" زائده دئ. د تاکید د نفي دپاره لکه: "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةٌ إِلَّا بِاللهِ".

۵. اول اسم مرفوع په تنوین سره او "لَا" مشابه بلیس وي او دوهم اسم مبني بر فتحه وي او "لَا" د نفي د جنس دپاره وي لکه: "لَا حَوْلٌ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ".

## شپږمه خبره:

د "لَا" نفي جنس د اسم او خبر حذف (۲):

---

(۱) د "لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ" تقدیر عبارت: که چیري یوه جمله سي نو بیا یې تقدیر داسي را وځي "لَا حَوْلَ عَنِ الْمَعْصِيَةِ وَلَا قُوَّةَ عَلَى الطَّاعَةِ ثَابِتَانِ بِأَحَدٍ إِلَّا بِاللهِ" په دې صورت کي عطف د مفرد پر مفرد دئ یعني د دواړو دپاره یو خبر را وځي. او که چیري د دواړو دپاره جلا جلا خبرونه را ویستل سي نو بیا عطف د جمله پر جمله دئ لکه: "لَا حَوْلَ عَنِ الْمَعْصِيَةِ ثَابِتٌ بِأَحَدٍ إِلَّا بِاللهِ. وَلَا قُوَّةَ عَلَى الطَّاعَةِ ثَابِتٌ بِأَحَدٍ إِلَّا بِاللهِ". په اولو څلورو صورتو کي دواړه تقدیرونه صحیح کیږي لېکن په آخري صورت کي عطف د مفرد پر مفرد نه صحیح کیږي او د دواړو یو خبر نسي جوړېدای ځکه د "لَا" مشابه بلیس خبر منصوب وي، او د "لَا" نفي جنس خبر مرفوع وي. (نصر الخبیر)

(۲) د بنو تمیم په نزد باندي وجوبًا حذف کیږي د حذف وجه دا ده چي دی د استفهام عام په جواب کي راځي او په جواب کي حذف و اختصار وي داغه وجه ده چي د استفهام په جواب کي په "لَا" او "نَعَمْ" سره اکتفاء کیږي د ده څخه وروسته مکمله جمله حذف کیږي لکه: څوک وایي: "هَلْ قَامَ زَيْدٌ". نو به په جواب کي ووایي "نَعَمْ" یا "لَا". لېکن د اهل حجازو په نزد د "لَا" نفي جنس خبر کثیر الحذف د "إِلَّا" سره اکثره راځي لکه: "لَا إِلٰهَ إِلَّا اللهُ. لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللهِ" او کله چي یو اسم د "إِلَّا" څخه وروسته واقع

د خبر حذف:

که چیري د "لَا" نفي جنس خبر د مخاطب په علم کي موجود وو بیا دی غالبًا حذف کیږي لکه: "لَا ضَيْرَ اِنَّا اِلٰى رَبِّنَا لَمُنْقَلِبُوْنَ اَىْ: لَا ضَرَرٌ وَ لَا ضِرَارٌ عَلَيْنَا". او دا غه رنګه "لَا بَأْسَ، وَلَا شَكَّ" کي هم حذف کیږي "اَىْ لَا بَأْسَ عَلَيْكَ وَلَا شَكَّ فِيْهِ".

د اسم حذف:

او کله کله د ده اسم هم حذف کیږي نادرًا لکه: "لَا عَلَيْكَ اَىْ: لَا بَأْسَ عَلَيْكَ" په قرينه سره.

د "لَا" نفي جنس او "لَا" مشابه بليس په مينځ کي لفظي او معنوي فرق:

لفظي فرق:

د دوی په مينځ کي لفظي فرق دا دئ: چي "لَا" مشابه بليس اول اسم ته رفع او دوهم اسم ته نصب ور کوي. او "لَا" نفي جنس دوهم اسم ته چي خبر دئ رفع ور کوي او اول اسم يې په مختلفو طريقو سره راځي.

معنوي فرق:

د "لَا" مشابه بليس په معنٰى کي دوه احتماله وي:

١. نفي د جنس (١).
٢. نفي د فرد (٢).

لکه: "لَا رَجُلٌ قَائِمًا بَلْ رَجُلَانِ" ويل کېدلای سي په "لَا" مشابه بليس کي، او په "لَا" نفي جنس کي صرف يو احتمال وي چي هغه نفي د جنس دي نه د فرد لکه: "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ".

---

وروسته واقع سي نو بيا په هغه کي رفع او نصب دواړه ويل جائز دي. لکه: "لَا سَيْفَ اِلَّا ذُوالفَقَار، وَ ذِيْ الفَقَارِ. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ، اَوْ اِلَّا اللهَ". او که چيري خبر د مخاطب په علم کي نه وو نو بيا يې حذف بالکل جائز نه دئ لکه: "لَا اَحَدَ اَغْيَرُ مِنَ اللهِ وَ لِذَالِكَ حَرَّمَ الفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ". (مسلم شريف) (همع الهوامع صفحه ۴۷۰).

(١) يعني د "لَا رَجُلَ فِي الدَّارِ" دا ترجمه وسي چي هيڅ يو جنس د نارينه نه دئ موجود په "دَار" کي.

(٢) يعني د "لَا رَجُلٌ فِي الدَّارِ" دا ترجمه وسي چي هيڅ يو سړی ولاړ نه دئ په کور کي دا کېدای سي چي دوه سړيان دي ولاړ وي. (نصر الخبير)

## اوومه خبره:

د "لَا" نفي جنس مشابهت د "اِنَّ" سره:

د "لَا" نفي جنس عمل د "اِنَّ" د مشابهت په وجه دئ او دا مشابهت څلور قسمه دئ:

د مشابهت اقسام:

۱. په دخول کي د جملې اسميې يعني دواړه پر جمله اسميه داخليږي.

۲. په تقاضى د صدارت د كلام كي يعني دواړه د صدارت د كلام تقاضا كوي.

۳. په تاكيد كي ځكه "لَا" د تاكيد د نفي دپاره راځي او "اِنَّ" د تاكيد اثبات دپاره راځي.

۴. په نقيض كي يعني "لَا" د "اِنَّ" نقيض دئ لكه: څنګه چي شى پر نظير باندي حمل كيږي داغه رنګه پر نقيض هم حمل كيږي.

د "لَا" نفي جنس او "اِنَّ" په مينځ كي فرق:

د "لَا" نفي جنس او "اِنَّ" په مينځ كي فرق په شپږو شيانو كي دئ:

۱. په عمل كي. يعني "لَا" نفي جنس صرف په اسم ظاهر كي عمل كوي او "اِنَّ" په اسم ظاهر او ضمير دواړو كي عمل كوي.

۲. "لَا" صرف په نكره كي عمل كوي او "اِنَّ" په معرفه او نكره دواړو كي عمل كوي.

۳. "لَا" په خپلو شرائطو سره عمل كوي او "اِنَّ" بلاشرط عمل كوي.

۴. د "لَا" خبر د ظرفيت باوجود نسي مقدم كېداى او د "اِنَّ" خبر په صورت د ظرف كي مقدم كېداى سي.

۵. د "لَا" اسم غير مُنَوَّنْ وي او د "اِنَّ" اسم مُنَوَّنْ وي.

۶. د "لَا" د اسم په معرب والي او مبني والي كي اختلاف دئ او د "اِنَّ" د اسم په معرب والي كي هيڅ اختلاف نسته.

## فائده:

دلته د "لَا" نفي جنس په بحث كي مفرد مقابل د مضاف دئ نه د تثنيې او جمع نو ځكه تثنيه او جمع د مفرد په حكم كي داخل دي.

# جملے:

| عنوان | خبریہ انشائیہ مع الاقسام | مسند | مسندالیہ | تعیین اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی، تقدیری | سماعی، غیر سماعی | تعیین معرب المضارع مع الاقسام | تعیین حروف عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هٰذَا | انشائیہ فعلیہ | اُدْعُوْ | اَنَا | ۳. اَنَا، اَنْتَ، هُ، ذَا | ۱. معرب | ۷. مبنی | بالحرکت | لفظی (۲) حکم | سماعی | (اُدْعُوْ) حالت رفعی (۳) حکم | ۲. (يَا) حرف نداء، (عَنْ) جارہ |
| مَا قَائِمٌ بَكْرٌ | خبریہ اسمیہ | قَائِمٌ | بَكْرٌ | ۱. هُوَ | ۲. معرب | ۲. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | + | ۱. (مَا) ملغی عن العمل |
| لَعَلَّ السَّاعَةَ قَرِيبٌ | خبریہ اسمیہ | قَرِيبٌ | السَّاعَةَ | + | ۲. معرب | ۱. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | + | ۱. (لَعَلَّ) مشبہ بالفعل |
| وَمَا ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيزٍ | خبریہ اسمیہ | عَلَى اللّٰهِ بِعَزِيزٍ | ذٰلِكَ | ۱. ذٰلِكَ | ۲. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | + | ۲. (مَا) المشابہ بلیس، (بَا) جارہ |
| وَمَا أَمْرُنَا إِلَّا وَاحِدَةٌ | خبریہ اسمیہ | وَاحِدَةٌ | أَمْرُنَا | ۱. نَا | ۲. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | + | (مَا) مشابہ بلیس |
| مَا الْمَعْرُوفُ ضَائِعاً عِنْدَ الْكِرَامِ | خبریہ اسمیہ | ضَائِعاً | اَلْمَعْرُوفُ | ۲. هُوَ، عِنْدَ | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱، ۳) حکم | غیر سماعی | + | (مَا) مشابہ بلیس |
| إِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُونَ | خبریہ اسمیہ | حَقٌّ | وَعْدَ اللّٰهِ | ۲. هُمْ، هُمْ | ۵. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | (لَا يَعْلَمُونَ) حالت رفعی (۳) حکم | ۲. (إِنَّ، لٰكِنَّ) |
| إِنَّ أَبَانَا لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ | خبریہ اسمیہ | لَفِي ضَلَالٍ مُبِينٍ | أَبَانَا | ۲. نَا، هُوَ | ۳. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی (۱-۲) حکم | غیر سماعی | + | (إِنَّ، فِي) |
| أَلَا إِنَّ لِلّٰهِ مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ | خبریہ اسمیہ | لِلّٰهِ | مَنْ فِي السَّمَاوَاتِ وَمَنْ فِي الْأَرْضِ | ۵. مَنْ، مَنْ، هُوَ، هُوَ، هُوَ | ۳. معرب | ۱۱. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱، ۴) حکم | سماعی غیر سماعی | + | إِنَّ، فِي، لَام جارہ |
| كَأَنَّهُنَّ الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ | خبریہ اسمیہ | الْيَاقُوتُ وَالْمَرْجَانُ | هُنَّ | ۱. هُنَّ | ۲. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | + | كَأَنَّ |
| وَمَا صَاحِبُكُمْ بِمَجْنُونٍ | خبریہ اسمیہ | بِمَجْنُونٍ | صَاحِبُكُمْ | ۲. كُمْ، هُوَ | ۲. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | + | ۲. (مَا) مشابہ بلیس، (بَا) جارہ |
| إِنَّ بَطْشَ رَبِّكَ لَشَدِيدٌ | خبریہ اسمیہ | لَشَدِيدٌ | بَطْشَ رَبِّكَ | ۲. كَ، هُوَ | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حکم | غیر سماعی | + | (إِنَّ) مشبہ بالفعل |

# التمرین:

"رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُمْ،، يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَذْبَحُوا بَقَرَةً،، لَا رَيْبَ فِيهِ،، وَمَا هُمْ بِمُؤْمِنِينَ،، لَا عِلْمَ لَنَا،، يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ،، وَمَا يُدْرِيكَ لَعَلَّهُ يَزَّكَّى،، فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ،، يَا بَنِي إِسْرَائِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِيَ الَّتِي أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ".

قسم پنجم حروف نداء الخ: ............ الی قولہ فصل دوم در حروف عاملہ.

**ترجمه:**

پنځم قسم حروف نداء دي او هغه پنځه دي: "يَا، اَيَا، هَيَا، اَیْ، هَمْزَه مَفْتُوْحَه". دغه حروف منادی مضاف ته نصب ور کوي لکه: "يَا عَبْدَاللهِ" او منادی مشابه بالمضاف ته هم نصب ور کوي لکه: "يَا طَالِعًا جَبَلًا" او منادی نکره غیر معین ته هم نصب ور کوي، لکه: ړوند چي وايي: "يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ". او منادی مفرده معرفه مبني وي پر علامه د رفع یعني چي نه مضاف وي او نه شبه مضاف وي، لکه: "يَا زَيْدُ وَيَا زَيْدَانِ، وَيَا مُسْلِمُوْنَ، وَيَا مُوْسٰی، وَيَا قَاضِيْ".

پوه سه چي "اَیْ و هَمْزَهْ" د قریب دپاره استعمالیږي او "اَيَا، هَيَا" د لري دپاره او "يَا" عامه ده.

## الدرس الثاني والعشرون:

د نن د سبقه خلاصه شپږ (٦) خبري دي:

**اوله خبره:**

پنځم قسم د حروف عامله وو څخه حروف نداء دي.

د نداء لغوي او اصطلاحي معنٰی:

نداء په لغت کي آواز ور کولو ته ویل کیږي او په اصطلاح کي حروف نداء هغه حروف دي چي د دوی په ذریعه سره بل څوک ځان ته متوجه کیږي، لکه "يَا زَيْدُ".

د حروف نداء تعداد:

حروف نداء پنځه دي: "يَا، اَيَا، هَيَا، اَیْ، هَمْزَه مَفْتُوْحَه" لکه: "يَا عَبْدَاللهِ، اَيَا عَبْدَاللهِ، هَيَا عَبْدَاللهِ، اَیْ عَبْدَاللهِ، اَعَبْدَاللهِ".

**فائده:**

"اَیْ" و "همزه مفتوحه" د قريب يعني د نزدې سړي را بللو دپاره استعماليږي او "اَيَا، هَيَا" د بعيد يعني د لري دپاره استعماليږي او "يَا" حرف نداء عامه (۱) ده د دواړو دپاره استعماليږي.
په منادی (۲) کي وجود د څلورو شيانو وي:

۱. "نِدَاء". (اواز).
۲. "مُنَادِيْ" (اواز کونکی).
۳. "مُنَادٰی" (هغه لفظ چي تر حروف نداء وروسته استعماليږي او دی را بلل سوی وي).
۴. مقصود بالنداء هغه څه دي چي "مُنَادِيْ" يې د "مُنَادٰي" څخه طلبوي.

**دوهمه خبره:**

د "مُنَادٰی" اقسام:
"مُنَادٰي" پر دولس (۱۲) قسمه راځي:

۱. "مُنَادٰي" کله مضافه وي لکه: "يَاعَبْدَاللهِ".
۲. او کله شبه مضافه (۱) وي لکه: "يَاطَالِعًا جَبَلًا".

---

(۱) په حروف نداء کي صرف "يَا" حذف کېدای سي، او پر لفظ د "اللهُ" او "اَيُّهَا" او "اَيَّتُهَا" باندي د حروف نداؤ څخه صرف "يَا" داخلېدای سي.
په حروف نداء کي "يَا" پر اسم باندي کله د تنبيه دپاره داخليږي نو په دې وخت کي دا پر فعل او حرف باندي هم داخلېدای سي لکه: "اَلَا يَا اُسْجُدُوا، يَالَيتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ".
(۲) مثال يې لکه: "يَازَيْدُ اِيْتِ بِالْمَاءِ". په دې مثال کي "يَا" حرف نداء ده "زَيْدٌ" مُنَادٰی دئ "متکلم" مُنَادِي دئ او "اِيْتِ بِالْمَاءِ" مقصود بالنداء، "يَا" جواب نداء دئ. (از مرتب عفي عنه)
د جمله ندائيه ترکيب:
"يَا" حرف نداء قائم مقام د "اَدْعُوْکَ" "اَدْعُوْ" فعل د "اَنَا" ضمير يې فاعل "زَيْدٌ" منادی قائم مقام د کاف اسمي خطابي دئ چي په "اَدْعُوْکَ" کي دئ دا به مفعول به سي د "اَدْعُوْ" فعل دپاره. فعل سره د خپله فاعله او مفعوله دا به نداء سي او "اِيْتِ بِالْمَاءِ" دا به جمله جواب د نداء سي او جمله انشائيه ندائيه به سي. (از مرتب عفي عنه)

۳. او كله مفرد نكره غير معين وي (۲) لكه: كله چي "أعمیٰ" (ړوند) ووايي: "يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ".

د دې صورتو اعراب:

په دې درو صورتو کې به منادی معربه منصوبه (۳) وي: لکه: "يَا عَبْدَاللهِ، يَا طَالِعًا جَبَلًا، يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ".

۴. منادی کله مفرده معرفه (۴) وي لکه: "يَا زَيْدُ، يَا مُوْسیٰ".

---

(۱) شبه مضاف و هغه ته وايي: چي د يو اسم معنى بغير د بل اسم څخه نه تاميږي لكه: څنګه چي د مضاف معنى بغير د مضاف اليه څخه نه تاميږي. او دې پر پنځه قسمه راځي: (۱) منادى شبه مضاف كله په صورت د عامل كي وي، خواه كه عامل رافع او كه ناصب وي، لكه: "يَا حَسَنًا وَجْهُهُ، يَا طَالِعًا جَبَلًا، يَا رَفِيْقًا بِالْعِبَادِ". (۲) كله په صورت د معطوف او معطوف عليه كي وي، او معطوف قبل النداء د يو چا دپاره علم وي، لكه: "يَا ثَلٰثَةً وَّثَلَاثِيْنَ". (۳) او كله په صورت د موصوف كي وي، او صفت يې مفرد وي، لكه: "يَا رَجُلًا كَرِيْمًا اَقْبِلْ". (۴) كله په صورت د موصوف كي وي ليكن صفت يې جمله وي لكه: "يَا عَظِيْمًا يُرْجٰى لِكُلِّ عَظِيْمٍ". (۵) كله په صورت د موصوف كي وي ليكن صفت يې ظرف وي، لكه: "اَلَا يَا نَخْلَةً مِنْ ذَاتِ عِرْقٍ" "عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللهِ السَّلَامُ". په دې شعر كي "نَخْلَةٌ" موصوف او "مِنْ ذَاتِ" والا جمله په اعتبار د "كَانَ" سره صفت دئ د "نَخْلَةٌ" دپاره. (ضوابط نحويه)

(۲) نكره غير معينه كه څه هم په حقيقت كي نكره نوم دئ د غير معين شي بيا يې هم وروسته صفت په غير معينه سره راغلى دئ د هغه وجه دا ده: چي دا خو يا تفسير دنكره دئ او يا د ده ذكر د نكره د تاكيد دپاره وي هغه په دې شكل چي د حرف نداء د دخول څخه وروسته بيا هم د ده نكره پاته كېدل يو نا قابل قبوله خبره وه، ځكه حرف نداء د معرفه د اسبابو څخه يو مشهور سبب دئ نو چي كله يې تاكيد په غير معينه سره راغلئ نو دغه شبه يې لري سوه. دريم د غير معينه صفت په راوړلو سره د نكره اقسامو ته اشاره وه چي منادى نكره دوه قسمه ده: (۱) اول قسم چي د حرف نداء د دخول څخه مخكي نكره وي او ددخول بعد معرفه وي لكه: يو عام سړى ووايي: "يَا رَجُلُ". (۲) او دوهم قسم هغه نكره ده چي قبل النداء هم نكره وي او بعد النداء هم نكره وي، لكه: "اَعْمٰى" چي ووايي: "يَا رَجُلًا خُذْ بِيَدِيْ". ځكه عام سړي ته هغه "رَجُل" معين وي او په ستركو يېويني ليكن "اَعْمٰى" ته غير معين وي ځكه هغه يې په ستركو نه ويني. نو عام "رَجُل" مراد وي، نو د دې وجي د نكره صفت غير معين راوړل سو. چي اشتباه ختمه سي.

(۳) دوى ځكه معرب منصوبه دي: چي علت د نصب چي مفعوليت دئ هغه په دوى كي متحقق دئ د يو بدلونكي په وجه نه بدليږي. (همع الهوامع)

(۴) منادى مفرد معرفه:

دلته مفرد مقابل د مضاف او شبه مضاف دئ نو ځكه تثنيه او جمع په مفرد كي داخل دي او معرفه عامه ده: خواه كه قبل النداء معرفه وي لكه: "يَا زَيْدُ" او يا بعد النداء معرفه وي لكه: عام سړى چي ووايي: "يَا رَجُلُ". نو ددې حكم دا دئ: چي دا به مبني

۵. منادی مفرده نکره معینه مقصوده وي لکه: کله چي عام سړی ووايي: "يَا رَجُلُ".
د دې دوو صورتو اعراب:
په دغه دوو صورتو کي به منادی مبني وَي، پر علامه د رفع او علامه د رفع په مفرد کي ضمه ده لکه: "يَا زَيْدُ يَا رَجُلُ"، او په تثنیه کي الف دئ لکه: "يَا زَيْدَانِ وَ يَا رَجُلَانِ" او په جمع کي واو دئ: لکه: "يَا زَيْدُوْنَ وَيَا مُسْلِمُوْنَ".

٦. منادی کله مستغاثه باللام وي لکه: "يَا لَزَيْدٍ" په دې وخت کي دا مجروره وي (¹).

٧. منادی کله مستغاثه بالالف وي لکه: "يَا زَيْدَاهُ". په دې وخت کي دا مبني بر فتحه وي.

٨. منادی مستغاثه کله پر خپل حال باندي پاته وي لکه: "آلَا يَا قَوْمُ لِلْعَجَبِ".

---

وي پر علامه د رفع لکه: "يَا رَجُلُ، يَا مُوْسٰى، يَا زَيْدُ، يَا قَاضِيْ". دلته منادی مفرده معرفه د کاف اسمي خطابي (یعني هغه کاف چي د ده پر ځای اسم واقع کېدای سي). پر ځای واقع سوې ده. او کاف اسمي خطابي د کاف حرفي خطابي (یعني هغه کاف چي د ده پر ځای د اسم واقع کېدل صحیح نه وي لکه څنګه چي په "ذَالِكَ" کي دي) لفظا و معنا مشابهت لري لفظا مشابهت یې په شکل او صورت کي دئ او معنا مشابهت یې دا دئ: لکه: څنګه چي کاف حرف خطابي د مفرد معرفه د خطاب دپاره راځي دغه رنګه کاف اسمي خطابي هم د مفرد معرفه د خطاب دپاره راځي او داغه رنګه په افراد او خطاب او تعریف کي یې هم سره مشابهت دئ، نو کاف اسمي خطابي د ده سره د دې مشابهت په وجه مبني سو چونکه منادی د کاف اسمي خطابي پر ځای واقع کیږي او د کاف اسمي خطابي سره مشابهت لري په افراد، تعریف، او خطاب کي نو ځکه منادی مفرد معرفه به هم مبني وي. که څه هم منادی بالذات مبني نه ده. بلکه په واسطه د کاف اسمي خطابي سره مبني ده ځکه د یو اسم مبني پر ځای د یو اسم واقع کېدل د بناء دپاره نه دئ کافي. بلکه د مبنی الاصل سره مشابهت ضروري دئ نو ځکه دا بالواسطه مبني سوه که څه هم اصل په نداء کي سکون دئ لېکن منادی مبني علی الحرکت سوه د هغه وجه دا ده چي د دې نداء عارضي ده اصلي نه ده او مبني علی الضم سوه او في معناه لکه: "الف واو" په تثنیه او جمع کي دا ځکه چي د فتحې په صورت کي التباس د منادی منصوب سره راځي او د کسرې په صورت کي یې التباس د هغه منادی سره راځي چي هغه مضاف سي و یا د متکلم ته او یا حذف سي صرف په کسره اکتفاء وسي لکه: په "يَا غُلَامِ" کي نو ځکه دا مبني بر ضمه سوه دوهمه وجه یې د بنا داده چي دا د ظروف غایاتو سره مشابهت لري ځکه دا هم غایات واقع کیږي او پر دې باندي کلام تامیږي. (اسرار العربیة و همع الهوامع)

(¹) فائده: په "يَا لَزَيْدٍ" کي که چیري لام مفتوح سي نو بیا دا مستغاث ده او که مجرور سي نو بیا دا مستغاث له ده. (ضوابط نحویه)

۹. منادیٰ مندوب کله چي پر مړي باندي اظهار د غم کيږي لکه: "وَاسَيِّدَاهُ" او يا د درد په وخت کي استعماليږي لکه: "وَا كَبِدَاهُ" د دې دپاره درې صورتونه دي. "اُنْظُرْ فِي الْحَاشِيَةِ" (۱).

۱۰. منادیٰ متعجب منه چي کله پر يو شي باندي د کثرت په وجه اظهار د تعجب وسي لکه: "يَالَلْمَاءِ، يَامَاءُ، يَامَاءُ يَالَلْطَرَبُ، يَاطَرَبَا، يَاطَرَبِ يَالَلدَّوَاهِيْ" دا د منادیٰ مستغاثي په حکم کي ده درې وجهي پکښي ويل جائز دي.

۱۱. منادیٰ مُهَدَّدَه چي په هغه سره اظهار د تهديد او زجر کيږي لکه: "يَالَزَيْدٍ لَاَقْتُلَنَّكَ" دا هم د مستغاثي باللام په حکم کي ده.

۱۲. منادیٰ کله مرخم وي يعني د تخفيف په وجه يې په آخر کي يو حرف حذف سوی وي. لکه: د "يَا حَارِثُ" څخه "يَا حَارُ، يَا حَارِ" ويل. د "يَا مَالِكُ" څخه "يَامَالُ، يَا مَالِ" ويل. د "يَا مَنْصُوْرُ" څخه "يَامَنْصُ" ويل. په دې صورت کي پر منادیٰ دوه اعرابه ويل جائز وي: (۱) ضمه د منادیٰ مفرد معرفې په وجه (۲) کسره د قبل الترخيم يعني پخواني اعراب په وجه.

## دريمه خبره:

منادیٰ (۲) چي کله معرف باللام سي:

(۱)

۱. چي د دې اختتام پر هغه الف زائده باندي وسي چي د تاکيد د تفجع يا د توجع دپاره وي لکه: "وَا كَبِدَا".

۲. چي د دې اختتام پر الف زائده او پر هاء سکته باندي وسي لکه: "وَاحُسَيْنَاهُ".

۳. او يا دا پر خپل حال باندي پاته سي لکه: "وَا حُسَيْنُ".

(۲) د "اَللّٰهُمَّ" په ميم کي اختلاف دئ عند البصريين ميم د حرف نداء محذوف په عوض کي دئ ځکه دی په اصل کي "يَا اَللّٰهُ" وو چي کله ميم مشدد د ده په آخر کي ملحق سو نو بيا "يَا" حذف سوه ځکه "يَا" و ميم دواړه دوه حرفيزه کلمې دي، او کم مقصد چي د "يَا اَللّٰهُ" څخه حاصليږي هغه مقصد د "اَللّٰهُمَّ" څخه هم حاصليږي نو دا د دې دليل دئ چي "ميم" د "يَا" عوض دئ نو ځکه دواړه نسي سره جمع کېدای چي بيا جمع په مينځ د عوض او معوض کي لازميږي.

منادی چي کله معرفه باللام سي نو د حرف نداء او معرف باللام په مینځ کي د فصل دپاره د مذکر دپاره "اَيُّهَا" او د مؤنث دپاره "اَيَّتُهَا" راوړل کيږي لکه: "يَا اَيُّهَا الرَّجُلُ، او يَا اَيَّتُهَا النَّفْسُ الْمُطْمَئِنَّةُ". په دې صورت کي "اَيُّ، اَيَّةٌ" منادی جوړيږي او په ترکيب کي موصوف يا مبين واقع کيږي "اَلرَّجُلُ" صفت يا عطف بيان واقع کيږي، او "هَا" زائده ده دپاره د تنبيه.

د حروف (۱) نداء حذف:

کله کله حرف نداء حذف کيږي: لکه: "يُوسُفُ أَعْرِضْ عَنْ هَذَا، أَنْ أَدُّوا إِلَيَّ عِبَادَ اللهِ". په اصل کي "يَا يُوْسُفُ، يَا عِبَادَ الله" وو.

لېکن په شپږو (٦) ځايو کي د دې حذف نا جائز دئ:

---

او عند الکوفيين "ميم" د "يَا" ځخه عوض نه دئ او د ده اصل "يَا اللهُ آمَنَّا بِخَيْرٍ" وو د کثرت الاستعمال په وجه تخفيفا يو ځه حصه حذف سوه لکه چي په "اَيُّ شَيْئٍ" کي "اَيْش" ويل کيږي لېکن عند البصريين د ضرورت شعري په وجه دواړه سره جمع کېداى سي. (الانصاف جلد ۱ صفحه ۳۱۷ و حاشية الصبيان جلد ۳ صفحه ۱۲٦)

"اَللّٰهُمَّ" درې قسمه استعماليږي:

۱. صرف د نداء دپاره.

۲. د تمکين جواب دپاره چي جواب د مخاطب په ذهن کي راسخ سي لکه: "اَللّٰهُمَّ نَعَمْ".

۳. کله د ندرت او قلت پر وقوع باندې د دلالت کولو دپاره استعماليږي لکه: محققين، مصنفين يې په جواب کي ذکر کوي لکه: "اَللّٰهُمَّ اِلَّا اَنْ يُّقَالَ". (حاشية خضري جلد ۴ صفحه ۷٦)

**فائده:**

په منادی معرف باللام کي د "اَيُّهَا، اَيَّتُهَا" فاصله راوړل ځکه ضروري دي: چي "يَا" هم آله د تعريف ده او الف لام هم آله د تعريف ده چي اجتماع د آلتي يعني د دوو آلو د تعريف رانسي پر يوه اسم باندې. (نصر الخبير)

(۱) د جمهورو علماء په نزد باندې حرف نداء پر ضمير نه داخليږي که ځه هم خضري يو روايت نقل کړى دئ چي "يَاهُ" او "مَنْ لَاهُ" لېکن هغه شاذ دي او صوفياء کرامو دا جواب ور کړى دئ چي د باري تعالى دوه عَلَم ذاتي دي: (۱) "الله". (۲) "هُوَ" لېکن ضمير غائب او متکلم خو د نداء مناقض دي ځکه نداء د خطاب تقاضا کوي او ضمير مخاطب ځکه منادی نسي جوړېداى چي د ده جمع کول غير مستحسن دي او دى پخپله يو د بله ځخه مستغني کوي. (حاشية خضري و شرح المفصل جلد ۲ صفحه ۱٦)

**فائده:**

او په کم صورت نې چي پر منادی باندې رفع و نصب دواړه ويل جائز دي په هغه صورت کي د ده پر توابع يعني پر صفت و غيره باندې هم دوه اعرابه ويل جائز دي لکه: "يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَالطَّيْرَ فِي قِرَاءَةِ وَالطَّيْرُ". (جامع الدروس العربية)

۱. منادی چي کله اسم جنس نکره غیر معین وي.
۲. اسم اشاره.
۳. مستغاثه.
۴. مندوب.
۵. متعجب منه.
٦. منادیٰ بعیده ځکه دلته مراد "مَدُّ الصَّوْت" دئ "وَالْحَذْفُ يُنَافِيْهِ".

د منادی حذف:

کله کله منادی هم حذف کیږي لکه: "اَلَا يَا اُسْجُدُوْا: اَیْ اَلَا يَا قَوْمُ اُسْجُدُوْا".

د منادی اضافت و "يَا" متکلم ته:

منادی چي کله مضاف سي و "يَا" د متکلم ته نو په دې کي درې صورتونه جوړیږي:

۱. د "يَا" حذف او د "دال" کسره، لکه: "يَا عِبَادِ"، په اصل کي "يَا عِبَادِيْ" وو.
۲. د "يَا" ابدال په "الف" سره لکه: "يَا صَدِيْقَا"، په اصل کي "يَا صَدِيْقِيْ" وو.
۳. د "يَا" ابدال په "تاء" سره لکه: "يَا أَبَتِ" په اصل کي "يَا اَبِيْ" وو.

فصل دوم در حروف عامله در فعل مضارع الخ:.................. الی قوله قسم دوم حروف که فعل مضارع را جزم کند.

**ترجمه:**

دوهم فصل د حروف عامله په بیان کي دئ چي په فعل مضارع کي عمل کوي هغه پر دوه قسمه دئ اول قسم هغه حروف دي چي فعل مضارع ته نصب ور کوي ه څلور دي اول: "اَنْ" دئ لکه: "اُرِيْدُ اَنْ تَقُوْمَ". او "اَنْ" سره د فعل د مصدر په معنیٰ سره راځي یعني "اُرِيْدُ قِيَامَکَ" د دې وجهي وده ته "اَنْ" مصدریه ویل کیږي. دوهم "لَنْ" دئ لکه: "لَنْ يَّخْرُجَ" او "لَنْ" د نفي د تاکید دپاره وي. دریم: "کَیْ" دئ لکه: "اَسْلَمْتُ کَیْ اَدْخُلَ الْجَنَّةَ". څلورم: "اِذَنْ" دئ لکه: "اِذَنْ اُکْرِمَکَ" د هغه چا په جواب کي چي وایي: "اَنَا آتِيْکَ غَدًا".

پوه سه! چي "اَنْ" تر شپږو حروفو وروسته مقدر کیږي او فعل مضارع ته نصب ور کوي اول د "حَتّٰی" څخه وروسته لکه: "مَرَرْتُ حَتّٰی اَدْخُلَ الْبَلَدَ". دوهم د "لَامِ جَحَدْ" څخه وروسته لکه: "مَا کَانَ

اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ". دريم در "أَوْ" وروسته چي په معنٰی د "إِلٰی أَنْ" يا "إِلَّا أَنْ" سره وي، لکه: "لَأَلْزَمَنَّكَ أَوْ تُعْطِيَنِيْ حَقِّيْ" او داغه رنګه در "وَاوِ صَرْف" او "لَامِ كَيْ" او تر هغه "فَا" وروسته چي په جواب د شپږو شيانو کې راځي هغه شپږ شيان: (۱) امر. (۲) نهي. (۳) نفي. (۴) استفهام. (۵) تمني. (٦) عرض او د دې مثالونه مشهوره دي.

## څلورمه خبره:

کم وخت چي مصنف رحمه الله د هغه حروف عامله وو څخه چي په اسم کي يې عمل کوي د هغه د بحث څخه فارغ سو. اوس يې شروع وکړه په بحث کي د هغه حروف عامله وو چي هغه په فعل مضارع کي عمل کوي هغه دوه قسمه حروف دي:

۱. حروف نواصب.
۲. حروف جوازم.

د حروف نواصب عمل:

حروف نواصب پر فعل مضارع باندي داخليږي د فعل مضارع و آخر ته نصب ورکوي لکه: "لَنْ يَّضْرِبَ، يُرِيْدُ اللهُ اَنْ يُّخَفِّفَ عَنْكُمْ".

د حروف نواصب مختصره تشريح:

اول "اَنْ" (۱) دئ په حروف نواصبو کي "اَنْ" د "اُمُّ الْبَابْ" حيثيت لري نو ځکه دی هم لفظا عمل کوي او هم تقديرًا او دَی حرف استقبال مصدريه دئ ماضي، مضارع او امر درې سره په تاويل د مصدر سره اړوي او دَی نصب صرف و مضارع ته ورکوي.

---

(۱) په حروف نواصبو کي "اَنْ" د "اُمُّ الْبَابْ" حيثيت لري ځکه دی متفق عليه دئ صرف فعل مضارع ته نصب ورکوي لېکن دده صله ماضي، مضارع، امر درې سره راتلای سي. ابوبکر ابن طاهر ويلي دي چي "اَنْ" حرف مشترک دئ کله چي دی د مضارع څخه علاوه پر بل شي باندي داخل سي نو بيا دی ناصبه نه دئ ځکه دَی د استقبال دپاره متعين دئ لکه: "سِيْن و سَوْفَ" چي د مضارع څخه علاوه پر بل شي باندي نسي داخلېدای داغه رنګه "اَنْ" چي ناصبه استقباليه وي د مضارع څخه علاوه بل ځای نسي داخلېدای.

د "اَنْ" د عمل دپاره اته شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چي "اَنْ" به مصدریه وي، احترازي مثال یې لکه: "اَمَرْتُکَ اَنْ اِذْهَبْ" دلته "اَنْ" تفسیریه دئ.

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چي د ده څخه مخکي به "لَمْ" نه وي.

۳. دریم شرط یې دا دئ: چي د ده څخه مخکي به "لَنْ" نه وي.

۴. څلورم شرط یې دا دئ: "اَنْ" به مخففه من المثقله نه وي احترازي مثال لکه: "عَلِمَ أَنْ سَيَكُونُ مِنْكُمْ".

۵. پنځم شرط یې دا دئ: "اَنْ" به شرطیه نه وي احترازي مثال لکه: "وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ أَنْ صَدُّوكُمْ".

٦. شپږم شرط یې دا دئ: "اَنْ" به نافیه نه وي احترازي مثال لکه: "أَنْ يُؤْتَىٰ أَحَدٌ مِثْلَ مَا أُوتِيتُمْ".

---

او د جمهور علماء په نزد باندي "اَنْ" زائده عمل نسي کولای ځکه دی په دې وخت کي په مضارع پوري نه دئ خاص او دی بعد الاختصاص عمل کوي لېکن د اخفش په نزد باندي دی عمل کوي "حَمْلًا عَلَى الْمَصْدَرِيَّه، و قياسًا عَلَى الْبَاءِ الزَّائِدَة" لېکن دا حمل کمزوری دئ ځکه د ده او د باء په مینځ کي فرق دئ ځکه باء زائده مختصه وي په اسم پوري.

د "اَنْ" د معمول معمول پر "اَنْ" نسي مقدم کېدای ځکه دی د صلې معمول دئ لکه: څنګه چي خو دي صله نسي مقدم کېدای داغه رنګه د صلې معمول هم نسي مقدم کېدای لېکن عند الفراء تقدیم جائز دئ. او "اَنْ" چي عمل کوي د "اَنْ مُخَفَّفَة مِنَ الْمُثَقَّلَة" سره د مشابهت په وجه یې کوي لفظي مشابهت یې په صورت و شکل کي دئ او معنوي مشابهت هغه دا دئ چي دوی دواړه مصدریه دي ځپل مدخول په تاویل د مصدر سره اړوي. (تنویر)

ضابطه: کم "اَنْ" چي د "فعل یقین" څخه وروسته راسي هغه همېشه "اَنْ مُخَفَّفَة مِنَ الْمُثَقَّلَة" وي او په دې وخت کي دی مصدریه نه دئ لکه "عَلِمَ أَنْ سَيَكُونُ" او داغه رنګه هر هغه فعل چي د یقین معنی په کښي وي لکه: "وُجْدَانَ، يَقِيْن، تَحْقِيْق، شَهَادَت، ظُهُور" و غیره. او کم "اَنْ" چي د ظن څخه وروسته واقع سي په هغه کي دوې وجي جائز دي. (۱) "اَنْ" ناصبه جوړېږي. (۲) یا "اَنْ مُخَفَّفَة مِنَ الْمُثَقَّلَة" دئ چي د ده په وجه پر فعل مضارع باندي رفع، نصب دواړه ویل جائز دي لکه: "ظَنَنْتُ اَنْ سَيَقُومُ". او کم "اَنْ" چي د علم و ظن څخه علاوه د "طَمَع، رِجَاء، خَشِيَت، خَوْف، شَکّ، وَهَمْ، اِعْجَاب" و غیره څخه وروسته واقع سي نو بیا دی "اَنْ" مصدریه دئ مخففه نه دئ. (جامع الدروس العربیة)

۷. اووم شرط یې دا دئ: "أَنْ" به تفسيريه نه وي احترازي مثال لكه: "وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ".

۸. اتم شرط یې دا دئ: "أَنْ" به زائده نه وي احترازي مثال لكه: "فَلَمَّا أَنْ جَاءَ الْبَشِيرُ".

## پنځمه خبره:

د "أَنْ" مقدره ځايونه (۱):

---

(۱) "أَنْ" په حروف نواصبو کې چونکه د "أُمُّ الْبَابِ" حیثیت لري نو ځکه دی که چیري په لفظو کې وي هم عمل کوي او که مقدر وي هم عمل کوي. او د ده د مقدر کېدو دپاره دوه حالتونه دي.

۱. حال وجوب.

۲. حال جواز.

د حال وجوب دپاره دوه مقامونه دي. (۱) د حروف جاره څخه وروسته. (۲) د حروف عطف څخه وروسته. حروف جاره دوه دانې دي اول د "لَامِ جَحَدْ" څخه وروسته "أَنْ" مقدر وي. "جَحَدْ" معنی انکار او دی د تاکید د نفي دپاره راځي او "لَامِ جَحَدْ" هغه دئ چې د "كَوْن" ماضي منفي څخه وروسته راسي لکه: "فَمَا كَانَ اللّٰهُ لِيَظْلِمَهُمْ.. لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ.. مَا كَانَ اللّٰهُ لِيُعَذِّبَهُمْ".

(۲) دوهم حرف جر چې د ده څخه وروسته "أَنْ" مقدر وي هغه "حَتّٰى" جاره دئ په دې شرط چې فعل مستقبل به وي خواه که په وقت د تکلم کې وي لکه: "فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتّٰى تَفِيءَ إِلٰى أَمْرِ اللّٰهِ" يا په اعتبار د ماقبل سره وي لکه: "وَزُلْزِلُوا حَتّٰى يَقُولَ الرَّسُولُ" نو په دې صورت کې په "حَتّٰى" کې درې معناګاني جوړېدای سي. دوهم د حرف عطف څخه وروسته چې "أَنْ" وجوبًا مقدر کېږي هغه درې دانې دي: (۱) واو المعيت. (۲) فا سببيه چې کله مراد د دوی څخه سببيت وي او په جواب د نفي يا طلب کې وي لکه: "لَمْ يَرْحَمْ فَتُرْحَمَ. هَلْ تُرْحَمُوْنَ فَتَرْحَمُوْا. لَا تَأْمُرُوْا بِالْخَيْرِ وَ تُعْرِضَ عَنْهُ لَا تَأْمُرُوْا بِالْخَيْرِ وَ تُعْرِضَ عَنْهُ". (۳) د "أَوْ" څخه وروسته چې کله د ده په ځای کې (إِلٰى يا إِلَّا) استثنائيه صحيح وي لکه: "أَوْ أُدْرِكَ الْمُنٰى أَيْ إِلٰى أَنْ أُدْرِكَ الْمُنٰى يا أَوْ تَسْتَقِيْمَا أَيْ إِلٰى أَنْ تَسْتَقِيْمَا".

حال جواز: د حال جواز دپاره درې مقامونه (۱) د لام جر غير حجديه يعني د لام کی څخه وروسته لکه: "وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ أَيْ لِأَجْلِ أَنْ تُبَيِّنَ" (۲) د لام عقيبت او لام نتيجه څخه وروسته لکه: "فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا". (۳) د واو، فا، ثم، او څخه وروسته چې کله مراد د دوی څخه عطف وي او د دوی عطف پر اسم صريحي وي د واو مثال لکه: "وَلُبْسُ عَبَاءَةٍ وَتَقَرَّ عَيْنِيْ أَيْ وَقُرَّةُ عَيْنِيْ". د فا مثال لکه: "لَوْلَا تَوَقُّعُ مُعْتَرٍّ فَأُرْضِيَهُ أَيْ فَأَرْضَاؤُهُ". د ثم مثال لکه: "إِنِّيْ وَ قَتْلِيْ سُلَيْكًا ثُمَّ أَعْقِلَهُ أَيْ ثُمَّ عَقْلِيْ إِيَّاهُ". د "او" مثال لکه: "وَمَا كَانَ لِبَشَرٍ أَنْ يُكَلِّمَهُ اللّٰهُ إِلَّا وَحْيًا أَوْ مِنْ وَرَاءِ حِجَابٍ أَوْ يُرْسِلَ رَسُوْلًا أَيْ إِلَّا وَحْيًا أَوْ إِرْسَالَ رَسُوْلٍ". (۱) د لام تعليل معنی (دپاره د دې) لکه: "أَسْلَمْتُ حَتّٰى أَدْخُلَ الْجَنَّةَ". (ما اسلام راوړئ دپاره د دې چې جنت ته داخل سم). (۲) "حَتّٰى" په معنی د "إِلٰى" سره (تر څو پوري) لکه: "مَرَرْتُ حَتّٰى أَدْخُلَ الْبَلَدَ". (ما تګ وکړئ تر څو پوري چې زه و ښار ته

"أَنْ" په اووه (۷) ځايو کي مقدر راځي: فعل مضارع ته نصب ور کوي:

۱. د "لَامْ" جحد وروسته لکه: "مَا كَانَ اللهُ لِيُعَذِّبَهُمْ".

۲. د "لَامْ" کی (¹) څخه وروسته لکه: "وَأَنْزَلْنَا إِلَيْكَ الذِّكْرَ لِتُبَيِّنَ لِلنَّاسِ".

۳. د "حَتّٰى" جاره وروسته لکه: "فَقَاتِلُوا الَّتِي تَبْغِي حَتّٰى تَفِيْءَ إِلَى أَمْرِ اللهِ".

۴. د "أَوْ" څخه وروسته لکه: "لَأَلْزِمَنَّكَ أَوْ تُعْطِيَنِيْ حَقِّيْ".

۵. د "واو" صرف څخه وروسته لکه: "لَا تَأْكُلِ السَّمَكَ وَتَشْرَبَ اللَّبَنَ".

۶. د "فَا" سببيه وروسته لکه "يَا لَيْتَنِي كُنْتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا".

۷. تر "ثُمَّ" وروسته لکه: "وَقَتْلِيْ سُلَيْكًا ثُمَّ اَعْقِلَهُ".

## شپږمه خبره:

د واو صرف څخه وروسته چي "أَنْ" مقدر کيږي نو د ده دپاره دوه شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: د "واو" صرف د ماقبل و مابعد مضمون به په يوه زمانه کي وي.

---

داخل سوم). (۳) "حَتّٰى" په معنى د "إِلَّا" سره (مګر) لکه: "لَيْسَ الْعَطَاءُ مِنَ الْفُضُوْلِ سَمَاحَةً،، حَتّٰى تَجُوْدَ وَمَالَدَيْكَ قَلِيْلٌ". (شرح شذور الذهب جلد ۱ صفحه ۳۸۰)

(¹) "لام کَیْ" تقريبا پر څو قسمه راځي: (۱) "لام تاکيدي". (۲) "لام قسميه". (۳) "لام ابتدائيه". (۴) "لام امر". (۵) او "لام جاره" چي هغه بيا په خپل کور کي پر څلور قسمه راځي. (۱) "لام تعليليه". (۲) "لام جحد". (۳) "لام عاقبة". (۴) "لام زائده". لام تعليليه چي د ده ماقبل د مابعد دپاره علت وي لکه: "اَسْلَمْتُ لِاَدْخُلَ الْجَنَّةَ". لام جحد چي د "كَانَ" ماضي منفي وروسته استعماليږي او د ده په حذف کولو سره پر معنى باندي هيڅ فرق نه پرېوزي، لکه: "مَا كَانَ اللهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ" عند البصريين "لِيُطْلِعَكُمْ" خبر دئ د "كَانَ" لېکن عند الکوفيين جار و مجرور متعلق تر "مُرِيْدًا" پوري، بيا دا خبر دئ د "كَانَ". "لَام زائده" چي د فعل متعدي څخه وروسته د فعل د تقويت دپاره راځي لکه: "إِنَّمَا يُرِيدُ اللهُ لِيُذْهِبَ عَنْكُمُ الرِّجْسَ أَهْلَ الْبَيْتِ". "لام عاقبة": چي کم وخت پر نتيجه باندي فاء داخله سي او د دې د مابعد مقتضي د ماقبل د مقتضي دپاره "نقيض" وي لکه: "فَالْتَقَطَهُ آلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُونَ لَهُمْ عَدُوًّا وَحَزَنًا" عند البصريين د "لَامْ" څخه وروسته "أَنْ" مقدر دئ هغه د فعل مضارع ناصب دئ لېکن عند الکوفيين "لَامِ جَحْد" په خپله ناصب دئ.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: "واو" به تر دغه شپږو شيانو وروسته راغلی وي. (۱) تر "امر" وروسته لکه: "زُرْنِيْ وَ أُكْرِمَكَ". (۲) تر "نهي" وروسته لکه: "لَا تَأْكُلِ السَّمَكَ وَ تَشْرَبَ اللَّبَنَ". (۳) تر "نفي" وروسته "مَا تَأْتِيْنَا وَ تُحَدِّثَنَا". (۴) تر "تمني" وروسته لکه: "لَيْتَ لِيْ مَالًا وَ أُنْفِقَهُ". (۵) تر "استفهام" وروسته لکه: "هَلْ عِنْدَكُمْ مَاءٌ وَ أَشْرِبَهُ". (٦) تر "عرض" وروسته لکه: "اَلَا تَنْزِلُ بِنَا فَتُصِيْبَ خَيْرًا".

او تر "فا" وروسته چي "أَنْ" مقدر کيږي د هغه دپاره هم دوه شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي د "فَا" ماقبل به سبب وي د مابعد دپاره.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي د دغه شپږو شيانو په جواب کي به راغلی وي. (۱) امر. (۲) نهي. (۳) نفي. (۴) تمني. (۵) استفهام. (٦) عرض مثالونه يې په واو صرف کي تېر سوه صرف د واو پر ځای "فَا" لګول کيږي.

## جملې:

| عنوان | خبر, انشاء | مسند | مسند الیه | تعیین اسم غیر حسن | معرب | مبنی | بالحرکت, بالحرف | لفظی تقدیری | تمنی غیر تمنی | تعیین اعراب مضارع | تعیین حروف عامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ وَالْإِنْسِ إِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ تَنْفُذُوا | انشائیه اسمیه | أَدْعُوْ | أَنَا | ۳. أَنَا. تُمْ. أَنْتُمْ | ۵. معرب | ۸. مبنی | بالحرکت وبالحرف | لفظی (۱) قسم | تمنی غیر تمنی | (أَدْعُوْ) حالت رفعی ضمه تقدیری (۲) قسم (تَنْفُذُوْا) حالت نصبی (۳) قسم | ۳. (يَا) حرف ندا (إِنْ) جازمه (أَنْ) ناصبه |
| يُرِيْدُ أَنْ يُخْرِجَكُمْ مِنْ أَرْضِكُمْ | خبریه فعلیه | يُرِيْدُ | هُوَ | ۴. هُوَ. هُوَ. كُمْ. كُمْ | ۳. معرب | ٦. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمنی | (يُرِيْدُ) حالت رفعی (۱) قسم (يُخْرِجُ) حالت نصبی (۱) قسم | ۲. (أَنْ) ناصبه (مِنْ) جاره |
| لِتُخْرِجَنَا مِنْ أَرْضِنَا بِسِحْرِكَ يَا مُوْسَى | خبریه فعلیه | تُخْرِجَ | أَنْتَ | ۵. أَنْتَ. نَا. نَا. كَ. أَنَا | ۴. معرب | ۱۱. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) وتقدیری (۱۳) | غیر تمنی | (تُخْرِجُ) حالت نصبی (۱) قسم (أَدْعُوْ) (۲) قسم | ۴. (أَنْ) مقدره (بِا، مِنْ) جاره (يَا) حرف ندا (اَلَامْ) جاره |
| يَا دَاوُدُ إِنَّا جَعَلْنَاكَ خَلِيْفَةً فِي الْأَرْضِ | انشائیه اسمیه | أَدْعُوْ | أَنَا | ۴. أَنَا. نَا. نَا. كَ | ۴. معرب | ۱۰. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱. ۵) قسم | غیر تمنی | (أَدْعُوْ) حالت رفعی ضمه تقدیری (۲) قسم | ۳. (يَا) حرف ندا (إِنَّ) مشبه بالفعل (فِيْ) جاره |
| وَمَا كَانَ اللهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ | خبریه فعلیه | لِيُطْلِعَ كُمْ | اَللهُ | ۲. هُوَ. كُمْ | ۳. معرب | ۸. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمنی | (يُطْلِعُ) حالت نصبی (۱) قسم | ۲. (أَنْ) مقدره (عَلَى) جاره |
| يَا حَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ | انشائیه اسمیه | أَدْعُوْ | أَنَا | ۱. أَنَا | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱. ۳) قسم | غیر تمنی | (أَدْعُوْ) حالت رفعی ضمه تقدیری (۲) قسم | ۲. (يَا) حرف ندا (عَلَى) جاره |

| عنوان | خبریہ، انشائیہ | مسند | مسند الیہ | تعیین اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت، بالحروف | لفظی، تقدیری | تبعی غیر تبعی | تعیین اعراب مضارع | تعیین عوامل عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ | خبریہ اسمیہ | لَنَا، مِنَ الْمُؤْمِنِينَ | كَرَّةً، نَحْنُ | ۲. نَا، نَحْنُ | ۵. معرب | ۹. مبنی | بالحرکت | لفظی | تبعی غیر تبعی | (نَكُونَ) حالت نصبی (۱) قسم | ۵. (أَنَّ) مشبہ بالفعل (أَنْ) مقدرہ (مِنْ) [illegible] (أَوْ) (فا) |
| وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَى أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ | خبریہ اسمیہ | لَيُوحُونَ | الشَّيَاطِينَ | ۴. هُمْ، هُمْ، هِمْ، كُمْ | ۴. معرب | ۱۰. مبنی | بالحرکت | لفظی (۳) | تبعی غیر تبعی | (يُوحُونَ) حالت رفعی (۴) قسم (يُجَادِلُوكُمْ) حالت نصبی (۴) قسم | ۶. (إِنَّ) مشبہ بالفعل (إِلَى) جارہ (أَنْ) مقدرہ (واو) (لَام) (أَنْ) |
| يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَالطَّيْرَ | انشائیہ اسمیہ | أَدْعُو | أَنَا | ۳. أَنَا، أَنْتَ، هُ | ۳. معرب | ۷. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (أَدْعُو) حالت رفعی ضمہ تقدیری (۲) قسم | ۲. (يَا) حرف نداء (وَ) |
| وَعَجِلْتُ إِلَيْكَ رَبِّ لِتَرْضَى | خبریہ فعلیہ | عَجِلَ | تُ | ۳. تُ، كَ، أَنْتَ، أَنَا، (يَ) محذوف | ۳. معرب | ۱۱. مبنی | بالحرکت | لفظی و تقدیری (۱) (۱۳) قسم | غیر تبعی | (تَرْضَى) حالت نصبی (۳) قسم فتحہ تقدیری | ۵. (إِلَى) جارہ (أَنْ) ناصبہ مقدرہ (يَا) حرف نداء محذوف (لِ) جارہ (وَ) |
| لَعَلِّي أَبْلُغُ الْأَسْبَابَ أَسْبَابَ السَّمَاوَاتِ فَأَطَّلِعَ | انشائیہ اسمیہ | أَبْلُغُ، الْأَسْبَابَ | (يَ) یا متکلم | ۳. يَ، أَنَا، أَنَا | ۵. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت | لفظی (۳، ۴) قسم | تبعی غیر تبعی | (أَبْلُغُ) حالت رفعی (۱) قسم (أَطَّلِعَ) حالت نصبی (۱) قسم | ۳. (لَعَلَّ) حرف مشبہ بالفعل، (ف) (أَنْ) مقدرہ |
| إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا لِيَغْفِرَ لَكَ اللَّهُ | خبریہ اسمیہ | فَتَحَ | نَا | ۶. نَا، نَا، كَ، ۲. هُوَ، كَ | ۴. معرب | ۱۱. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (يَغْفِرَ) حالت نصبی (۱) قسم | ۵. (إِنَّ) مشبہ بالفعل ۲. (لَام) جارہ (أَنْ) مقدرہ |

# التمرین:

"وَمَا كَانَ الْمُؤْمِنُونَ لِيَنْفِرُوا كَافَّةً،، وَأَنْ تَصُومُوا خَيْرٌ لَكُمْ،، وَكَذَلِكَ جَعَلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا لِيَمْكُرُوا فِيهَا،، مَا كَانَ اللهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ،، لِيَشْتَرُوا بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا،، أَمْ حَسِبْتُمْ أَنْ تُتْرَكُوا،، لِكَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا،، فَبِذَلِكَ فَلْيَفْرَحُوا،، يَا صَاحِبَيِ السِّجْنِ أَأَرْبَابٌ مُتَفَرِّقُونَ خَيْرٌ أَمِ اللهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ،، أَيَّتُهَا الْعِيرُ إِنَّكُمْ لَسَارِقُونَ".

# الدرس الثالث والعشرون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

**اوله خبره:**

"لَن" (۱):

دوهم حرف په حروف ناصبه وو کي هغه حرف "لَنْ" دئ.

د "لَنْ" معنٰی:

"لَنْ" د استقبال او د تاکید د نفي دپاره راځي لکه: "لَنْ يَّضْرِبَ" (هرګز به هغه يو سړی وهل و نه کړي په را روانه زمانه کي) يعني دی مضارع مثبت په معنٰی د مستقبل منفي سره ګرځوي.

د "لَنْ" خصوصيت:

**په ټولو نواصبو کي د "لَنْ" امتيازي خصوصيت دا دئ چي د "لَنْ" د معمول معمول پر "لَنْ" باندي مقدم کېدای سي لکه: "زَيْدًا لَنْ يَضْرِبَ". "زَيْدٌ" معمول د "يَضْرِبُ" دئ "يَضْرِبُ" معمول د "لَنْ" دئ بخلاف د نورو نواصبو د هغو د معمول معمول پر دوی باندي نسي مقدم کېدای.**

**"كَيْ" (۲):**

**دريم حرف په حروف ناصبه کي هغه حرف "كَيْ" دئ چي فعل مضارع ته نصب ور کوي.**

---

(۱) په "لَنْ" کي درې مذهبونه دي: عند الجمهور "لَنْ" حرف بسيط دئ نه په ده کي ترکيب سته او نه ابدال.

عند الخليل و کسائي دی مرکب دئ د "لَا" او د "اَنْ" څخه بيا د کثرت الاستعمال په وجه همزه حذف سوه او د التقاء ساکنين په وجه الف هم حذف سو نو "لَنْ" جوړ سو ځکه په ده کي نفي او تخليص للاستقبال موجود دي.

عند الفراء دی بسيط دئ لېکن مبدل دئ ځکه په اصل کي دغه "لَا" نافيه دئ بيا الف په نون سره بدل سو "لَنْ" جوړ سو. (مغنی اللبيب)

(۲) "كَيْ" د سبويه او جمهور نحاتو په نزد باندي دا حرف مشترک دئ کله دی حرف جر په معنی د "لَمْ" سره راځي او کله حرف ناصب وي ځکه پر "كَيْ" باندي چي کله "لَام" جاره داخل سي لکه: "جِئْتُكَ لِكَيْ اَ تَعَلَّمَ" نو په دې صورت کي جاره نه دئ ځکه حرف جر پر حرف جر باندي نسي داخلېدای، او داغه رنګه "كَيْ" کله پر "مَا" استفهاميه باندي داخلېږي لکه: "كَيْمَ" نو په دې صورت کي "كَيْ" حرف جار دئ په معنی د "كَمْ" سره دئ او دا مسلمه قاعده ده چي کله پر "مَا" استفهاميه باندي حرف جر داخل سي نو بيا الف حذف کېږي نو د الف حذف د دې دليل دئ چي "كَيْ" جاره دئ نو بيا پر دې باندي دا مسئله متفرع کېږي چي "كَيْ" پر "لَا" باندي داخلول جائز دي، او که نه که چيري "كَيْ" جاره سي نو بيا يې دخول جائز نه دئ او که چيري "كَيْ" ناصبه سي نو بيا يې دخول جائز دئ، او د سبويه، خليل او اخفش په نزد باندي "كَيْ" بنفسه په خپله ناصب نه دئ بلکه د ده څخه وروسته "اَنْ" مقدره ناصب دئ. (کتاب سبويه جلد ۳ صفحه ۵، ۷)

د "کَیْ" د عمل دپاره شرائط:

د "کَیْ" د عمل دپاره درې شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي "کَیْ" به اسميه نه وي ځکه "کَیْ" اسميه مخفف وي د "کَیْفَ" څخه لکه: "کَیْ تَنْجَحُوْا اَیْ کَیْفَ تَنْجَحُوْنَ".

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي "کَیْ" به جاره نه وي ځکه "کَیْ" جاره پر "مَا" استفهاميه "مَا" مصدريه او يا پر "اَنْ" مصدريه داخليږي لکه: "کَیْمَه" "تَقُوْلُ "کَیْمَ فَعَلْتَ هٰذَا" بِمَعْنٰی "لِمَ".

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي د ده ماقبل به سبب وي د مابعد دپاره لکه: "اَسْلَمْتُ کَیْ اَدْخُلَ الْجَنَّةَ" دلته اسلام سبب دئ د دخول جنت.

## فائده:

که چيري د "کَیْ" څخه مخکي "لام" جاره راسي نو بيا دی ناصبه دئ لکه: "لِکَيْ لَا يَعْلَمَ بَعْدَ عِلْمٍ شَيْئًا" او که چيري "لام" تر "کَیْ" وروسته راغلئ نو بيا "کَیْ" جاره دئ لکه: "جِئْتُ کَیْ لِاَقْرَءَ" او د "لَام" څخه وروسته "اَنْ" مقدر وي "اَیْ لِاَنْ اَقْرَءَ". او داغه رنګه په کلام کي د "کَیْ" معلول تر "کَیْ" مؤخره کول هم جائز دي لکه: "کَیْ تُکْرِمَنِیْ جِئْتُکَ".

## دوهمه خبره:

"اِذَنْ" (1):

---

(1) "اِذَنْ" د جمهورو علماء په نزد باندي دَی حرف بسيط دئ او دی پر خپل اصل باندي دئ لېکن عند البعض دی اسم ظرف دئ او د ده اصل "اِذْ" دئ او بيا يې په آخر کي تنوين عوض عن الجملة لاحق سو او بيا دی نقل سو د جزائيت و طرف ته او په ده کي د سبب او ربط والا معنی باقي پاته ده او عند الخليل دی مرکب دئ د "اِذْ" او د "اَنْ" څخه بيا يې د همزه حرکت نقل کړئ و ذال ته او همزه يې حذف کړي نو "اِذَنْ" جوړ سو، د اکثره نحاتو په نزد باندي دغه "اِذَنْ" په خپله ناصب دئ ځکه دی مضارع خاصه وي په استقبال پوري که څه هم بعض نحاتو "اِذَنْ" د عمل د شرائطو باوجوده مهمل شمار کړی دئ چنانچه لکه امام سبويه د بعض

څلورم حرف په حروف نواصبو کي هغه حرف "إِذَنْ" دئ. چي د جواب په وخت کي پر فعل مضارع داخليږي او د فعل مضارع وآخر ته نصب ور کوي لکه: څوک وايي: "اَنَا آتِيْکَ غَدًا" او ته په جواب کي ورته وايي: "إِذَنْ أُكْرِمَكَ".

د "إِذَنْ" د عمل شرائط:

د "إِذَنْ" د عمل دپاره پنځه (۵) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي په شروع د كلام كي به وي، ورنه بيا رفع واجب ده بناء بر خبريت لكه: "اَنَا إِذَنْ اُكَافِئُکَ".

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي د ده مدخول به خالص فعل مضارع مستقبل وي ورنه بيا رفع واجب ده بناء بر خلو لكه: "إِذَنْ اَظُنُّکَ صَادِقًا" په جواب د هغه چا كي چي هغه وايي: "اَنَا اُحِبُّکَ" دلته فعل مضارع د حال معنی ور کوي نه د استقبال.

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي د ده او د معمول په مينځ كي به فاصله و فصل نه وي او كه چيري فاصله وي يا به په قسم سره وي او يا به په "لَا" نافيه سره وي قسم لكه: "إِذَنْ وَاللهِ أُكْرِمَكَ" او د نفي مثال لكه: "إِذَنْ لَا اَجِيْئَکَ".

۴. څلورم شرط يې دا دئ: چي دی به همېشه مصدريه وي.

۵. پنځم شرط يې دا دئ: چي د ده د مدخول معمول به پر ده نه وي مخكي سوی.

---

عربو څخه دا حكايت كړی دئ او قرين قياس هم داغه دئ څكه حروف وروسته تر اختصاص عمل كوي حالانكه "إِذَنْ" غير مختص دئ لكه: څنګه چي پر افعالو باندي داخليږي داغه رنګه پر اسماء باندي هم داخليږي لكه: "آأَنْتَ تُكْرِمُ الْيَتِيْمَ؟ إِذَنْ أَنْتَ رَجُلٌ كَرِيْمٌ". (كتاب سبويه)

(۲) بعض حضراتو د منادی فاصله هم جائز بللې ده لكه: "إِذَنْ يَا زُهَيْرُ تَنْجَحَ جَوَابًا لِقَوْلِهِ سَاَجْتَهِدُ" او داغه رنګه ابن عصفور د ظرف او جار و مجرور فاصله هم جائز بللې ده لكه: "إِذَنْ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اَجِيْئَکَ" جار و مجرور لكه: "إِذَنْ بِالْجِدِّ تَبْلُغَ الْمَجْدَ". (جامع الدروس العربية)

**فائده:**

"اِذَنْ" عام طور د "لَوْ" يا د "اِنْ" په جواب كي راځي خواه كه دى مَذْكُوْر (ذكر سوى) وي او كه مُقَدَّرْ (پټ) وي لكه: د "اٰتِيْکَ غَدًا". په جواب كي "اِذَنْ اُكْرِمَکَ" ويل لېكن كله چې دى د "فَا" عاطفه او د "واو" عاطفه په جواب كي راسي نو بيا دى غير عامل دئ لېكن بيا هم په ده كي رفع او نصب دواړه جائز دي او رفع يې غالبه ده نصب لكه: په قرائت د غير سبعه كي "وَإِن كَادُوا لَيَسْتَفِزُّونَكَ مِنَ الْأَرْضِ لِيُخْرِجُوكَ مِنْهَا وَإِذًا لَا يَلْبَثُونَ الخ" او "أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا". او رفع په قرائت د سبعه كي او "اِذَنْ" كله په نون تنوين سره هم ويل كيږي لكه: "اِذًا".

قسم دوم حروف كه فعل مضارع را بجزم كنند الخ: ............... الى قوله باب دوم در عمل افعال.

**ترجمه:**

**په حروف عامله وو كي دوهم قسم هغه حروف دي چي فعل مضارع ته جزم ور كوي هغه پنځه حروف دي:** "لَمْ، لَمَّا، لَامِ امر، لَاءِ نهي، اِنْ" شرطيه لكه: "لَمْ يَنْصُرْ، لَمَّا يَنْصُرْ، لِيَنْصُرْ، لَا تَنْصُرْ، اِنْ تَنْصُرْ اَنْصُرْ".

پوه سه! چي "اِنْ" پر دوو جملو داخليږي لكه: "اِنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ" اولي جملې ته شرط او دوهمي جمله ته جزاء ويل كيږي او "اِنْ" د مستقبل دپاره راځي كه څه هم پر ماضي باندي داخل سي لكه: "اِنْ ضَرَبْتَ ضَرَبْتُ" او په دې ځاى كي به جزم تقديري وي ځكه ماضي معرب نه ده.

پوه سه! چي كله د شرط جزاء جمله اسميه واقع سي يا امر وي يا نهي وي يا د شرط جزاء جمله دعائيه وي نو بيا پر دې جملو باندي فاء جزائيه راوړل ضروري دي لكه: ته وايي: "اِنْ تَاْتِنِيْ فَاَنْتَ مُكْرَمٌ، وَاِنْ رَاَيْتَ زَيْدًا فَاَكْرِمْهُ، اِنْ اَتَاکَ عَمْرًا فَلَا تُهِنْهُ، وَاِنْ اَكْرَمْتَنِيْ فَجَزَاکَ اللهُ خَيْرًا".

**دريمه خبره:**

حروف جوازم:

دوهم قسم د حروف عامله وو څخه چي په فعل كي عمل كوي حروف جوازم دي.

د حروف جوازمو تعداد:

جوازم پنځه داني دي: "اِنْ، وَلَمْ، لَمَّا، وَلَامِ اَمْر، وَلَا نَهِيْ".

د حروف جوازم عمل:

حروف جوازم د عمل په اعتبار سره پر دوه قسمه دي يو هغه دي چي پر يوه فعل باندي داخليږي د هغه فعل يعني د مضارع و آخر ته جزم ور کوي هغه څلور حروف دي: "لَمْ، لَمَّا، لَامِ اَمْر، لَا نَهِيْ". او بل هغه چي پر دوو فعلو باندي داخليږي د دواړو و آخر ته جزم ور کوي هغه صرف يو حرف دئ چي "اِنْ" (۱) دئ لکه: "اِنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ". دغه "اِنْ" چي پر کمه جمله باندي داخل سي هغه ته جمله (۲) شرطيه ويل کيږي، او د جمله شرطيه و اول جزء ته شرط او دوهم جزء ته يې جزاء ويل کيږي. لکه: "إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ".

د "اِنْ" شرطيه شرائط:

د "اِنْ" شرطيه دپاره اووه (۷) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي د "اِنْ" مدخول به جمله اسميه (۳) نه وي.
۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي د ده مدخول به جمله انشائيه (۴) نه وي.
۳. دريم شرط يې دا دئ: چي زمانه (۵) د ماضي به مراد نه وي.
۴. څلورم شرط يې دا دئ: چي پر ماضي به "قَدْ" (۶) نه وي داخل سوی.

---

(۱) "اِنْ" او "لَوْ" عام ط... شرط دپاره استعماليږي او دی حروف شرط دي او "مَنْ، مَا، مَتٰى، اَيْنَ، اَيٌّ، اَنّٰى، اِذْمَا، حَيْثُمَا، مَهْمَا، اَيْنَمَا، اِذَا" و غيره اسماء ... دي.

(۲) جمله شرطيه هغه جمله ده چي په هغه کي دوې جملې وي او دوهمه جمله پر اوله جمله باندي موقوفه وي او د دې اوله جمله همېشه جمله فعليه وي عام طور جزاء معلقه وي په شرط پوري لکه: "اِنْ دَخَلْتِ الدَّارِ فَأَنْتِ طَالِقٌ" او کله د شرط والا فعل معلق وي په جزاء والا فعل پوري لکه: "قُلْ إِنْ كُنْتُمْ تُحِبُّوْنَ اللّٰهَ فَاتَّبِعُوْنِيْ".

(۳) ځکه په جمله اسميه کي زمانه نسته.

(۴) ځکه په جمله انشائيه کي اخبار نسته او شرط د اخبار د قبيلې څخه دئ.

(۵) ځکه "اِنْ" په مستقبل کي عمل کوي او په "إِنْ كُنْتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ" او "وَإِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ" دا جملې مؤلي دي په "يَتَبَيَّنْ" مضارع ... دي يا باب د "كَانَ" د دې څخه مستثنی دئ.

(۶) ځکه "قَدْ" ماضي نوره پر ماضي والي باندي ټينګه وي.

۵. پنځم شرط يې دا دئ: چې مضارع به مصدره په حرف تنفیس (۱) سره نه وي.
٦. شپږم شرط يې دا دئ: پر مضارع به "لَنْ" نه وي داخل سوی.
۷. اووم شرط يې دا دئ: چې د ده مدخول به فعل جامد (۲) نه وي.

## څلورمه خبره:

د شرط و جزاء صورتونه (۳):
د شرط او د جزاء څلور صورتونه دي:
۱. اول صورت: کله شرط و جزاء دواړه فعل مضارع وي لکه: "اِنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ".
۲. دوهم صورت: کله صرف شرط فعل مضارع وي لکه: "اِنْ تَضْرِبْ ضَرَبْتُ". نو په دې دواړو صورتو کي پر فعل مضارع باندي جزم ويل واجب دي.
۳. دريم صورت: کله صرف جزاء فعل مضارع وي لکه: "اِنْ ضَرَبْتَ اَضْرِبْ" او په دې صورت کي پر جزاء يعني پر فعل مضارع باندي جزم و رفع دواړه ويل جائز دي.
۴. څلورم صورت: کله شرط و جزاء دواړه ماضي وي لکه: "اِنْ ضَرَبْتَ ضَرَبْتُ". نو په دې وخت کي شرط و جزاء دواړه محلا مجزومه دي.

## پنځمه خبره:

فعل مضارع چې کله د اتو (۸) شیانو په جواب کي راسي نو دا به مجزومه وي په "اِنْ" محذوفه سره د "فَا" څخه (۱) به خالي وي، لېکن شرط دا دئ: چې اوله جمله به سبب وي د دوهمي جملې دپاره هغه اته ځایونه دا دي:

---

(۱) څکه دا تحصيل د حاصل دئ.
(۲) څکه په فعل جامد کي زمانه نه وي. (تثوير)
(۳) که چيري د شرط څخه وروسته د مضارع مختلفي صيغې راغلې پر يوه باندي "فَا" داخله وي او پر دوهمه باندي "اَوْ" داخل سوی وي او پر دريمه باندي "سَوْفَ" داخل سوی وي نو د جزاء ابتداء به د هغه مضارع څخه کيږي چې پر کمه باندي "سَوْفَ" داخل سوی دئ لکه: "وَمَن يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا". (العلامات النحوية)

۱. امر لکه: "تَعَلَّمْ تَنْجَحْ".

۲. نهي لکه: "لَاتَكْذِبْ يَكُنْ خَيْرًا لَكَ".

۳. استفهام لکه: "هَلْ تَزُوْرُنَا نُكْرِمْكَ".

۴. تمني لکه: "لَيْتَ لِيْ مَالًا اُنْفِقْهُ".

۵. عرض لکه: "اَلَا تَزُوْرُنَا يَكُنْ مَسْرُوْرًا".

---

(۱) پر جزاء و شرط باندي "فاء" داخلول کله واجب وي او کله جائز وي او کله ممتنع وي. په لسو (۱۰) ځايو کي پر جزاء باندي فاء داخلول واجب دي:

۱. کله چي جزاء جمله اسميه وي لکه: "فَمَنْ ثَقُلَتْ مَوَازِيْنُهُ فَأُولَئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ".

۲. جزاء چي کله امر وي لکه: "فَإِذَا قَرَأْتَ الْقُرْآنَ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ".

۳. جزاء چي کله نهي وي لکه: "فَإِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنَاتٍ فَلَا تَرْجِعُوْهُنَّ إِلَى الْكُفَّارِ".

۴. جزاء چي کله دعاء وي لکه: "إِنْ أَكْرَمْتَنِيْ فَجَزَاكَ اللّٰهُ خَيْرًا".

۵. کله چي د ماضي په شروع کي "قَدْ" مذکور يا محذوف راغلی وي لکه: "وَإِنْ يُكَذِّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِنْ قَبْلِكَ". "قَدْ" محذوف لکه: "وَإِنْ كَانَ قَمِيْصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ فَكَذَبَتْ: أَيْ فَقَدْ كَذَبَتْ".

۶. جزاء چي کله د ماضي صيغه وي او په شروع کي حرف نفي وي لکه: "وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ".

۷. چي کله د مضارع په شروع کي "سِيْن" وي لکه: "وَإِنْ تَعَاسَرْتُمْ فَسَتُرْضِعُ لَهُ أُخْرَى".

۸. کله چي د مضارع په شروع کي "سَوْفَ" وي لکه: "فَإِنِ اسْتَقَرَّ مَكَانَهُ فَسَوْفَ تَرَانِيْ".

۹. کله چي جزاء د مؤکد بالَنْ ناصبه صيغه وي لکه: "وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ".

۱۰. جزاء چي کله فعل غير متصرف وي يعني "نِعْمَ، بِئْسَ، لَيْسَ"، و غيره وي لکه: "إِنْ تُبْدُوا الصَّدَقَاتِ فَنِعِمَّا هِيَ".

جائز: په دوو ځايو کي پر جزاء "فَا" داخول جائز دي: (۱) مضارع مثبت. (۲) مضارع منفي. عقلا څلور (۴) صورته جوړيږي:

۱. جزاء مضارع مثبته وي او "فَا" پر داخله سوې وي لکه: "وَمَنْ عَادَ فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ".

۲. چي جزاء مضارع مثبته وي او "فَا" نه وي پر داخله سوې لکه: "إِنْ تَنْصُرُوا اللّٰهَ يَنْصُرْكُمْ".

۳. چي جزاء مضارع منفي وي او "فَا" پر داخله سوې وي لکه: "وَمَنْ جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ فَلَا يُجْزَى إِلَّا مِثْلَهَا".

۴. چي جزاء مضارع منفي وي او "فَا" نه وي پر داخله سوې لکه: "وَإِنْ تَدْعُوْهُمْ إِلَى الْهُدَى لَا يَتَّبِعُوْكُمْ".

ممتنع: په دوو ځايو کي پر جزاء باندي "فَا" داخلول منع دي: (۱) جزاء چي کله ماضي مثبت بغير د "قَدْ" څخه وي لکه: "إِنْ أَحْسَنْتُمْ أَحْسَنْتُمْ لِأَنْفُسِكُمْ". (۲) جزاء چي کله د نفي جحد بَلَمْ صيغه وي لکه: "مَنْ لَمْ يَشْكُرِ النَّاسَ لَمْ يَشْكُرِ اللّٰهَ". (العلامات النحوية)

٦. دعاء لکه: "اَبقَاکَ اللهُ اَرزُکَ".

٧. د تحضیض په جواب کي لکه: "لَوْلَا تَأتِیْنِيْ اُکْرِمْکَ".

٨. د نفي په جواب کي لکه: "لَا تَفْعَلْ شَرًّا یَکُنْ خَیْرًا لَکَ".

## شپږمه خبره:

"لَمْ، لَمَّا" (١):

د هم او دریم قسم په حروف جوازمو کي "لَمْ" و "لَمَّا" دي. "لَمْ" و "لَمَّا" دواړه په فعل مضارع کي معنوي عمل کوي او مضارع مثبت په معنیٰ د ماضي منفي سره اړوي لکه: "لَمْ یَضْرِبْ، لَمَّا یَضْرِبْ".

د "لَمْ" و "لَمَّا" اتحاد:

**"لَمْ" و "لَمَّا" په درې شیانو کي سره اتحاد دي:**

**١. دواړه د نفي دپاره راځي.**

**٢. دواړه پر فعل مضارع داخلیږي.**

**٣. مضارع مثبت په معنیٰ د ماضي منفي سره اړوي. او د همزه استفهام څخه وروسته هم د دوی عمل باقي پاته کیږي لکه: "اَلَمْ یَعْلَمْ بِاَنَّ اللهَ یَرٰی".**

د "لَمْ" و "لَمَّا" افتراق:

د "لَمْ" و "لَمَّا" په پنځو شیانو کي افتراق دئ:

١. "لَمَّا" په معنیٰ کی استغراق وي بخلاف د "لَمْ".

٢. پر "لَمَّا" د حرف شرط دخول منع دئ بخلاف د "لَمْ" پر "لَمْ" حرف شرط داخلیدای سي لکه: "اِنْ لَمْ تَجْتَهِدْ تَنْدَمْ".

٣. د "لَمَّا" په مدخول کي توقع وي لکه: "لَمَّا اُسَافِرْ، فَسَفَرُکَ مُنْتَظَرٌ" بخلاف د "لَمْ".

(١) "لَمَّا" پر درې قسمه دئ: (١) "لَمَّا" نافیه (٢) "لَمَّا" شرطیه (٣) "لَمَّا" استفهامیه. (نصر الخبیر)

۴. د "لَمَّا" مدخول حذف کول جائز دي لکه: "قَارَبْتِ الْمَدِيْنَةَ وَلَمَّا اَیْ وَ لَمَّا اَدْخُلْهَا" بخلاف د "لَمْ" إِلَّا فِي الضَّرُوْرَةِ.

۵. "لَمَّا" ماضي و حال ته نږدې کوي بخلاف د "لَمْ".

## اوومه خبره:

"لَمَّا" (۱) چي کله پر ماضي داخل سي نو بيا دی ظرفيه وي لکه: "فَلَمَّا أَنْ جَاءَ الْبَشِيْرُ". يا شرطيه وي لکه: "فَلَمَّا تَرَاءَتِ الْفِئَتَانِ نَكَصَ عَلَى عَقِبَيْهِ" او که چيري پر مضارع داخل سي نو بيا دی حرف جازم دئ لکه: "لَمَّا يَضْرِبْ" او د دې څخه علاوه بيا دی حرف استثناء دئ لکه: "إِنْ كُلُّ نَفْسٍ لَمَّا عَلَيْهَا حَافِظٌ".

لام امر (۲):

څلورم قسم د حروف جوازمو څخه لام د امر دئ. لام امر هغه لام دئ چي په ده سره وجود د فعل طلبيږي او دی همېشه مکسوره وي او د "امر" حاضر معروف د صيغو څخه علاوه د مضارع پر ټولو صيغو باندي داخليږي لکه: "لِيَضْرِبْ" د فعل و آخر ته جزم ور کوي.

"لَا" نهي:

پنځم قسم د حروف جوازمو څخه "لَا" ناهيه دئ چي په ده سره طلب د ترک فعل کيږي او دی هم د فعل و آخر ته جزم ور کوي لکه: "لَا تَضْرِبْ".

---

(۱) "لَمَّا" چي کله پر ماضي باندي داخل سي نو بيا دی جازمه نافيه نه دئ بلکه په دې وخت کي دی په معنی د "حِيْنَ" سره راځي لکه: "لَمَّا اِجْتَهَدَ اَكْرَمْتُهُ اَیْ حِيْنَ اِجْتَهَدَ اَكْرَمْتُهُ" لېکن کله چي دی په معنی د "حِيْنَ" سره وي بيا د ده دخول پر مضارع باندي غلط دئ نو ځکه بيا د "لَمَّا يَجْتَهِدُ" پر ځای "حِيْنَ يَجْتَهِدُ" ويل کيږي. (جامع الدروس العربية)

(۲) "لَام" د امر همېشه مکسوره وي او مبني بر کسره وي لېکن کله چي د ده څخه مخکي "وَاوْ، فَا، و ثُمَّ" راسي نو بيا د "فَعِلَ" حکمي صورت جوړيږي، نو د حلقي العين په قانون سره لام ساکن کيږي لکه: "ثُمَّ لْيَقْضُوا تَفَثَهُمْ وَلْيُوفُوا نُذُورَهُمْ" "وَلْتَنْظُرْ نَفْسٌ مَا قَدَّمَتْ. فَلْيَنْظُرِ الْإِنْسَانُ مِمَّ خُلِقَ" او داغه رنګه "تَدْخُلُ لَامُ الْأَمْرِ عَلَى فِعْلِ الْغَائِبِ مَعْلُوْمًا وَ مَجْهُوْلًا وَ عَلَى الْمُخَاطَبِ وَ الْمُتَكَلِّمِ الْمَجْهُوْلَيْنِ وَيَقِلُّ دُخُوْلُهَا عَلَى الْمُتَكَلِّمِ" "نَحْوَ" "وَلْنَحْمِلْ خَطَايَاكُمْ". او د "قُلْ" په جواب کي لام امر حذف کيږي لکه "قُلْ لِعِبَادِيَ الَّذِيْنَ آمَنُوا يُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ اَیْ لِيُقِيْمُوا الصَّلٰوةَ". (جامع الدروس العربية)

## جملے:

| عنوان | خبریہ انشاء مع الاقسام | مسند | مسند الیہ | تعیین اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی، تقدیری | تبعی، غیر تبعی | تعیین اعراب المضارع مع التفصیل | تعیین حروف عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اَلْمُهَاجِرُ مَنْ هَجَرَ الْخَطَايَا وَالذُّنُوْبَ | خبریہ اسمیہ | مَنْ هَجَرَ الْخَطَايَا وَالذُّنُوْبَ | اَلْمُهَاجِرُ | ۲۔(مَنْ، هُوَ) | ۳۔ معرب | ۳۔ مبنی | ۱۔۳ بالحرکت ۱۳ حم | لفظی وتقدیری | غیر تبعی | + | + |
| اَلْمُجَاهِدُ مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِيْ طَاعَةِ اللّٰهِ | خبریہ اسمیہ | مَنْ جَاهَدَ نَفْسَهُ فِيْ طَاعَةِ اللّٰهِ | اَلْمُجَاهِدُ | ۳۔(مَنْ، هُوَ، ہ) | ۳۔ معرب | ۵۔ مبنی | بالحرکت (۱) حم | لفظی | غیر تبعی | + | ۱۔(فِيْ) جارہ |
| لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ قَتَّاتٌ | خبریہ فعلیہ | يَدْخُلُ | قَتَّاتٌ | + | ۳۔ معرب | ۱۔ مبنی | بالحرکت (۱) حم | لفظی | غیر تبعی | (لَا يَدْخُلُ) حالت رفعی (۱) حم | + |
| لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يُرَوِّعَ مُسْلِمًا | خبریہ فعلیہ | لَا يَحِلُّ | أَنْ يُرَوِّعَ | ۱۔(هُوَ) | ۳۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت (۱) حم | لفظی | غیر تبعی | (لَا يَحِلُّ) حالت رفعی (۱) حم (أَنْ يُرَوِّعَ) حالت نصبی (۱) حم | ۱۔(أَنْ) ناصبہ لام جارہ |
| أَنْزِلُوا النَّاسَ مَنَازِلَهُمْ | انشائیہ فعلیہ | أَنْزِلُوا | أَنْتُمْ | ۲۔(أَنْتُمْ، هُمْ) | ۲۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت (۱۔۳) حم | لفظی | غیر تبعی | + | + |
| لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ | خبریہ فعلیہ | لَا يَدْخُلُ | مَنْ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ | ۳۔(مَنْ، ہُ، ہٗ) | ۵۔ معرب | ۵۔ مبنی | بالحرکت (۱۔۳) حم | لفظی | غیر تبعی | (لَا يَدْخُلُ) حالت رفعی (۱) حم (لَا يَأْمَنُ) (۱) قسم | + |
| لَا تَأْذَنُوا لِمَنْ لَمْ يَبْدَأْ بِالسَّلَامِ | انشائیہ فعلیہ | لَا تَأْذَنُوا | أَنْتُمْ | ۳۔(أَنْتُمْ، مَنْ، هُوَ) | ۳۔ معرب | ۷۔ مبنی | بالحرکت (۱) حم | لفظی | غیر تبعی | (لَا تَأْذَنُوا) حالت جزمی (۳) حم (لَمْ يَبْدَأْ) حالت جزمی (۱) حم | ۳۔(لَا) نہی، (لَمْ) جازمہ (لِمَ) جارہ (بِا) جارہ |
| كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ | انشائیہ فعلیہ | كُنْ | أَنْتَ | ۲۔(أَنْتَ، كَ) | ۳۔ معرب | ۶۔ مبنی | بالحرکت (۱) حم | الدنیا تقدیری، در باقی لفظی | غیر تبعی | + | ۲۔ فِيْ جارہ، كَأَنَّ مشبہ بالفعل |
| لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا | انشائیہ فعلیہ | لَا تَجْلِسُوا | أَنْتُمْ | ۳۔(أَنْتُمْ، أَنْتُمْ، هَا) | ۳۔ معرب | ۸۔ مبنی | بالحرکت (۳) حم | لفظی | غیر تبعی | (لَا تَجْلِسُوا) حالت جزمی (۳) حم، (لَا تُصَلُّوا) حالت جزمی (۳) حم | ۲۔(لَا لَا) ناہیہ (عَلَى) (إِلَى) جارہ |
| جَاهِدُوا الْمُشْرِكِيْنَ بِأَمْوَالِكُمْ وَأَنْفُسِكُمْ وَأَلْسِنَتِكُمْ | انشائیہ فعلیہ | جَاهِدُوا | أَنْتُمْ | ۳۔(أَنْتُمْ، كُمْ، كُمْ، كُمْ) | ۴۔ معرب | ۸۔ مبنی | بالحرف، بالحرکت (۳۔۱۰) حم | لفظی | تبعی وغیر تبعی | + | ۱۔(بِا) جارہ |
| إِنَّ مِنَ الْمَعْرُوفِ أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ | خبریہ اسمیہ | مِنَ الْمَعْرُوفِ باعتبار متعلق | أَنْ تَلْقَى أَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلْقٍ | ۲۔(أَنْتَ، كَ) | ۵۔ معرب | ۲۔ مبنی | بالحرکت، بالحرف (۱۔۶) حم | لفظی | غیر تبعی | (أَنْ تَلْقَى) حالت نصبی (۳) حم | ۳۔(إِنَّ) مشبہ بالفعل (مِنْ) جارہ، (أَنْ) ناصبہ مصدریہ، (بِا) جارہ |

| عنوان | خبر و انشاء مع الاقسام | مسند | مسند الیه | تعین اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی، تقدیری | تسمی، غیر تسمی | تعین اعراب المضارع مع التفصیل | تعین حروف عامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّ الصِّدْقَ بِرٌّ. وَإِنَّ الْبِرَّ يَهْدِي إِلَى الْجَنَّةِ | خبریه اسمیه | بِرٌّ | الصِّدْقَ | ۱.(هُوَ) | ۵. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت (۱) قسم | لفظی | غیر تسمی | (يَهْدِي) حالت رفعی • (۲) قسم | ۳.(إِنَّ. إِنَّ) مشبہ بالفعل (إِلَى) جارہ |

# التمرين:

"إِنْ تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ،، وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ،، فَإِنْ جَاءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ،، لَنْ تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّى تُنْفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ،، فَلَنْ أَبْرَحَ الْأَرْضَ حَتَّى يَأْذَنَ لِي أَبِي،، فَإِنْ لَمْ تَفْعَلُوا وَلَنْ تَفْعَلُوا فَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي،، وَإِنْ تَصْبِرُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ ذَلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُورِ،، أُولَئِكَ لَمْ يُؤْمِنُوا،، وَلَمَّا يَدْخُلِ الْإِيمَانُ فِي قُلُوبِكُمْ،، يُرِيدُونَ أَنْ يُطْفِئُوا نُورَ اللَّهِ بِأَفْوَاهِهِمْ".

باب دوم در عمل افعال الخ:............................ الی قوله فصل بدانکه فاعل اسمیست.

## ترجمه:

دوهم باب د افعالو په عمل کي دئ پوه سه! چي يو فعل داسي نسته چي عمل نه کوي (سوا د يو ثو افعالو څخه) او افعال د عمل کولو په اعتبار سره پر دوه قسمه دي اول قسم فعل معروف خواه که لازم وي او که متعدي فاعل ته رفع ور کوي لکه: "قَامَ زَيْدٌ" و "ضَرَبَ عَمْرٌو" او شپږو اسمو ته نصب ور کوي اول مفعول مطلق ته لکه: "قَامَ زَيْدٌ قِيَامًا او ضَرَبَ زَيْدٌ ضَرْبًا" دوهم قسم مفعول فيه ته لکه: "صُمْتُ يَوْمَ الْجُمُعَةِ او جَلَسْتُ فَوْقَكَ". دريم قسم مفعول معه ته لکه: "جَاءَ الْبَرْدُ وَالْجُبَّاتِ" يعني "مَعَ الْجُبَّاتِ". څلورم قسم مفعول له ته لکه: "قُمْتُ إِكْرَامًا لِزَيْدٍ او ضَرَبْتُهُ تَأْدِيبًا". پنځم قسم حال ته لکه: "جَاءَ زَيْدٌ رَاكِبًا". شپږم قسم تميز ته کم وخت چي د فعل نسبت و فاعل ته وسي او په هغه کي ابهام وي لکه: "طَابَ زَيْدٌ نَفْسًا" لېکن فعل متعدي مفعول به ته نصب ور کوي او دا عمل په فعل لازم کي نسته.

# الدرس الرابع والعشرون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

## اوله خبره:

**باب دوهم در عمل (۱) افعال: دوهم باب د افعال عامله وو په بيان کي دئ.**

د فعل تقسيمات:

په فعل کي څلور تقسيمونه دي.

د فعل اول تقسيم:

افعال په اعتبار د معنٰی سره پر دوه قسمه دي:

۱. افعال تامه.

۲. افعال قاصره.

د افعال تامه تعريف:

فعل تام هغه فعل دئ چي دی د خپل مصدر صفت (۲) خپل فاعل لره ثابته وي لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ".

د افعال قاصره تعريف:

فعل قاصر هغه فعل دئ چي دی د خپل مصدر څخه علاوه خپل فاعل لره (۳) د يو بل صفت ثابتولو دپاره يې وضع راغلې وي، لکه: "كَانَ زَيْدٌ عَالِمًا".

د افعال قاصره اقسام:

افعال قاصره پر دوه قسمه دي:

۱. افعال ناقصه.

۲. افعال مقاربه.

د فعل دوهم تقسيم:

فعل په اعتبار د تصرف او عدم تصرف سره پر دوه قسمه دئ:

۱. فعل متصرف.

---

(۱) افعال ټول عامل دي ماسوا د "قَلَّ، كَثُرَ، طَالَ" څخه چي کم وخت دوی پر "مَا" کافه باندي داخل سي نو دوی بيا ملغی عن العمل وي لکه: "طَالَمَا أَيْقَظْتَ فَتَنَاعَسْتَ" "قَلَّمَا، كَثُرَمَا" داغه رنګه "كَانَ" زائده هم غير عامل دئ او هغه افعال چي هغه تاکيد واقع سوی وي لکه: "قَامَ قَامَ زَيْدٌ" نو په دوی کي اول فعل عامل دئ دوهم غير عامل دئ. (تثوير)

(۲) دلته "ضَرَبَ" د خپل مصدر وصف چي "ضَرْب" دئ خپل فاعل "زَيْدٌ" لره ثابته وي. (از مرتب عفي عنه)

(۳) دلته "كَانَ" د خپل مصدر چي "كَوْن" دئ د هغه څخه علاوه يو بل صفت چي "علم" دئ هغه خپل فاعل لره ثابته وي. (تثوير)

۲. فعل غیر متصرف.

**د فعل متصرف تعریف:**

فعل متصرف هغه فعل دئ چي د ده څخه صیغې جوړېږي لکه: "ضَرَبَ".

**د فعل غیر متصرف تعریف:**

فعل غیر متصرف هغه فعل دئ چي د ده څخه صیغې نه جوړېږي لکه: فعل تعجب "مَآاَضْرَبَهُ".

**د فعل دریم تقسیم:**

فعل په اعتبار د فاعل سره پر دوه قسمه دئ:

۱. فعل معلوم.

۲. فعل مجهول.

**د فعل معلوم تعریف:**

فعل ([1]) معلوم هغه فعل دئ چي پر نسبت قیامي باندي دلالت کوي او د ده فاعل مذکوره وي لکه: "ضَرَبَ زَیْدٌ".

**د فعل مجهول تعریف:**

فعل مجهول هغه فعل دئ چي پر نسبت وقوعي باندي دلالت کوي او د ده فاعل نه وي ذکر لکه: "ضُرِبَ زَیْدٌ".

## دوهمه خبره:

**د فعل څلورم تقسیم:**

---

([1]) فعل معلوم ته فعل معروف او مبني للفاعل هم وایي: او فعل مجهول ته مبني للمفعول، فعل "مَالَمْ یُسَمَّ فَاعِلُهُ" هم ورته وایي. د فعل معلوم او فعل مجهول د معلومولو دپاره مصدر معلوم او مصدر مجهول معلومول ضروري دي مثلا "زَیْد" "عَمْرو" ووهی اوس په دې مثال یو هیئت وصفت چي "ضَارِبِیَتْ" دي "زَیْد" لره ثابت دي او یو هیئت وصفت چي "مَضْرُوْبِیَتْ" دي "عَمرو" لره ثابت دئ د "زَیْد" د صفت بیانولو دپاره "ضَرَبَ" فعل معلوم ذکر کیږي او د "عَمْرو" د صفت بیانولو دپاره "ضُرِبَ" فعل مجهول ذکر کیږي د دواړو دپاره مصدر ثابت دئ لیکن د فاعل دپاره مصدر معلوم او د مفعول دپاره مصدر مجهول ثابت دئ او فعل معلوم د مصدر معلوم څخه جوړیږي چي "قِیَامه" دئ او فعل مجهول د مصدر مجهول څخه جوړیږي چي "وقوع" دی او د فعل معلوم دپاره فاعل او د فعل مجهول دپاره نائب فاعل راځي. (غرض جامي)

فعل په اعتبار د معنٰی سره بيا پر درې قسمه دئ:

۱. فعل لازمي ([1]).

۲. فعل متعدي.

۳. واسطه يعني چي نه لازم او نه متعدي وي.

د فعل لازمي تعريف:

فعل لازمي ([2]) هغه فعل دئ چي صرف په فاعل سره تاميږي مفعول ته ضرورت نه لري لکه: "قَامَ زَيْدٌ".

د فعل متعدي تعريف:

فعل ([3]) متعدي هغه فعل دئ چي صرف په فاعل سره نه تاميږي بلکه مفعول ته هم ضرورت لري لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا".

---

([1]) د فعل لازمي او متعدي په دوو خبرو کي سره اشتراک دئ اوله خبره دا چي دواړه فاعل ته رفع ور کوي دوهمه خبره دا چي دواړه اوو (۷) اسمو ته نصب ور کوي چي هغه مفعول مطلق، مفعول فيه، مفعول له، مفعول معه، حال، تميز، مستثنی دي، او د دوی په مينځ کي اختلاف صرف په يوه خبره کي دئ هغه دا چي فعل متعدي مفعول به ته هم نصب ور کوي او د فعل لازمي دپاره مفعول به نه راځي. (تثوير)

([2]) فعل لازمي په اووه (۷) شيانو سره متعدي کيږي:

۱. "إِمَّا بِنَقْلِهِ إِلَی بَابِ الْإِفْعَالِ مِثْلُ أَكْرَمْتُ الْعَالِمَ".

۲. "وَإِمَّا بِنَقْلِهِ إِلَی بَابِ التَّفْعِيْلِ مِثْلُ عَظَّمْتُ الْأَسَاتِذَة".

۳. "إِمَّا بِنَقْلِهِ إِلَی بَابِ الْمُفَاعَلَه نَحْوَ مَشٰی زَيْدٌ مَاشَيْتُ زَيْدًا".

۴. "إِمَّا بِنَقْلِهِ إِلَی بَابِ الْإِسْتِفْعَالِ نَحْوَ خَرَجَ زَيْدٌ إِسْتَخْرَجْتُ زَيْدًا".

۵. "إِمَّا بِنَقْلِهِ إِلَی بَابِ نَصَرَ لِقَصْدِ الْمُبَالِغَه نَحْوَ كَرُمْتُ الْفَارِسَ وَأَكْرُمُهُ.

۶. وَإِمَّا بِوَاسِطَةِ حَرْفِ الْجَرِّ مِثْلُ أَعْرِضْ عَنِ الرَّذِيْلَةِ وَتَمَسَّكْ بِالْفَضِيْلَةِ".

۷. "بِالتَّضْمِيْنِ وَهُوَ إِشْرَابُ لَفْظٍ مَعْنًی آخَرَ وَإِعْطَائُهُ حُكْمَهُ لِتُؤَدِّيَ مَعْنٰی كَلِمَتَيْنِ وَهُوَ أَنْ يُؤَدِّيَ فِعْلٌ أَوْ مَا فِي مَعْنَاهُ مُؤَدّٰی فِعْلٍ آخَرَ أَوْ مَا فِي مَعْنَاهُ فَيُعْطِيْ حُكْمَهُ فِي التَّعْدِيَةِ وَاللُّزُوْمِ نَحْوَ لَا تَعْزِمُوْا السَّفَرَ أَیْ لَا تَنْوِیْ السَّفَرَ" (همع الهوامع شرح جمع الجوامع للسيوطي بحواله تثوير).

([3]) فعل متعدي په نون د "انفعال" او په تاء د "تفعل" سره لازمي جوړيږي لکه: د "قَطَعَ" معنی کاټول متعدي معنی ېې ده کله چي باب "إِنْفِعَال" "إِنْقَطَعَ" يا باب "تَفَعُّل" "تَقَطَّعَ" ته نقل سي نو بيا د "إِنْقِطَاع" او د "تَقَطُّعْ" معنی کاټېدل لازمي معنی جوړيږي. (حاشية الصبيان)

واسطه فعل غير لازمي او فعل غير متعدي:

فعل غير لازمي غير متعدي لکه: افعال ناقصه و مقاربه.

د فعل لازمي علامات:

د فعل لازمي د پېژندلو اووه (۷) علامې دي:

۱. هغه فعل چي پر حدوث د ذات دلالت کوي لکه: "حَدَثَ عَمْرٌو، عَرَضَ صَفْرٌ".

۲. چي د صفت حسيه پر حدوث باندي يعني پر هيئت باندي دلالت کوي لکه: "طَالَ اللَّيْلُ، قَصُرَ النَّهَارُ".

۳. چي پر عرض باندي دلالت کوي لکه: "مَرِضَ زَيْدٌ، فَرِحَ بَكْرٌ".

۴. چي د "فَعُلَ" پر وزن وي لکه: "شَرُفَ كَرُمَ".

۵. چي هغه فعل د "اِنْفَعَلَ، تَفَعْلَلَ، اِفْعَلَّ، اِفْعَالَّ، اِفْعَنْلَلَ، اِفْعَلَلَّ"، پر وزن راغلی وي لکه: "اِنْصَرَفَ، تَدَحْرَجَ، اِحْمَرَّ، اِحْمَارَّ، اِحْرَنْجَمَ، اِقْشَعَرَّ".

۶. هغه فعل چي د هغه وصف د "فَعِيْلٌ" پر وزن راغلی وي لکه: د "ذَلَّ" څخه "ذَلِيْلٌ" د "سَمُنَ" څخه "سَمِيْنٌ".

۷. چي د ده څخه فعل مجهول او اسم مفعول نه راځي.

د فعل متعدي علامات:

د فعل متعدي دوې علامې دي:

۱. چي د ده سره د غير مصدر او غير خبر ضمير متصل کېدل صحيح وي لهذا په "اَلْخُرُوْجَ خَرَجَهُ زَيْدٌ" کي "خَرَجَهُ زَيْدٌ" "اَوْ زَيْدٌ كُنْتُهُ" د دې څخه خارج سول ځکه دلته ضمير د مصدر يا د خبر په فعل پوري متصل سوی دئ.

۲. چي د اسم مفعول تام بنا د ده څخه صحيح وي بغير د واسطې د حرف جر.

---

(۱) فعل متعدي په نون د "انفعال" او په تاء د "تفعل" سره لازمي جوړيږي لکه: د "قَطَعَ" معنی کاټول متعدي معنی يې ده لېکن کله چي باب "اِنْفِعَال" "اِنْقَطَعَ" يا باب "تَفَعُّل" "تَقَطَّعَ" ته نقل سي نو بيا د "اِنْقِطَاع" او د "تَقَطُّعْ" معنی کاټېدل لازمي معنی جوړيږي. (حاشية الصبيان)

فصل بدانکه فاعل اسمیت الخ: ........................ الی قوله مفعول معه.

## ترجمه:

پوه سه! چي فاعل هغه اسم دئ چي دده څخه مخکي فعل وي او د فعل نسبت وده ته سوی وي په طریقه د قیام سره لکه: "زَیْدٌ" په "ضَرَبَ زَیْدٌ" کي او مفعول مطلق، هغه مصدر دئ چي تر فعل وروسته واقع سوی وي او دی په معنیٰ سره د هغه فعل وي لکه: "ضَرْبًا" په "ضَرَبْتُ ضَرْبًا" کي او "قِیَامًا" په "قُمْتُ قِیَامًا" کي او مفعول فیه هغه اسم دئ چي فعل مذکور په ده کي واقع سوی وي او وده ته ظرف هم وېل کېږي او ظرف پر دوه قسمه دئ ظرف زمان لکه: "یَوْمَ" په "صُمْتُ یَوْمَ الْجُمُعَةِ" کي او ظرف مکان لکه: "عِنْدَ" په "جَلَسْتُ عِنْدَکَ" کي.

## دریمه خبره:

د فاعل تعریف:

فاعل هغه اسم دئ چي د ده څخه مخکي فعل یا شبه (۱) فعل وي او د دا فعل یا شبه فعل نسبت و دې اسم (فاعل) ته سوی وي په طریقه د قیامي سره نه د وقوع لکه: "ضَرَبَ زَیْدٌ".

د فاعل شرائط:

د فاعل (۲) دپاره څلور شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چي فاعل به اسم وي خواه که حقیقةً اسم وي او که تأویلًا اسم وي احترازي مثال لکه: "ضَرَبَ، مِنْ".

---

(۱) شبه فعل لس (۱۰) شیان واقع کېږي: (۱) مصدر. (۲) اسم فاعل. (۳) اسم مفعول. (۴) صفت مشبه. (۵) اسم تفضیل. (۶) اسم مبالغه. (۷) اسم منسوب. (۸) اسم آله. (۹) اسم ظرف (۱۰) اسم فعل. لېکن مراد اسم فاعل، اسم تفضیل، صفت مشبه، مبالغه، اسم آله، ظرف مستقر یعني جار و مجرور، ظرف زمان و مکان چي کم وخت دوی اعتماد کړی وي، لېکن صیغه د ظرف بالاتفاق غیر عامله ده. (حاشیة الصبیان جلد ۲ صفحه ٦١).

(۲) فاعل چونکه عمده دئ بغیر د قائمقام د ده حذف جائز نه دئ خلاف الکسائي لېکن پنځه بابونه د دې قاعدې څخه مستثنی دي: (۱) فعل مجهول. (۲) مصدر لکه: "أَوْ إِطْعَامٌ فِي یَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ". علی مذهب الجمهور ځکه د جمهورو علماء په نزد باندي مصدر حامل للضمیر نه وي "لِجُمُوْدِهِ" لېکن عند السیوطي په داسي مثالو کي مصدر حامل للضمیر وي ځکه چي کله جامد د مشتق په تاویل سره وي بیا دی حامل للضمیر کېدای سي. (۳) فعل چي کله مؤکد بالنون وي لکه: "وَلَا یَصُدُّنَّکَ". (۴) په فعل تعجب کي لکه: "أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ" (۵) مستثنی مفرغ لکه: "مَاقَامَ إِلَّا زَیْدٌ أَیْ مَا قَامَ أَحَدٌ". (حاشیة الصبیان صفحه ٦٢)

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي د ده ځخه مخکي به فعل يا شبه فعل وي احترازي مثال لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ".

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي د فعل يا د شبه فعل نسبت به و اسم ته سوی وي احترازي مثال لکه: "زَيْدٌ ضَرَبَ عَمْرًوا".

۴. څلورم شرط يې دا دئ: چي د فعل يا شبه فعل نسبت به وده ته پر طريقه د قيام سوی وي احترازي مثال لکه: "ضُرِبَ زَيْدٌ" د اسم حقيقي اتفاقي مثال لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ" د اسم تاويلي مثال لکه: "يَحْسُنُ اَنْ تَجْتَهِدَ اَیْ يَحْسُنُ اِجْتِهَادُکَ".

## ضابطه:

ناعل (۱) همېشه مرفوع وي لېکن په څلورو ځايو کي دی لفظا مجروره کيږي:

۱. په اضافت سره کله چي د مصدر اضافت و فاعل ته سوی وي لکه: "وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ".

۲. په "لام" زائده سره لکه: "هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ".

۳. په "مِنْ" زائده سره لکه: "مَا جَاءَنَا مِنْ بَشِيرٍ وَلَا نَذِيرٍ".

۴. په "با" زائده سره لکه: "وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيدًا".

## فائده:

په دغه صورتو کي د فاعل دوه اعراب وي لفظا مجروره (۱) او معنا مرفوع وي، ځکه دی فاعل دئ او د ده پر توابع (۲) باندي دوه اعرابه ويل جائز دي.

---

(۱) د فعل فاعل که چيري اسم ظاهر وو نو فعل به د تثنيه او جمع د علامه ځخه خالي وي لېکن على الاقل کله کله د تثنيې او جمع علامه ور سره ذکر کيږي لکه: څنګه چي علامه زمخشري رحمة الله عليه په دې آيت کي چي "لَا يَمْلِكُونَ الشَّفَاعَةَ إِلَّا مَنِ اتَّخَذَ عِنْدَ الرَّحْمٰنِ عَهْدًا" "مَنْ" فاعل جوړ کړی دئ د "يَمْلِكُونَ" دپاره او په "يَمْلِكُونَ" کي واو علامه د جمع موجوده او معنٰى په "ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِنْهُمْ" کي د دغه دوه فعلو تنازع ده په اسم ظاهر کي چي "كَثِيرٌ" دئ او په دوی کي علامه د جمع چي واو دئ موجوده ده. لېکن بعض نحاة وروسته اسم ظاهر مبتدا، مؤخره بللې ده او فعل يې خبر مقدم جوړ کړی دئ او بعضي نحاة اسم ظاهر د ضمير ځخه بدل جوړوي او دا يې د "اَكَلُونِي الْبَرَاغِيثُ" د لغت ځخه بللی دئ. (اشموني)

## فائده:

ذ باءِ زائده دخول پر فاعل باندي درې قسمه راځي:

۱. اول "وجوبًا" چي د فعل تعجب پر فاعل باندي راځي لکه: "أَسْمِعْ بِهِمْ وَأَبْصِرْ".

۲. "جوازًا کثيرًا" چي د "کَفٰی" پر فاعل باندي راځي لکه: "وَكَفٰى بِاللهِ شَهِيدًا".

۳. "جوازًا قليلًا" لکه: په بعضي اشعارو کي چي راځي.

لَمْ يَأْتِيكَ وَالْأَنْبَاءُ تَنْمِي............ بِمَا لَاقَتْ لَبُوْنُ بَنِيْ زِيَادِ

## څلورمه خبره:

### د مفعول مطلق تعریف:

مفعول مطلق هغه مصدر (۳) دئ چي د خپل فعل مذکور په معنٰی سره وي لکه: "ضَرَبْتُ ضَرْبًا، قُمْتُ قِيَامًا".

---

(۱) د اکثره نحاتو په نزد باندي د فاعل اعراب په دې صورت کي محلي دئ او محلي اعراب په جمله او مبني پوري نه وي خاص د محلي او تقديري اعراب فرق دا دئ چي په محلي کي مانع د وره کلمه سره قائم وي او په تقديري کي مانع صرف د کلمه په آخري حرف پوري قائم وي. (حاشية الصبيان)

(۲) د فاعل مجرور په تابع کي دوې وجي ويل جائز دي: (۱) جر "حَمْلًا عَلَى اللَّفْظِ". (۲) "رفع" "حَمْلًا عَلَى الْمَحَلِّ" لکه: "مَاجَائَنِيْ مِنْ رَجُلٍ كَرِيْمٌ وَكَرِيْمٍ" لیکن که چیري معطوف معرفه وه نو بیا رفع متعینه ده لکه: "مَاجَائَنِيْ مِنْ عَبْدٍ وَلَا زَيْدٌ" ځکه فاعل چي کله په "مِنْ" سره مجروره کیږي د هغه دپاره شرط دا دئ: چي نکره به تر نفي یا شبه نفي وروسته وي. (حاشية الصبيان)

(۳) د مصدر څخه مراد عام دئ خواه که اصالةً مصدر وي او که نیابةً مصدر وي لکه: په "خَيْرَ مَقْدَمٍ" کي په اصل کي "قُدُوْمًا خَيْرَ مَقْدَمٍ" وو بیا "قُدُوْمًا" موصوف حذف سو "خَيْرَ" اسم تفضيل يې نيابةً پر ځای ودرېدئ او که حقيقتًا يا حکمًا مصدر وي لکه: په "أَهْلَكَ اللهُ وَيْحَةً" کي "وَيْحَةً" حکمًا مصدر دئ او د فعل مذکور څخه مراد عام دئ خواه که په لفظو کي وي او که مقدر وي لکه په "ضَرْبَ الرِّقَابِ" کي "اِضْرِبُوْا" فعل مقدر دئ. (همع الهوامع و ضوابط نحويه)

د مصدر تعریف: مصدر هغه دئ چي پر حدث باندي دلالت کوي او د فعل حروف لره لفظًا یا تقدیرًا متضمن وي لکه: "عَلِمَ عِلْمًا قَاتَلَ قِتَالًا" یا د حرف محذوف په عوض کي بل حرف راوړل سوی وي لکه د "وَعْدٌ" څخه "عِدَةٌ".

د اسم مصدر تعریف:

د مفعول مطلق شرائط:

د مفعول مطلق دپاره څلور شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي مصدر به وي احترازي مثال لکه: "زَيْدٌ".
۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي فضله غير حال به وي احترازي مثال لکه: "اَعْجَبَنِيْ ضَرْبُ زَيْدٍ".
۳. دريم شرط يې دا دئ: چي د ده څخه مخکي به فعل يا شبه فعل مذکور يا محذوف وي احترازي مثال لکه: "رَفْعًا وَ جَرًّا".
۴. څلورم شرط يې دا دئ: چي دی به په معنٰی د فعل مذکور سره وي احترازي مثال لکه: "ضَرَبْتُ تَأْدِيْبًا" اتفاقي مثال لکه: "ضَرَبْتُ ضَرْبًا".

د مفعول (۱) مطلق اقسام:

مفعول مطلق په اعتبار د معنٰی سره پر درې قسمه دئ:

۱. تاکيدي.
۲. نوعي.
۳. عددي.

د مفعول مطلق تاکيدي (۱) تعريف:

---

اسم مصدر هغه دئ چي پر حدث باندي دلالت کوي لېکن د فعل تمام حروف لره لفظا، تقديرا متضمن نه وي او په ده کي حذف بغير عوض وي لکه: "تَوَضَّأَ وُضُوْءً تَكَلَّمَ كَلَامًا".

د مصدر صناعي تعريف: "هُوَ اِسْمٌ تَلْحَقُهُ يَاءُ النِّسْبَةِ مُرْدِفَةً لِلدَّلَالَةِ عَلٰى صِفَةٍ فِيْهِ وَ ذٰلِكَ فِي الْأَسْمَاءِ الْجَامِدَةِ كَالْحَجَرِيَّةِ وَ الْإِنْسَانِيَّةِ. وَ فِي الْأَسْمَاءِ الْمُشْتَقَّةِ كَالْعَالَمِيَّةِ. وَ الْفَاعِلِيَّةِ" مصدر ميمي او اسم مفعول او اسم ظرف د غير ثلاثي مجرد څخه په يوه وزن باندي راځي فرق يې په قرينه سره کيږي. (جامع الدروس العربية)

(۱) د مفعول مطلق د اقسامو وجه د حصر: مفعول مطلق د دوو حالو څخه خالي نه دئ يا به د خپله معنی څخه پر زائد معنی دلالت کوي يا به يې نه کوي که يې چيري پر زائد معنی دلالت نه کاوي نو هغه مفعول مطلق تاکيدي دئ لکه: "ضَرَبْتُ ضَرْبًا" او که يې چيري پر زائد معنی دلالت کوئ بيا به يا په ده کي د يو شکل و صورت بيان وي هغه مفعول مطلق نوعي دئ لکه: "جَلَسْتُ جِلْسَةَ الْقَارِيْ" يا به د تعداد بيان وي هغه مفعول مطلق عدد دئ لکه: "جَلَسْتُ جَلْسَةً أَوْ جَلْسَتَيْنِ. أَوْ جَلَسَاتٍ". که څه هم په مفعول مطلق کي يوه معنی مصدري يعني حدثي پکښې ده او په فعل کي درې معناګاني دي "حدث، نسبت، زمان" نو مفعول مطلق به څنګه د فعل په معنی سي لېکن دلته د فعل اشتمال پر مفعول مطلق باندي اشتمال د کل پر جزء باندي دئ. (تنوير)

مفعول مطلق تاكيدي هغه مصدر دئ چي د فعل د معنٰی څخه مستفاد (راخستل سوی) وي او د فعل د مدلولاتو (معناګانو) څخه د يو مدلول (معنی) د تاكيد دپاره راغلی وي لكه: "ضَرَبْتُ ضَرْبًا".

**د مفعول مطلق نوعي (۲) تعريف:**

مفعول مطلق نوعي هغه مصدر دئ چي د فعل مذكور پر معنٰی باندي د دلالت كولو سره سره د فعل د يو نوع تعين هم كوي لكه: "جَلَسْتُ جِلْسَةَ الْقَارِيْ" (ما يو نوع ناسته وكړه د قاري د ناستي په شان) ضَرَبْتُ ضَرْبَ الْاَمِيْرِ" (ما يو نوع وهل وكړه د امير د وهلو په شان).

**د مفعول مطلق عددي تعريف:**

مفعول مطلق عددي هغه مصدر دئ چي د فعل مذكور پر معنٰی د دلالت كولو سره سره پر وحدت او پر كثرت يعني د فعل پر عدد باندي هم دلالت كوي لكه: "ضَرَبْتُ ضَرْبَتَيْنِ" (ما دوه واره وهل وكړه) "جَلَسْتُ جَلْسَةً اَوْ جَلْسَتَيْنِ اَوْ جَلْسَاتٌ" (ما يوه يا دوې يا درې ناستي وكړې).

---

(۱) د تاكيد څخه دلته تاكيد اصطلاحي يعني تاكيد لفظي و معنوي نه دي مراد بلكه دلته د تاكيد څخه مراد تاكيد لغوي يعني د فعل د مدلولاتو څخه د يو مدلول تاكيد كول دغه رنګه د مصدر تاكيدي څخه بالاتفاق تثنيه او جمع نسي راتلای او د عددي څخه بالاتفاق راتلای سي لكه: "ضَرَبْتُ ضَرْبَتَيْنِ، ضَرْبَاتٌ" او په نوعي كي اختلاف دئ مشهوره يې جواز دئ لېكن عند سبويه ناجائز دئ. (شرح ابن عقيل جلد ۲ صفحه ۱۷۵)

**ضابطه:** كه چيري قرينه موجوده وه او مفعول مطلق تاكيدي هم نه وو نو بيا د ده فعل كله جوازًا حذف كيږي لكه: په "خَيْرَ مَقْدَمٍ" كي په اصل كي "قَدِمْتَ قُدُوْمًا خَيْرَ مَقْدَمٍ" وو بيا د قرينه حاليه په وجه چي حالت د مسافر دئ "قَدِمْتَ" فعل حذف سو او كله فعل وجوبًا سماعًا حذف كيږي لكه: "سَقْيًا: اَيْ سَقَاكَ اللهُ سَقْيًا" او داغه رنګه "شُكْرًا، حَمْدًا، رَعْيًا". (جامع الدروس العربية)

(۲) د نوع دپاره د "فِعْلَةٌ" وزن راځي لكه: "صِبْغَةٌ" (يو خاص رنګ) "سِيْرَةٌ" (يو خاص طريقه) او د "فَعْلَةٌ" وزن د عدد دپاره راځي يعني (يو وار) لكه: "جَلْسَةٌ".

**شعر:** "اَلْمَفْعَلُ لِلْمَوْضِعِ وَالْمِفْعَلُ لِلْآلَةِ.................. وَالْفَعْلَةُ لِلْمَرَّةِ وَالْفِعْلَةُ لِلْحَالَةِ". (الهاميه)

**فائده:**

د مفعول مطلق او د فعل مذکور په مینځ کي په معنٰی کي اتحاد (یو رنګه کېدل) ضروري دئ لېکن په الفاظو کي اتحاد نه دئ ضروري بلکه تغایر (فرق یو رنګه نه کېدل) هم کېدای سي او تغایر په درې شکلو سره راځي:

۱. کله کله تغایر صرف په باب کي وي لکه: "اَنۡبَتَ اللهُ نَبَاتًا وَ تَبَتَّلۡ اِلَيۡهِ تَبۡتِيۡلًا" (اَنۡبَتَ، نَبَتَ، تَبَتَّلَ، تَبۡتِيۡلًا، مِنۡ بَتَّلَ).

۲. کله تغایر صرف په ماده کي وي لکه: "جَلَسۡتُ قُعُوۡدًا" (جَلَسَ، قَعَدَ).

۳. کله تغایر چي باب او ماده دواړو کي وي لکه: "وَأَوۡجَسَ مِنۡهُمۡ خِيۡفَةً" (اَوۡجَسَ، اِفۡعَالٌ، مِنۡ وَجَسَ، وَ خِيۡفَةٌ مُجَرَّدٌ مِنۡ خَافَ).

**پنځمه خبره:**

مفعول فیه:

د مفعول فیه تعریف:

مفعول فیه هغه اسم زمان یا مکان دئ چي دی منصوبه وي په تقدیر د "فِيۡ" سره او په ده کي فعل مذکور واقع سوی وي لکه: "صُمۡتُ دَهۡرًا" (ما په زمانه کي روژه و نیول) "سَافَرۡتُ شَهۡرًا" (ما په میاشته کي سفر و کړئ) د ده دوهم نوم ظرف [1] دئ.

---

[1] نائب الظرف شپږ (٦) شیان دي چي مفعول فیه جوړیږي او منصوبه کیږي:

۱. هغه اسم چي پر کلیت یا پر بعضیت باندي دلالت کوي او و ظرف ته مضاف وي لکه: "مَشَيۡتُ كُلَّ النَّهَارِ بَعۡضَهَا. جَمِيۡعَهَا. نِصۡفَهَا. رُبۡعَهَا".

۲. کله صفت د ظرف نائب وي لکه: "وَقَفۡتُ طَوِيۡلًا مِنَ الۡوَقۡتِ اَیۡ زَمَانًا طَوِيۡلًا مِنۡهُ".

۳. کله اسم اشاره وي لکه: "مَشَيۡتُ هٰذَا الۡيَوۡمَ مَشۡيًا مُتۡعِبًا".

۴. کله عدد وي چي ممیز وي په ظرف، یا په مضاف الیه سره لکه: "سَافَرۡتُ ثَلَاثِيۡنَ يَوۡمًا وَلَزِمۡتُ الدَّارَ سِتَّةَ اَيَّامٍ".

۵. هغه مصدر چي متضمن وي معنی د ظرف لره هغه په دې شکل چي ظرف مضاف وي و مصدر ته بیا ظرف مضاف حذف سوی وي، او مصدر یې په شکل د (مضاف الیه) کي د ده پر ځای درېدلی وي لکه: "سَافَرۡتُ وَقۡتَ طُلُوۡعِ الشَّمۡسِ".

د ظرف اقسام:

ظرف پر دوه قسمه دئ:

۱. ظرف زمان.

۲. ظرف مکان.

بیا هر یو پر دوه قسمه دئ:

۱. محدود.

۲. مبهم.

د ظرف زمان محدود تعریف:

ظرف زمان محدود هغه ظرف دئ چي د ده دپاره یو حد (اندازه) متعين وي لکه: "يَوْمٌ" (ورځ) "وَلَيْلٌ" (شپه).

د ظرف زمان مبهم تعریف:

ظرف زمان مبهم هغه ظرف دئ چي د ده دپاره یو حد (اندازه) نه وي متعين لکه: "حِيْنٌ، دَهْرٌ" (زمانه).

د ظرف زمان حکم:

ظرف زمان خواه که مبهم وي او که محدود وي همېشه منصوبه وي په تقدیر د "فِيْ" سره په دې شرط چي دی به متضمن وي معنٰی د "فِيْ" لره لکه: "سَافَرْتُ شَهْرًا، صُمْتُ دَهْرًا".

د ظرف مکان محدود تعریف:

ظرف مکان محدود هغه ظرف دئ چي د ده دپاره یو حد (اندازه) متعين وي لکه: "دَارٌ، سُوْقٌ، مَسْجِدٌ، بَيْتٌ".

د ظرف (۱) مکان محدود حکم:

---

۶. هغه الفاظ مسموعه چي په هغو کي توسع وي او دوی متضمن وي معنی د "فِيْ" لره لکه: "أَحَقًّا أَنَّكَ ذَاهِبٌ" په اصل کي "أَفِيْ حَقٍّ" دئ. (جامع الدروس العربية جلد ۳ صفحه ۴۱)

(۱) د ظرف مکان سره کله تاء د تانیث ملحق کیږي لکه: "مُذْلَةٌ، مِغْدَةٌ" او کله د کثرت شی في المکان باندي د دلالت کولو دپاره د "مَفْعَلَةٌ" پر وزن راځي لکه: "مَسْبَعَةٌ، مَاسَدَةٌ، مَقْبَرَةٌ". (تنوير)

ظرف مكان محدود به مجروره وي په ظهور د حرف جر سره لكه: "جَلَسْتُ فِي الْمَسْجِدِ".

**شپږمه خبره:**

د ظرف مكان مبهم تعريف:

ظرف مكان مبهم هغه ظرف دئ چي د ده دپاره يو حد او اندازه معلومه نه وي لكه: "فَوْقَ، قُدَّامٌ".

د ظرف مكان (۱) مبهم حكم:

ظرف مكان مبهم په دوو صورتو كي منصوب وي:

١. ظرف مكان مبهم يا د ده مشابه چي كله متضمن وي معنى د "فِيْ" لره نو دى منصوبه وي په تقدير د "فِيْ" سره لكه: "وَقَفْتُ أَمَامَ الْمِنْبَرِ".

٢. ظرف مكان مشتق خواه كه مبهم وي او كه محدود په دې شرط چي دى به د فعل مذكور څخه وي لكه: "جَلَسْتُ مَجْلَسَ الْقَائِمِ" ورنه بيا دى مجروره وي لكه: "سِرْتُ فِي مَذْهَبِكَ".

او ظرف مكان محدود غير مشتق همېشه م[illegible]وره په ظهورد "فِيْ" سره وي. سوا د "نَزَلَ، دَخَلَ، سَكَنَ" څخه لكه: "دَخَلْتُ الْمَدِيْنَةَ".

د ظرف دوهم تقسيم:

ظرف د دوهم تقسيم په اعتبار سره پر دوه قسمه دئ:

١. ظرف متصرف.

٢. ظرف غير متصرف.

---

(۱) ظرف زمان مبهم د فعل جزء دئ او قاعده دا ده چي كله د فعل جزء جلا عليحده ذكر سي نو دى بلا واسطه حرف جر منصوبه وي لكه: مفعول مطلق. نو ځكه ظرف زم[illegible] [illegible]صوب وي په تقدير د "فِيْ" سره او ظرف زمان محدود پر زمان مبهم باندي حمل دئ ځكه دواړه په زمانيت كي سره شريكان دي او ظرف مكان مبهم هم پر زمان مبهم باندي حمل دئ ځكه د دوى اشتراک په ابهام كي دئ لېكن ظرف مكان مجرور د زمان مبهم سره نه په ابهام كي او نه په محدوديت كي مشابهت لري نو ځكه دى تقدير د "فِيْ" نه قبلوي بلكه دى به مجروره وي په ظهور د "فِيْ" سره. (شرح جامي)

ظرف متصرف "مَااُسْتُعْمِلَ ظَرْفًا وَ غَيْرَ ظَرْفٍ" چي دَی ظرف و غير ظرف دواړه واقع کيږي لکه: "يَوْمٌ وَ مَكَانٌ" کله: مبتداء و خبر وي لکه: "اَلْيَوْمُ يَوْمٌ مُبَارَكٌ" کله فاعل وي لکه: "اَعْجَبَنِي الْيَوْمُ" کله مفعول وي لکه: "سِرْتُ نِصْفَ النَّهَارِ".

ظرف غير متصرف پر دوه قسمه دئ:

۱. "مَالَا يَسْتَعْمِلُ غَيْرَ ظَرْفٍ" يعني لازم ظرفيت وي لکه: "قَطُّ، عَوْضُ، فَوْقُ" لکه: "جَلَسْتُ فَوْقَ الدَّارِ".

۲. "مَايَسْتَعْمِلُ غَيْرَ ظَرْفٍ بِدُخُوْلِ الْجَارِ عَلَيْهِ" يعني د حروف جاره په داخليدلو سره د ده ظرفيت ختم کيږي لکه: "قَبْلُ، بَعْدُ، لَدُنْ، عِنْدَ" وغيره لکه: "خَرَجْتُ مِنْ عِنْدِ زَيْدٍ".

قوله مفعول معه الخ.......................... الى قوله مفعول له.

## ترجمه:

مفعول معه هغه اسم دئ چي دی تر "واو" بمعنی "مَعَ" وروسته ذکر کيږي لکه: "جَاءَ الْبَرْدُ وَالْجُبَّاتِ اَیْ مَعَ الْجُبَّاتِ".

## اوومه خبره:

د مفعول معه تعريف (۱):

مفعول معه هغه اسم فضله دئ چي تر "واو" بمعنی "مَعَ" څخه وروسته راځي او د فعل د معمول سره مُصَاحِبْ (ملګری) وي لکه: "جَاءَ الْبَرْدُ وَالْجُبَّاتِ".

د مفعول معه شرائط:

د مفعول معه د پاره شپږ شرطونه دي:

---

(۱) د مفعول معه عامل عند الجمهور فعل يا شبه فعل دئ او د شيخ عبد القاهر جرجاني په نزد باندي "وَاوْ" دئ او مفعول معه پر خپل عامل او مُصَاحِبْ باندي نسي مقدم کيدای. (اللباب في علل البناء و الاعراب العكبري جلد ۱ صفحه ۱۰۳)

۱. اول شرط یې دا دئ: چي دی به اسم وي احترازي مثال لکه: "لَاتَاْ كُلِ السَّمَكَ وَ تَشْرَبَ اللَّبَنَ".

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چي فضله به وي احترازي مثال لکه: "اِشْتَرَكَ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو".

۳. دريم شرط یې دا دئ: چي تر واو (۱) وروسته به وي احترازي مثال لکه: "جِئْتُكَ مَعَ عَمْرٍ".

۴. څلورم شرط یې دا دئ: چي "واو" به په معنٰی د "مَعَ" سره وي احترازي مثال لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ وَ عَمْرٌ قَبْلَهٗ".

۵. پنځم شرط یې دا دئ: چي تر جمله وروسته به وي احترازي مثال لکه: "كُلُّ رَجُلٍ وَضَيْعَتُهٗ اي: مُقْتَرِنَانِ".

۶. شپږم شرط یې دا دئ: چي جمله به فعل یا شبه فعل وي احترازي مثال لکه: "هٰذَاكَ وَ اَبَاكَ". اتفاقي مثال لکه: "جَاءَ الْبَرْدُ وَالْجُبَّاتِ".

---

(۱) تر "واو" وروسته اسم په څو شکلو باندي راځي:

۱. اول شکل: که چيري د دا اسم د ماقبل سره په حکم کي شريک کول صحيح نه وه يعني عطف صحيح نه وو، نو بيا نصب على المعية واجب دي. لکه: "فَأَجْمِعُوا أَمْرَكُمْ وَشُرَكَاءَكُمْ".

۲. دوهم شکل: چي شريک کول يې صحيح وي لکن مانع عن العطف موجود وي بيا هم نصب على المعية واجب دئ لکه: "جِئْتُ وَسَعِيْدًا".

۳. دريم شکل: چي شريک کول هم صحيح وي او د عطف څخه مانع هم نه وي موجود لېکن د متکلم مقصود معيت وي بيا هم نصب على المعيت واجب دئ لکه: "لَاتُسَافِرْ اَنْتَ وَعَدُوَّكَ".

۴. څلورم شکل: چي شريک کول واجب وي نو په دې صورت کي عطف واجب دئ لکه: "تُصَالِحُ سَعِيْدٌ وَ خَالِدٌ".

۵. پنځم شکل: او که چيري شرکت جائز وو بلا مانع نو بيا نصب على المعية او عطف دواړه جائز دي لکه: "سَافَرْتُ اَنَا وَ خَلِيْلٌ". (شرح ابن عقيل)

## جملے:

| عنوان | خبر وانشاء مع الاقسام | مسند | مسند الیہ | تعیین اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی، تقدیری | تمی، غیر تمی | تعیین اعراب المضارع مع التفصیل | تعیین منصوبات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| اُذْكُرُوا اللّٰهَ ذِكْرًا كَثِيْرًا | انشائیہ فعلیہ | اُذْكُرُوْا | اَنْتُمْ | ۱۔(اَنْتُمْ) | ۳۔ معرب | ۲۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۲۔ مفعول بہ، مفعول مطلق |
| اُذْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ | انشائیہ فعلیہ | اُذْكُرُوْا | اَنْتُمْ | ۲۔(اَنْتُمْ، كُمْ) | ۲۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۱۔ مفعول بہ |
| سَبِّحُوْهُ بُكْرَةً وَّاَصِيْلًا | انشائیہ فعلیہ | سَبِّحُوْا | اَنْتُمْ | ۲۔(اَنْتُمْ، ہٗ) | ۲۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۲۔ مفعول فیہ، مفعول بہ |
| صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا | انشائیہ فعلیہ | صَلُّوْا | اَنْتُمْ | ۳۔(اَنْتُمْ اَنْتُمْ، ہٖ) | ۱۔ معرب | ۷۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۱۔ مفعول مطلق |
| اِتَّقُوا اللّٰهَ حَقَّ تُقٰتِهٖ | انشائیہ فعلیہ | اِتَّقُوْا | اَنْتُمْ | ۲۔(اَنْتُمْ، ہٖ) | ۳۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۲۔ مفعول مطلق |
| وَاعْلَمُوْا اَنَّ فِيْكُمْ رَسُوْلَ اللّٰهِ | انشائیہ فعلیہ | اِعْلَمُوْا | اَنْتُمْ | ۲۔(اَنْتُمْ، كُمْ) | ۳۔ معرب | ۷۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) (۲) قسم | غیر تمی | + | ۱۔ مفعول بہ |
| فَاتَّبِعُوْا مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا | انشائیہ فعلیہ | فَاتَّبِعُوْا | اَنْتُمْ | ۱۔(اَنْتُمْ) | ۳۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۵۔۱) قسم | تمی وغیر تمی | + | ۱۔ مفعول بہ ۱۔ حال |
| وَلَا تَبَرَّجْنَ تَبَرُّجَ الْجَاهِلِيَّةِ الْاُوْلٰى | انشائیہ فعلیہ | لَا تَبَرَّجْنَ | اَنْتُنَّ | ۱۔(اَنْتُنَّ) | ۳۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم وتقدیری (۱۳) قسم | غیر تمی | + | ۱۔ مفعول مطلق |
| يَدْخُلُوْنَ فِيْ دِيْنِ اللّٰهِ اَفْوَاجًا | خبریہ فعلیہ | يَدْخُلُوْنَ | هُمْ | ۱۔(هُمْ) | ۴۔ معرب | ۲۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۳۔۱) قسم | غیر تمی | (يَدْخُلُوْنَ) حالت رفعی قسم (۴) | ۱۔ حال |
| اِنِّيْ رَاَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا | خبریہ اسمیہ | رَاَيْتُ اَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا | ی | ۲۔(تُ، ی) | ۱۔ معرب | ۶۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۱۔ مفعول بہ |
| اَرْسِلْهُ مَعَنَا غَدًا | انشائیہ فعلیہ | اَرْسِلْ | اَنْتَ | ۳۔(اَنْتَ، ہٗ، نَا) | ۲۔ معرب | ۵۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۲۔ مفعول فیہ ۱۔ مفعول بہ |
| وَسِيْقَ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا | خبریہ فعلیہ | سِيْقَ | الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ اِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا | ۳۔(اَلَّذِيْنَ، هُمْ، هُمْ) | ۳۔ معرب | ۷۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمی | + | ۱۔ حال، مفعول بہ |

## التمرین:

”لَا تَقْتُلُوْا يُوْسُفَ،، فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا،، وَخُلِقَ الْاِنْسَانُ ضَعِيْفًا،، فَخَرَجَ مِنْهَا خَائِفًا يَتَرَقَّبُ،، وَجَاءُوْا اَبَاهُمْ عِشَاءً يَّبْكُوْنَ،، يَجْعَلُوْنَ اَصَابِعَهُمْ فِيْ آذَانِهِمْ مِنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ،، وَرَتِّلِ الْقُرْآنَ تَرْتِيْلًا،، وَلَا تَجْعَلْ يَدَكَ مَغْلُوْلَةً اِلٰى عُنُقِكَ،، وَلَا تَبْسُطْهَا كُلَّ الْبَسْطِ،، وَجَاهِدُوْا فِي اللّٰهِ حَقَّ جِهَادِهٖ“.

قوله مفعول له الخ.................................الی قوله مفعول به.

## ترجمه:

مفعول له هغه اسم دئ چي دی دلالت کوي پر داسي شي باندي چي د فعل مذکور د صادرېدلو سبب جوړ سوی وي لکه: "اِکْرَامًا" په "قُمْتُ اِکْرَامًا لِزَیْدٍ" کي.

## الدرس الخامس و العشرون:

د نن د سبقه خلاصه شپږ (٦) خبري دي:

### اوله خبره:

**د مفعول له تعریف:**

مفعول له هغه مصدر دئ چي د فعل مذکور دپاره علت واقع سوی وي په دې شرط چي د دوی دواړو زمانه او فاعل به یو وي، لکه: "ضَرَبْتُهُ تَاْدِیْبًا".

**د مفعول له [1] شرائط:**

د مفعول له دپاره پنځه شرطونه دي:

١. اول شرط یې دا دئ: چي مصدر به وي احترازي مثال لکه: "جِئْتُکَ لِلسِّمَنِ وَالْعَسَلِ، وَالْأَرْضَ وَضَعَهَا لِلْأَنَامِ".
٢. دوهم شرط یې دا دئ: چي دی به علت وي د حصول د فعل دپاره احترازي مثال لکه: "اَحْسَنْتُ اِحْسَانًا اِلَیْکَ، عَظَّمْتُ ا[illegible]ءَ تَعْظِیْمًا".
٣. دریم شرط یې دا دئ: چي د ده او د فعل زمانه به یوه وي احترازي مثال لکه: "سَافَرْتُ لِلْعِلْمِ".

---

[1] د مفعول له په بحث کي ابن هشام لیکلي دي چي حروف اووه (٧) دي: "بَا، لَامْ، عَنْ، فِيْ، حَتّٰی، کَيْ، کَافْ" لېکن "حَتّٰی وَ کَيْ وَ کَافْ" پر مفعول له باندي نسي داخلېدای او مفعول له پر خپل عامل باندي مقدم کېدای سي. (شرح الهمع).

۴. څلورم شرط يې دا دئ: د دواړو فاعل به يو وي احترازي مثال لکه: "جِئْتُكَ لِتَعْظِيْمِكَ الْعِلْمَ".

۵. پنځم شرط يې دا دئ: مصدر به قلبي به وي احترازي مثال لکه: "جِئْتُ لِلْقِرَاءَةِ".

اتفاقي مثال "ضَرَبْتُهُ تَأْدِيْبًا، وَلَا تَقْتُلُوْا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ".

مفعول به الخ: .......................... الی قوله حال.

## ترجمه:

او مفعول به هغه اسم دئ چي فعل د فاعل پر ده واقع سوی وي لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا".
پوه سه! چي دا منصوبات د جمله در تماميدلو وروسته راځي ځکه جمله په فعل و فاعل سره پوره کيږي نو د دې وجي ويل کيږي چي "اَلْمَنْصُوْبُ فُضْلَةٌ".

## دوهمه خبره:

د مفعول به تعريف:
مفعول به هغه اسم دئ چي پر ده باندي فعل د فاعل (۱) واقع سوی وي لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا".

## فائده:

کله کله د مفعول به فعل حذف کيږي جوازًا او کله وجوبًا حذف کيږي.
حذف جوازي:
جذف جوازي هلته وي چي چيري قرينه موجوده وي قرينه پر دوه قسمه ده:

۱. حاليه.
۲. مقاليه.

قرينه حاليه:

(۱) د هسبشه ذپاره دا خبره ياد ساتل ضروري دي: چي د فعل د وقوع څخه مراد د فعل د فاعل سره د تعلق وروسته د فعل د يو اسم سره يو داسي خاص تعلق وي چي د فعل وجود د معنی په اعتبار سره د هغه اسم محتاجه وي لکه: څنګه چي و فاعل ته محتاجه وي. (تنوير)

قرينه حاليه هغه قرينه ده چي د يو چا د حالت څخه معلوميږي لکه: "مَكَّةَ يَا شَيْخُ اَیْ اَتُرِيْدُ مَكَّةَ".

قرينه مقاليه:

قرينه مقاليه هغه قرينه ده چي قول يعني سوال د سائل پر هغه دلالت کوي لکه: د "مَنْ ضَرَبْتَ" په جواب کي "زَيْدًا" ويل "اَیْ ضَرَبْتُ زَيْدًا".

## دريمه خبره:

حذف وجوبي:

په شپږو (٦) ځايو کي فعل وجوبًا حذف کيږي:

١. اول ځای: په تحذير کي لکه: "اِيَّاکَ وَالْاَسَدَ اَیْ اِتَّقِ نَفْسَکَ مِنَ الْاَسَدِ وَالْاَسَدَ مِنْ نَفْسِکَ".

٢. دوهم ځای: په منادی (١) کي لکه "يَازَيْدُ اَیْ اَدْعُوْزَيْدًا".

٣. دريم ځای: په اغراء کي يعني مخاطب ته د يو ښه کار تنبيه کول چي مخاطب هغه کار لازم ونيسي لکه: "اَخَاکَ اَخَاکَ اَیْ اَلْزِمْ اَخَاکَ".

۴. څلورم ځای: په منصوب (٢) على سبيل التخصيص کي يعني د "اَخُصُّ" فعل محذوف دپاره مفعول به وي.

او دا بيا پر څلور قسمه راځي:

١. اول قسم: کله چي د ضمير متکلم څخه وروسته يو اسم معرف باللام راسي لکه: "نَحْنُ الْعَرَبَ اَکْرَمُنَا النَّاسَ اَیْ نَحْنُ اَخُصُّ الْعَرَبَ".

٢. دوهم قسم: کله چي د ضمير متکلم څخه وروسته يو اسم مضاف و معرف باللام ته وي لکه: "نَحْنُ مَعَاشَرَ الْاَنْبِيَاءِ اَیْ نَحْنُ اَخُصُّ مَعَاشَرَ الْاَنْبِيَاءِ".

٣. دريم قسم: کله چي د ضمير متکلم څخه وروسته "اَیُّ" راسي لکه: "نَحْنُ اَفْعَلُ كَذَا اَيُّهَا الرَّجُلُ اَیْ نَحْنُ اَفْعَلُ كَذَا اَخُصُّ الرَّجُلَ".

---

(١) منادی هم مفعول به ده خواه که لفظًا منصوب به وي لکه: "يَا عَبْدَاللهِ" او که محلًا منصوب به وي لکه: "يَازَيْدُ".

(٢) منصوب على سبيل التخصيص: "نَصْبُ الْاِسْمِ بِفِعْلٍ مَحْذُوْفٍ تَقْدِيْرُهُ اَخُصُّ اَوْ اَعْنِيْ". (شرح جامي)

۴. څلورم قسم: کله د ضمیر مخاطب څخه وروسته یو اسم معرف باللام راسي لکه: "لكَ اللهَ نَرْجُوْ الفَضْلَ اَیْ اَخُصُّ اللهَ نَرْجُوْ الفَضْلَ".

۵. پنځم ځای: په "مَا اُضْمِرَ (۱) عَامِلُهٗ عَلٰی شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ" کي د مفعول به فعل وجوبًا حذف کیږي لکه: "زَيْدًا ضَرَبْتُهٗ اَیْ ضَرَبْتُ زَيْدًا ضَرَبْتُهٗ".

۶. شپږم ځای: په منصوب (۲) "عَلٰی سَبِيْلِ الْمَدْحِ وَالذَّمِّ وَالتَّرَحُّمِ" کي حذف کیږي لکه: "بِسْمِ اللهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ، اَیْ اَمْدَحُ الرَّحْمٰنَ الرَّحِيْمَ، اَعُوْذُ بِاللهِ مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ: اَیْ اَذُمُّ الشَّيْطٰنَ الرَّجِيْمَ. مَرَرْتُ بِزَيْدِنِ الْمِسْكِيْنُ اَیْ اَرْحَمُ زَيْدَنِ الْمِسْكِيْنَ".

## څلورمه خبره:

د مفعول به تقدیم پر فعل او فاعل باندي وجوبًا:

مفعول به په اتو (۸) ځایو کي پر فعل او فاعل دواړو باندي وجوبًا مقدم کیږي:

۱. مفعول به چي کله متضمن وي معنٰی د شرط لره لکه: "مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ".

۲. مفعول به چي کله مضاف وي و شرط ته لکه: "غُلَامَ مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ".

۳. چي کله متضمن وي معنٰی د استفهام لره لکه: "مَنْ رَاَيْتَ".

۴. چي کله د استفهام و طرف ته مضاف وي لکه: "غُلَامَ مَنْ رَاَيْتَ".

۵. کله چي د مفعول به ناصب جواب د "اَمَّا" وي لکه: "فَاَمَّا الْيَتِيْمَ فَلَا تَقْهَرْ".

---

(۱) "مَا اُضْمِرَ عَامِلُهٗ عَلٰی شَرِيْطَةِ التَّفْسِيْرِ" "وَهُوَ اِسْمٌ بَعْدَهٗ فِعْلٌ اَوْ شِبْهُهٗ مُشْتَغِلٌ عنه بِضَمِيْرِهٖ اَوْ مُتَعَلِّقِهٖ لَوْ سُلِّطَ عَلَيْهِ هُوَ اَوْ مُنَاسِبُهٗ لَنَصَبَهٗ" هغه اسم چي د ده څخه وروسته فعل یا شبه فعل راغلی وي او دا فعل یا شبه فعل د دغه اسم په ضمیر یا متعلق سره مشغوله وي که چیري دغه فعل یا د ده مناسب پر دغه اسم باندي مسلط سي نو ودا اسم ته نصب ور کوي لکه: "اِنَّا كُلَّ شَيْءٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ اَیْ خَلَقْنَا كُلَّ شَيْئٍ خَلَقْنَاهُ بِقَدَرٍ، وَاِنْ اَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ، اَیْ وَاِنِ اسْتَجَارَكَ اَحَدٌ مِّنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ" دغه وروسته فعل یې تفسیر کوي. (کافیة)

(۲) منصوب علی سبیل المدح و الذم و الترحم هغه ته ویل کیږي چي یو اسم مجرور د جر څخه نقل کول مرفوع یا منصوب ویل که چیري مرفوع وویل سي نو بیا به مبتداء محذوفه وروسته راوزي او که چیري منصوب وویل سي نو بیا د مدح په صورت کي "اَمْدَحُ" او د ذم په صورت کي "اَذُمُّ" او د ترحم په صورت کي "اَرْحَمُ" ورسره را وزي.

۶. کله چي د مفعول به ناصب فعل امر مقرون بالفاء وي لکه: "زَيْدًا فَاضْرِبْ".
۷. کله چي مفعول به د "كَمْ" یا "كَأَيِّنْ" خبریه معمول وي لکه: "كَمْ غُلَامٍ مَلَكْتُ، كَأَيِّنْ مِنْ عِلْمٍ حَوَيْتُ".
۸. یا و "كَمْ" خبریه ته مضاف وي لکه: "ذَنْبَ كَمْ مُذْنِبٍ غَفَرْتُ".

## پنځمه خبره:

د مفعول به مؤخره کول وجوبًا:

تقریبًا په نهٔ (۹) ځایو کي مفعول به تر فعل مؤخره کیږي وجوبًا:

۱. کله چي مفعول به مُصَدَّرَهْ په "أَنَّ" مشدده یا مخففه سره واقع سي لکه: "وَاعْلَمْ أَنَّ اللهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ".
۲. کله چي مفعول به د فعل تعجب سره راسي لکه: "مَا أَحْسَنَ زَيْدًا".
۳. کله چي د مفعول به فعل صله وي د حرف لکه: "مِنَ الْبِرِّ أَنْ تَكُفَّ لِسَانَكَ".
۴. کله چي د مفعول به فعل موصول وي په حرف جازم سره لکه: "لَمْ أَضْرِبْ زَيْدًا" لیکن په دې صورت کي د مفعول به مقدم کول هم صحیح دئ لکه: "زَيْدًا لَمْ أَضْرِبْ".
۵. کله چي د مفعول به پر فعل باندي لام ابتداء داخل سوی وي لکه: "لِيَضْرِبْ زَيْدٌ عَمْرًا".
۶. کله چي لام قسم پر داخل سوی وي لکه: "وَاللهِ لَأَضْرِبَنَّ زَيْدًا".
۷. کله چي "قَدْ" پر داخل سوی وي لکه: "قَدْ ضَرَبْتُ زَيْدًا".
۸. کله چي "سَوْفَ" پر داخل سوی وي لکه: "سَوْفَ أَضْرِبُ زَيْدًا".
۹. کله چي فعل مؤکد بانون وي لکه: "لِيَضْرِبَنَّ زَيْدًا".

## شپږمه خبره:

په شپږو (۶) ځایو کي د مفعول به حذف کول ناجائز دي:

۱. د نائب فاعل په صورت کي د ده حذف کول جائز نه دي لکه: "ضُرِبَ زَيْدٌ".

۲. کله چي مفعول به مُتَعَجَّبْ مِنْهُ وي لکه: "مَا أَحْسَنَ زَيْدًا".

۳. کله چي مفعول به په جواب کي واقع سي لکه: د "مَنْ رَأَيْتَ" په جواب کي "زَيْدًا" ويل.

۴. کله چي مفعول به په حصر کي واقع سي لکه: "مَا ضَرَبْتُ إِلَّا زَيْدًا".

۵. کله چي د ده عامل محذوف وي لکه: "خَيْرًا لَّنَا وَ شَرًّا لِّعَدُوِّنَا".

٦. کله چي دی ضمير عائد د مفعول وي لکه: "زَيْدًا ضَرَبْتُهُ".

## جملي:

| عنوان | خبریہ انشاء مع الاقسام | مسند | مسند الیہ | تعیین اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت بالحرف | لفظی تقدیری | تمیی غیر تمیی | تعیین اعراب مضارع | تعیین مفعولات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَلْيَعْبُدُوا رَبَّ هٰذَا الْبَيْتِ | انشائیہ فعلیہ | فَلْيَعْبُدُوا | هُمْ | ۲.(هٰذَا، هُمْ) | ۳.معرب | ۴. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمیی | (يَعْبُدُوا) حالت جزمی (۳) قسم | مفعول بہ |
| فَأَيْنَ تَذْهَبُونَ | انشائیہ فعلیہ | تَذْهَبُونَ | أَنْتُمْ | ۱.(أَنْتُمْ) | ۱.معرب | ۳. مبنی | + | + | + | (تَذْهَبُونَ) حالت رفعی (۳) قسم | مفعول فیہ |
| إِخْتَلَفَ التَّاجِرُ وَوَكِيلَهُ | خبریہ فعلیہ | إِخْتَلَفَ | التَّاجِرُ | ۱.(هُ) | ۲.معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمیی | + | مفعول معہ |
| فَرَرْتُ مِنَ الْأَسَدِ خَوْفًا | خبریہ فعلیہ | فَرَرَ | تُ | ۱.(تُ) | ۲.معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمیی | + | مفعول لہ |
| وَعَرَضْنَا جَهَنَّمَ يَوْمَئِذٍ لِلْكَافِرِينَ عَرْضًا | خبریہ فعلیہ | عَرَضَ | نَا | ۱.(نَا) | ۳.معرب | ٦. مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی (۱-۵-۱۰) قسم | تمیی، غیر تمیی | + | ۲.مفعول فیہ مفعول مطلق |
| نَحْنُ أَحَدَنَا مَكَانَهُ | انشائیہ فعلیہ | خُذْ | أَنْتَ | ۳.(أَنْتَ، نَا، هُ) | ۲.معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تمیی | + | ۲.مفعول بہ مفعول فیہ |
| وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ | انشائیہ فعلیہ | وَلَا تَقْتُلُوا | أَنْتُمْ | ۲.(أَنْتُمْ، كُمْ) | ۳.معرب | ۴. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱-۳) قسم | غیر تمیی | (وَلَا تَقْتُلُوا) حالت جزمی (۳) | مفعول بہ، مفعول لہ |
| يَوْمَ يَنْظُرُ الْمَرْءُ مَا قَدَّمَتْ يَدَاهُ | خبریہ فعلیہ | يَنْظُرُ | الْمَرْءُ | ۴.(مَا، هِيَ، هُ، يَوْمَ) | ۳.معرب | ۴. مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی (۱-۷) | تمیی، غیر تمیی | (يَنْظُرُ) حالت رفعی (۱) قسم | مفعول فیہ، مفعول بہ |
| يَجْعَلُونَ أَصَابِعَهُمْ فِي آذَانِهِمْ مِنَ الصَّوَاعِقِ حَذَرَ الْمَوْتِ | خبریہ فعلیہ | يَجْعَلُونَ | هُمْ | ۴.(هُمْ، هُمْ، هُمْ) | ٦.معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱-۳) قسم | غیر تمیی | (يَجْعَلُونَ) حالت رفعی (۳) قسم | مفعول بہ مفعول لہ |
| بَاعَ أَحْمَدُ عَقَارَهُ وَمَنْزِلَهُ | خبریہ فعلیہ | بَاعَ | أَحْمَدُ | ۲.(هُ، هُ) | ۳.معرب | ۴. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱-۵) قسم | تمیی، غیر تمیی | + | مفعول بہ مفعول معہ |

| عنوان | خبر، انشاء مع الاقسام | مسند | مسند اليه | تعيين اسم غير حسن | معرب | مبني | بالحركت بالحرف | لفظي تقديري | تبعي غير تبعي | تعيين اعراب مضارع | تعيين مفعولات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| يُنْفِقُوْنَ أَمْوَالَهُمُ ابْتِغَاءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ | خبريه فعليه | يُنْفِقُوْنَ | هُمْ | ۲.(هُمْ، هُمْ) | ۵.معرب | ۲.مبني | بالحركت | لفظي(۱.۳.۳) | تبعي، غير تبعي | (يُنْفِقُوْنَ) حالت رفعي (۳) قسم | مفعول به مفعول له |
| وَأَمَّا مَنْ أُوْتِيَ كِتَابَهُ وَرَاءَ ظَهْرِهٖ | خبريه اسميه | أُوْتِيَ | مَنْ | ۳.(هُ، و، هُوَ) | ۳.معرب | ۷.مبني | بالحركت | لفظي (۱) قسم | غير تبعي | (أَمَّا) حرف شرط للتفصيل | مفعول به مفعول فيه |

## التمرين:

"وَجِيءَ يَوْمَئِذٍ بِجَهَنَّمَ،، وَإِمَّا تُعْرِضَنَّ عَنْهُمُ ابْتِغَاءَ رَحْمَةٍ مِنْ رَبِّكَ،، وَمَا أَرْسَلْنَاكَ إِلَّا رَحْمَةً لِلْعَالَمِينَ،، إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا،، يَوْمَئِذٍ تُحَدِّثُ أَخْبَارَهَا،، وَأَرْسَلَ عَلَيْهِمْ طَيْرًا أَبَابِيلَ،، إِذَا زُلْزِلَتِ الْأَرْضُ زِلْزَالَهَا،، زُرْتُمُ الْمَقَابِرَ،، يَا جِبَالُ أَوِّبِي مَعَهُ وَالطَّيْرَ،، يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّورِ".

*قوله حال الخ..................................الی قوله تميز.*

## ترجمه:

حال هغه اسم دئ چي نكره وي د فاعل پر هيئت باندي دلالت كوي لكه: "رَاكِبًا" په "جَاءَ زَيْدٌ رَاكِبًا" كي يا د مفعول پر هيئت دلالت كوي لكه: "مَشْدُوْدًا" په "ضَرَبْتُ زَيْدًا مَشْدُوْدًا" كي يا د دواړو پر هيئت دلالت كوي لكه: "رَاكِبَيْن" په "لَقِيْتُ زَيْدًا رَاكِبَيْنِ" كي او فاعل و مفعول ته ذوالحال وايي: او ذوالحال اكثره معرفه وي لېكن كه اتفاقا كله نكره راسي نو بيا حال مقدم كيږي لكه: "جَاءَنِيْ رَاكِبًا رَجُلٌ" او حال اكثره جمله وي لكه: "رَاَيْتُ الْاَمِيْرَ وَهُوَ رَاكِبٌ".

## الدرس السادس والعشرون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د حال تعريف:

حال هغه وصف فضله دي چي يا خو حالت وهيئت د فاعل بيانوي لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا" يا د مفعول لکه: "ضَرَبْتُ زَيْدًا مَشْدُوْدًا" يا د دواړو لکه: "لَقِيْتُ زَيْدًا رَاكِبَيْنِ" او فاعل او مفعول ته ذوالحال ويل کيږي.

حال يا د فاعل څخه راځي او يا د مفعول څخه خواه که حقيقتًا فاعل و مفعول وي او که حکمًا فاعل و مفعول وي په پنځو شکلو سره راځي:

١. اول شکل: کله فاعل حکمي په شکل د مبتداء کي راځي لکه: "زَيْدٌ رَاكِبًا حَسَنٌ".

٢. دوهم شکل: کله فاعل و مفعول دواړه په شکل د مفعول (١) معه کي راځي لکه: "جِئْتُکَ وَ زَيْدًا رَاكِبًا. کَفَاکَ وَزَيْدًا رَاكِبًا".

٣. دريم شکل: کله مفعول به په شکل د مجرور بالحرف کي راسي لکه: "مَرَرْتُ بِهِنْدٍ جَالِسَةً (٢)".

۴. څلورم شکل: کله په شکل د مجرور بالاضافت (٣) کي راسي لکه: "أَيُحِبُّ أَحَدُكُمْ أَنْ يَأْكُلَ لَحْمَ أَخِيهِ مَيْتًا فَكَرِهْتُمُوهُ".

۵. پنځم شکل: کله مفعول به په شکل د مفعول مطلق (۴) وي لکه: "تَعِبْتُ التَّعْبَ شَدِيْدًا".

---

(١) که چيري د مفعول معه ما قبل فاعل وو نو بيا دی د فاعل سره په صدور کي شريک دئ او دی فاعل حکمي دئ لکه: "جِئْتُکَ وَزَيْدًا رَاكِبًا" او که چيري د ده ماقبل مفعول وو نو بيا دی د مفعول سره په وقوع کي شريک دئ نو بيا دی مفعول حکمي دئ لکه: "كَفَاکَ وَزَيْدًا رَاكِبًا".

(٢) دلته "جَالِسَةً" حال دئ لېکن دی د مفعول به حکمي څخه حال دئ.

(٣) په دې شرط چي مضاف به جزء وي د مضاف اليه څخه او په دې صورت کي د حال د واقع کېدلو دپاره دوه شرطونه دي:

١. اول شرط يې دا دئ: چي مضاف به فاعل وي يا به مفعول وي.

٢. دوهم شرط يې دا دئ: چي د مضاف اليه درول پر ځای د مضاف باندي به صحيح وي لکه: "فَاتَّبِعُوا مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا".

(۴) مفعول مطلق هم مفعول به حکمي دئ ځکه د ده معنی راځي "أَحْدَثْتَ ضَرْبًا شَدِيْدًا" نو ځکه دی حکما مفعول به دئ. (شرح جامي)

**دوهمه خبره:**

اصل په ذوالحال کي دا دئ چي دی به معرفه وي لېکن که چيري ذوالحال نکره واقع سو بيا د ده دپاره شرط دا دئ چي نکره مخصصه به وي او د هغه دپاره اووه (۷) ځايونه دي:

۱. اول ځای: کله په ذوالحال نکره کي تخصيص په تقديم د حال سره راغلی وي لکه: "فِي الدَّارِ جَالِسًا رَجُلٌ".

۲. دوهم ځای: او کله يې تخصيص په صفت سره راغلی وي لکه: "وَلَمَّا جَاءَهُمْ رَسُولٌ مِنْ عِنْدِ اللَّهِ مُصَدِّقٌ لِمَا مَعَهُمْ نَبَذَ الخ".

۳. دريم ځای: کله تخصيص په اضافت سره راغلی وي لکه: "فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَاءً لِلسَّائِلِينَ".

۴. څلورم ځای: کله تخصيص په حرف نفي سره راغلی وي لکه: "وَمَا أَهْلَكْنَا مِنْ قَرْيَةٍ إِلَّا وَلَهَا كِتَابٌ مَعْلُومٌ".

۵. پنځم ځای: کله په حرف استفهام سره راغلی وي لکه: "هَلْ أَتَاكَ رَجُلٌ رَاكِبًا".

شپږم ځای: کله چي ذوالحال نکره مستغرقه راسي يعني پر ټولو افرادو باندي محيط وي يعني احاطه يې کړې وي لکه: "فِيهَا يُفْرَقُ كُلُّ (۱) أَمْرٍ حَكِيمٍ ، أَمْرًا مِنْ عِنْدِنَا".

٦. اووم ځای: کله حال داسي جمله وي چي مقرون بالواو وي نو هلته هم ذوالحال نکره واقع کېدای سي لکه: "أَوْ كَالَّذِي مَرَّ عَلَى قَرْيَةٍ (۲) وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا".

**دريمه خبره:**

حال خو مشتق راځي لېکن که چيري جامد وو بيا دی په تاويل د مشتق سره اوړي چي د هغه درې (۳) صورتونه جوړېږي:

---

(۱) دلته لفظ د "كُلُّ" ذوالحال واقع سوی دئ. (تشوير)

(۲) دلته "قَرْيَةٌ" نکره دئ ذوالحال دئ او "وَهِيَ خَاوِيَةٌ" جمله حال دئ.

۱. اول صورت: کله حال جامد وي او پر تشبيه باندي دلالت کوي لکه: "مَرَرْتُ بِالْجَارِيَةِ قَمَرًا اَىْ مُضِيْئَةً".

۲. دوهم صورت: کله پر مفاعله باندي دلالت کوي لکه: "بِعْتُهُ يَدًا بِيَدٍ اَىْ مُتَقَابِضَيْنِ".

۳. دريم صورت: کله پر ترتيب باندي دلالت کوي لکه: "اُدْخُلُوْا رَجُلًا رَجُلًا اَىْ مُتَرَتِّبِيْنَ".

حال کله جمله واقع کيږي: لېکن د ده دپاره درې شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: حال به جمله خبريه وي ځکه حال جمله انشائيه نسي واقع کېداى احترازي مثال لکه: "وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوا بِهٖ شَيْئًا" دلته واو عاطفه دئ حاليه نه دئ.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: د فعل په شروع کي به "سِيْنْ" او "سَوْفَ" نه وي احترازي مثال لکه: "اِنِّيْ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ".

۳. دريم شرط يې دا دئ: د حال (۱) د ذوالحال سره ربط ضروري دئ خواه که په ضمير سره وي او که په واو سره وي او که په دواړو سره وي اتفاقي مثال لکه: "خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ اُلُوْفٌ".

**فائده:**

د حال اقسام:

حال پر څوارلس (۱۴) قسمه راځي:

۱. حال حقيقيه: چي حال د خپل ذوالحال حالت بيان کړي لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا".

۲. حال سببيه: چي حال د ذوالحال د متعلق حالت بيان کړي لکه: "مَرَرْتُ بِالدَّارِ قَائِمًا سُكَّانُهَا" (۲).

---

(۱) ځکه په دې صورت کي جمله مستقله وي لېکن حال د ذوالحال سره ربط غواړي ربط کله په "واو" سره وي لکه: "لَئِنْ اَكَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ". او کله صرف په ضمير سره وي لکه: "وَجَاءُوا اَبَاهُمْ عِشَاءً يَبْكُوْنَ". او کله په ضمير او "واو" دواړو سره وي لکه: "خَرَجُوا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ اُلُوْفٌ".

(۲) "قَائِمًا" حال دئ د "دَارْ" څخه او "دَارْ" مفعول به غير صريحي دئ.

۳. حال مقارنه: چي د ده او د ذوالحال د عامل زمانه سره مقارنه وي لکه: "أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ (۱) مُسَخَّرَاتٍ فِي جَوِّ السَّمَاءِ".

۴. حال مقدره: چي د حال او د عامل د ذوالحال زمانه سره مقارنه نه وي لکه: "أُدْخُلُوْهَا (۲) خَالِدِيْنَ".

۵. حال مشتقه: چي مشتق وي لکه: "جَاءَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا. إِنَّا أَنْزَلْنَاهُ قُرْآنًا عَرَبِيًّا".

٦. حال جامده: چي جامد وي لکه: "فَتَمَثَّلَ لَهَا بَشَرًا سَوِيًّا".

۷. حال لزوميه: چي د ذوالحال څخه هيڅ کله نسي جلا کېداى لکه: "رَضِيْتُ بِاللّٰهِ رَبًّا" (۳).

۸. حال منتقله: چي د ذوالحال څخه جلاکېداى سي لکه: "جَاءَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا".

## څلورمه خبره:

۹. **حال مبينه: چي د ماقبل د مضمون وضاحت کوي لکه: "جَاءَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا".**

۱۰. **حال مؤکده: چي د ماقبل تاکيد کوي.**

**او دى په څلورو شکلو باندي راځي:**

۱. **اول شکل: کله خو دَى د ذوالحال تاکيد کوي لکه: "لَآمَنَ مَنْ فِي الْأَرْضِ كُلُّهُمْ جَمِيْعًا".**

۲. **دوهم شکل: کله د عامل تاکيد کوي لکه: "وَلَّى مُدْبِرًا".**

۳. **دريم شکل: کله د مضمون د جمله تاکيد کوي لکه: "زَيْدٌ أَبُوْكَ (۴) عَطُوْفًا".**

۴. **څلورم شکل: کله د ذوالحال د معنٰى تاکيد کوي لکه: "أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَاتٍ فِي جَوِّ السَّمَاءِ".**

---

(۱) "مُسَخَّرَاتٍ" حال دئ د "اَلطَّيْرِ" څخه د "اَلطَّيْرِ" او د ده د تابع کېدلو زمانه يوه ده.

(۲) "خَالِدِيْنَ" حال دئ د "أُدْخُلُوْا" د واو ضميري څخه او د دوى دواړو زمانه مختلفه ده ځکه دُخُوْل مقدم دئ په اعتبار د زمان سره پر خُلُوْد باندي.

(۳) "رَبًّا" حال دئ د لفظ "اَللّٰه" څخه او د لفظ "اَللّٰه" څخه هيڅ کله نسي جدا کېداى. (تنوير)

(۴) ددې علامه دا ده که چيري حال حذف سي بيا هم د ذوالحال معنى صحيح کيږي.

۱۱. حال مقصوده: چي مقصود بالذات حال وي لکه: "أَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ مُسَخَّرَاتٍ (۱) فِي جَوِّ السَّمَاءِ".

۱۲. حال موطئه: هغه حال جامده چي په اعتبار د خپل صفت سره حال وي لکه: "فَتَمَثَّلَ لَهَا (۲) بَشَرًا سَوِيًّا".

۱۳. حال مترادفه: چي د یوه ذوالحال څخه متعدد حالونه واقع کېدای سي لکه: "سِرْ رَاشِدًا مَهْدِيًّا".

۱۴. حال متداخله: چي اول حال د ذوالحال څخه واقع سوی وي او دوهم حال د ذوالحال څخه نه وي واقع سوی بلکه د اول حال د ضمیر څخه حال واقع سوی وي لکه: "جَاءَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا فَاضِلًا".

**عامل د حال:**

عامل د حال کله فعل وي کله شبه فعل وي او کله معنیٰ د فعل وي او د معنیٰ د فعل څخه مراد لس (۱۰) شیان دي:

۱. اسم الفعل لکه: "صَهْ سَاكِتًا، وَنَزَالِ مُسْرِعًا".

۲. اسم الاشاره لکه: "هٰذَا بَعْلِي شَيْخًا".

۳. ادوات تشبیه لکه: "كَأَنَّ سَعِيْدًا، مُقْبِلًا، اَسَدٌ".

۴. ادوات تمني لکه: "لَيْتَ السُّرُوْرَ، دَائِمًا، عِنْدَنَا".

۵. ادوات ترجي لکه: "لَعَلَّكَ، مُدَّعِيًا، عَلَى حَقٍّ".

٦. ادوات استفهام لکه: "مَاشَأْنُكَ وَاقِفًا. فَمَا لَهُمْ عَنِ التَّذْكِرَةِ مُعْرِضِيْنَ".

۷. حرف التنبیه لکه: "هَا هُوَ ذَا الْبَدْرُ طَالِعًا".

۸. جار و مجرور لکه: "اَلْفَرَسُ لَكَ وَحْدَكَ".

---

(۱) "مُسَخَّرَاتٍ" په خپله مشتق دئ او حال دئ بغیر د یو تابع او دَی مقصود بالذات دئ.

(۲) که څه هم "بَشَرًا" جامد دئ او حال مشتق وي لېکن دلته په اعتبار د صفت مشتقه سره چي "سَوِيًّا" دئ دی حال واقع سوی دئ. (تنویر)

۹. ظرف لکه: "لَدَيْنَا الْحَقُّ خَفَّاقًا لِوَاءُهُ".

۱۰. حرف نداء لکه: "يَا أَيُّهَا الرَّبْعُ مُبْكِيًا بِسَاحَتِهِ".

قوله تميز الخ.......................الی قوله بدانکه فاعل بر دو قسم است.

## ترجمه:

تمیز هغه اسم دئ چي د عدد څخه رفع د ابهام کوي لکه: "عِنْدِيْ أَحَدَ عَشَرَ دِرْهَمًا" يا د وزن څخه لکه: "عِنْدِيْ رِطْلٌ زَيْتًا" يا د پيمانه څخه لکه: "عِنْدِيْ قَفِيْزَانِ بُرًّا" يا د پيمايش (يعني اندازه کول) څخه لکه: "مَا فِي السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ سَحَابًا".

## پنځمه خبره:

**د تميز تعريف (۱):**

**تمیز هغه اسم نکره دئ چي د مبهم ذات يا نسبة څخه ابهام ليري کوي لکه: "أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا، طَابَ زَيْدٌ نَفْسًا".**

**د تميز اقسام:**

تميز پر دوه قسمه دئ:

۱. تميز د ذات څخه وي.
۲. تميز د نسبت څخه وي.

**د تميز الذات تعريف:**

تميز د ذات هغه دئ چي دی مُفَسِّرْ او مُبَيِّنْ د يو اسم مبهم ملفوظ دپاره وي او په ده کي ذات همېشه مذکور وي لکه: "عِنْدِيْ شِبْرٌ أَرْضًا".

(۱) د تميز تعريف "اَلتَّمِيْزُ اِسْمٌ نَكِرَةٌ بِمَعْنٰى مِنْ يُذْكَرُ تَفْسِيْرًا لِلْمُبْهَمِ مِنْ ذَاتٍ أَوْ نِسْبَةٍ وَ هُوَ عَلٰى قِسْمَيْنِ: تَمِيْزُ الذَّاتِ يُسَمّٰى تَمِيْزُ مُفْرَدٍ وَ هُوَ مَا كَانَ مُفَسِّرًا وَ مُبَيِّنًا لِاِسْمٍ مُبْهَمٍ مَلْفُوْظٍ": او په تميز د ذات کي همېشه ذات مذکور وي نو ځکه دا تعبير اختيار سوی دئ چي تميز پر دوه قسمه دئ يو هغه دئ چي د ذات مذکوره څخه ابهام ليري کوي او بل هغه چي د ذات مقدره څخه رفع د ابهام کوي يعني د نسبت څخه رفع د ابهام کوي. (جامع الدروس العربية جلد ۲ صفحه ۸۴)

د اسم مبهم اقسام: د کم شي څخه چي رفع د ابهام کيږي هغه پر پنځه قسمه راځي: (۱) عدد. (۲) مقدار. (۳) شبه مقدار. (۴) قائمقام مقادير. (۵) فرع التميز.

اول عدد دئ: چي اسم مبهم په شکل د عدد کي وي خواه که عدد صريحي ([1]) وي لکه: "أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا" او که عدد غير ([2]) صريحي وي لکه: "كَمْ كِتَابًا عِنْدَكَ، عِنْدِيْ كَذَا كِتَابًا" او تميز د ده څخه رفع د ابهام کوي.

دوهم مقدار ([3]) دئ: چي اسم مبهم په شکل د مقدار کي وي او تميز د ده څخه رفع د ابهام کوي او په مقدار کي څلور صورتونه دي:

۱. اول صورت: مقدار کله په صورت د "مساحت" يعني پېمايش کي وي لکه: "عِنْدِيْ شِبْرٌ أَرْضًا".

۲. دوهم صورت: کله په صورت د "وزن" کي وي لکه: "عِنْدِيْ مَنَوَانِ سِمْنًا".

۳. کله په صورت د "کيل" يعني ([4]) پېمانه کي وي لکه: "عِنْدِيْ قَفِيْزَانِ بُرًّا".

۴. کله په صورت د "مقياس" ([5]) کي وي لکه: "عِنْدِيْ ذِرَاعٌ ثَوْبًا".

دريم قسم شبه مقدار دئ چي اسم مبهم په شکل د شبه مقدار کي وي او په شبه مقدار کي هم څلور صورتونه دي:

۱. اول صورت: شبه مساحت لکه: "مَا فِي السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ سَحَابًا".

۲. دوهم صورت: شبه وزن لکه: "فَمَنْ يَعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَرَهُ".

۳. دريم صورت: شبه کيل لکه: "عِنْدِيْ رَاقُوْدٌ خَلًّا".

---

([1]) "اَلْعَدَدُ عَلَى قِسْمَيْنِ صَرِيْحٌ وَ مُبْهَمٌ وَالْعَدَدُ الصَّرِيْحُ مَا كَانَ مَعْرُوْفَ الْكَمِّيَّةِ كَالْوَاحِدِ وَ أَحَدَ عَشَرَ وَ غَيْرِ ذٰلِكَ".

([2]) "اَلْعَدَدُ الْمُبْهَمُ الْغَيْرُ الصَّرِيْحُ وَهُوَ يَكُوْنُ كِنَايَةً عَنْ عَدَدٍ مَجْهُوْلِ الْكَمِّيَّةِ وَهُوَ كَمْ. وَكَذَا وَ كَأَيِّنْ". (جامع الدروس العربية جلد ۲ صفحه ۸۴)

([3]) "مقدار" د اسم آله صيغه ده بمعنی "مَا يُقَدَّرُ بِهِ الشَّيْئُ" چي په ده سره يو شی اندازه کيږي.

([4]) کيل يعني پېمانه په عربو کي د يو قسم لرګي څخه دغه پېمانه (پياله) جوړېده چي په دې سره يې غنم، ورجي، وربشي و غيره پېمانه کولې او خرڅولې به يې.

([5]) مقياس هغه آله چي په هغه سره د يوشي قياس و انداز، معلوميږي لکه: ګز، ميټر، و غيره.

۴. څلورم صورت: شبه مقياس لکه: "عِنْدِيْ مُدٌّ بِيَدِكَ حَبْلًا وَ عَلَى التَّمْرَةِ مِثْلُهَا زُبْدًا".

څلورم قسم: قائمقام مقادير دئ: هغه اسم مبهم چي د تميز او تفسير محتاجه وي لکه: "وَلَوْ جِئْنَا بِمِثْلِهِ مَدَدًا".

پنځم قسم: فرع د تميز دئ هغه اسم چي رفع د ابهام د فرع ثخه کوي لکه: "عِنْدِيْ خَاتَمُ فِضَّةٍ (۱) وَ سِوَارُ ذَهَبًا".

د تميز د اول قسم حکم په اعراب کي:

د تميز د اول قسم چي تميز د ذات دئ حکم يې دا دئ: چي دَى به منصوبه وي او کله په "مِنْ" جاره او اضافت سره مجروره کيږي لکه: "عِنْدِيْ رِطْلٌ مِنْ زَيْتٍ، عِنْدِيْ شِبْرُ أَرْضٍ، مَافِيْ السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ مِنْ سَحَابٍ" لېکن د عدد د تميز حکم وروسته راځي.

## شپږمه خبره:

د تميز دوهم قسم تميز النسبة:

د تميز دوهم قسم تميز النسبة (۲) دئ.

د تميز النسبة تعريف:

تميز د نسبت هغه دئ چي دى مبين و مفسر د يو مبهمي جملې دپاره وي يعني په جمله کي چي کم نسبت د فعل و فاعل ته سوى وي هغه نسبت مبهم وي نو دى رفع د ابهام د هغه نسبت ثخه کوي او

---

(۱) په "خَاتَمُ فِضَّةٍ" کي "خَاتَمُ" فرع ده او "حَدِيْد" يا "فِضَّه" چي ذات دئ په دې سره رفع د ابهام سوى ده چي گوتمى د سپينو زرو ده نه د وسپني او نه د سرو زرو.

(۲) تميز عن النسبة کي ذات همېشه مقدر وي مذکور نه وي لکه: "طَابَ زَيْدٌ عِلْمًا" په دې جمله کي ابهام نه په "طَابَ" کي سته او نه په "زَيْدٌ" کي بلکه د "طَابَ" نسبت چي و "زَيْدٌ" ته سوى دئ په دې نسبت کي ابهام دئ چي "طَابَ زَيْدٌ" زيد ښه دئ لېکن په دې نسبت کي چي ښه والى دئ و زيد ته يې نسبت سوى دئ ابهام دئ يعني زيد په کم اعتبار سره ښه دئ په اعتبار د نفس سره، يا په اعتبار د مال سره يا په اعتبار د اولاد سره لېکن "عِلْمًا" تميز دغه ابهام ليري کړي چي زيد په اعتبار د علم سره ښه دئ لېکن دلته هم ذات سته او اصل ابهام د هغه ذات څخه دئ چي لفظ د "شَيْئٌ" دئ يعني "طَابَ زَيْدٌ عِلْمًا" په اصل کي "طَابَ شَيْئٌ مَنْسُوْبٌ إِلَى زَيْدٍ" وو.

په ده کي ذات مقدر وي چي "شَيْئٌ" دئ. لکه، "طَابَ زَيْدٌ نَفْسًا: أَيْ طَابَ شَيْئٌ مَنْسُوْبٌ إِلَى زَيْدٍ" دلته مميز "شَيْئٌ" دئ.

د تميز النسبة اقسام:

تميز النسبة پر دوه قسمه دئ:

١. محول.

٢. غير محول.

اول قسم محول دئ: او محول په درې شکلو سره راځي:

١. اول شکل: کله محول عن الفاعل (١) وي لکه: "وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا" په اصل کي "اِشْتَعَلَ شَيْبُ الرَّأْسِ" وو.

٢. دوهم شکل: کله محول عن المفعول (٢) وي لکه: "وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُوْنًا" په اصل کي "فَجَّرْنَا عُيُوْنَ الْأَرْضِ" وو.

٣. دريم شکل: کله محول عن المبتداء (٣) وي لکه: "أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَوَلَدًا" په اصل کي "مَالِي أَكْثَرُ مِنْ مَالِكَ" وو.

غير محول: غير محول هغه دچي په دې درو قسمو کي د چا څخه محول نه وي لکه: "مَلَأْتُ خَزَائِنِيْ كُتُبًا، مَا أَكْرَمَكَ رَجُلًا، وَلِلّٰهِ دَرُّهُ فَارِسًا".

د تميز محول حکم: تميز محول به همېشه منصوبه وي او په "مِنْ" او اضافت سره دی مجروره ويل جائز نه دي.

---

(١) چي په اصل کي فاعل وو لېکن اوس تميز جوړي سوی وي لکه: "شَيْبًا" په "وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا" کي ځکه دا په اصل کي "اِشْتَعَلَ شَيْبُ الرَّأْسِ" وو.

(٢) چي په اصل کي مفعول وو لېکن اوس تميز ځني جوړ سوی دئ لکه: "عُيُوْنًا" په "وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُوْنًا". کي ځکه دا په اصل کي "فَجَّرْنَا عُيُوْنَ الْأَرْضِ" وو. (جامع الدروس العربية جلد ٣ صفحه ٨٦)

(٣) چي په اصل کي مبتدا وه لېکن اوس تميز ځني جوړ سوی وي لکه: "مَالًا وَوَلَدًا" په "أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَوَلَدًا" کي ځکه دا په اصل کي "مَالِي أَكْثَرُ مِنْ مَالِكَ" وو. (جامع الدروس العربية)

**د تمیز غیر محول حکم: پر تمیز غیر محول باندې نصب ویل هم جائز دئ او په "مِنْ" سره مجروره ویل هم جائز دي لکه: "وَلِلّٰهِ دَرُّهُ مِنْ فَارِسٍ" (۱).**

## اوومه خبره:

د حال او تمیز (۲) په پنځو (۵) شیانو کې اتفاق دئ: (۱) په اسمیت کې. (۲) په نکارت کې. (۳) په منصوب والي کې. (۴) په فضلیت یعني په فضله والي کې. (۵) په رفع د ابهام کې.

د حال او تمیز په اوو (۷) شیانو کې فرق دئ:

۱. تمیز رفع د ابهام د ذات څخه کوي او حال رفع د ابهام د وصف څخه کوي.
۲. حال جار و مجرور او ظرف واقع کېدای سي بخلاف التمیز.
۳. حال اکثره مشتق وي او تمیز جامد وي.
۴. حال د خپل ذوالحال تاکید کوي بخلاف التمیز.
۵. حال متعدد راتلای سي لېکن تمیز همېشه مفرد یعني یو وي.
۶. حال جمله راتلای سي لېکن تمیز مفرد وي.
۷. حال تر خپل ذوالحال مقدم کېدای سي لېکن تمیز نسي مقدم کېدای.

---

(۱) ضروري فائده: تمیز غیر محول په "مِنْ" سره مجروره ویل هم جائز دي که یې چیرې ته ویل و غواړې لېکن استعمال یې په "مِنْ" سره نسته نو ځکه بیا اعتراض په دې سره نه واقع کیږي چې د حال او د تمیز په مینځ کې خو یو فرق دا دئ چې حال جار و مجرور او ظرف واقع کېدای سي لېکن تمیز نسي واقع کېدای نو دلته دا دئ تمیز غیر محول هم په "مِنْ" سره مجروره ویل کیږي نو ځکه دلته د تمیز مجرور والی در جواز در حده پوري دئ چې یو احتمال دئ نه د وقوع در حده پوري. (از مرتب عفي عنه)

(۲) فائده: فرق په مینځ د صفت او تمیز کې دا دئ چې تمیز رفع د ابهام د ذات څخه کوي او صفت رفع د ابهام د وصف څخه کوي مثلاً زید دو کاندار ته ورغلی او ورته یې وویل چې لس کېلو راکړه دلته اوس په ذات کې ابهام دئ چې غوړي غواړې، بوره غواړې او که وره غواړې نو تر څو پوري چې ذات نه وي ذکر سوی تر هغه وخته پوري شی د مخاطب په ذهن کې مبهم وي نو په دې وخت کې د ذات څخه د رفع د ابهام دپاره د تمیز ضرورت دئ نو ځکه په دې صورت کې تمیز ذکر کیږي.

او د صفت په صورت کې خو ذات متعین وي لېکن په وصف کې ابهام وي مثلاً زید و دو کاندار ته وویل چې یو رطل راکړه نو دلته په ذات کې ابهام نسته چې و سپینه ده لېکن په وصف کې ابهام دئ چې د هغه په وجه دو کاندار پوښتنه کوي چې کم رطل دئ په کار دئ پاکستاني، افغاني، او که عراقي نو د دې ابهام د لیرې کولو دپاره د صفت ضرورت دئ نو ځکه په دې صورت کې صفت ذکر کیږي. (تشویر)

فائده: کم تمیز چې رفع د ابهام د نسبت څخه کوي د هغه عامل فعل یا شبه فعل وي. (جامع الدروس العربیة)

# جملے:

| عنوان | خبریہ و انشاء | مسند | مسند الیہ | اسم ضمیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت و بالحرف | لفظی و تقدیری | تمنی و غیر تمنی | اعراب المضارع | تعیین منصوبات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَخَرَجَ مِنْهَا خَائِفًا يَتَرَقَّبُ | خبریہ فعلیہ | فَخَرَجَ | هُوَ | ۴.(هُوَ، هَا، هُوَ، هُوَ) | ۲. معرب | ۷. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حم | غیر تمنی | (يَتَرَقَّبُ) حالت رفعی (۱) حم | ۲. حال، (خَائِفًا يَتَرَقَّبُ) |
| وَجَاءُوا أَبَاهُمْ عِشَاءً يَبْكُونَ | خبریہ فعلیہ | جَاءُوا | هُمْ | ۳.(هُمْ، هُمْ، هُمْ) | ۳. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت و بالحرف | لفظی (۱.۶) حم | غیر تمنی | (يَبْكُونَ) حالت رفعی (۴) حم | ۳. مفعول بہ مفعول فیہ، حال |
| وَوَاعَدْنَا مُوسَى ثَلَاثِينَ لَيْلَةً | خبریہ فعلیہ | وَاعَدَ | نَا | ۱.(نَا) | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت بالحرف | لفظی (۱.۱۲) حم و تقدیری (۱۳) حم | تمنی، غیر تمنی | + | ۲. مفعول بہ تمیز |
| وَسَخَّرَ لَكُمُ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ دَائِبَيْنِ | خبریہ فعلیہ | سَخَّرَ | هُوَ | ۳.(هُوَ، كُمْ، هُمَا) | ۳. معرب | ۷. مبنی | بالحرکت بالحرف | لفظی (۱.۷) حم | تمنی، غیر تمنی | + | مفعول بہ، حال |
| هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِئْيًا | خبریہ اسمیہ | أَحْسَنُ | هُمْ | ۲.(هُمْ، هُوَ) | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱.۵) حم | تمنی، و غیر تمنی | + | تمیز |
| كَانُوا أَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً | خبریہ اسمیہ | أَشَدَّ | هُمْ | ۳.(هُمْ، هُمْ، هُوَ) | ۲. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱.۵) حم | تمنی غیر تمنی | + | تمیز |
| قَالُوا لَئِنْ أَكَلَهُ الذِّئْبُ وَنَحْنُ عُصْبَةٌ | خبریہ فعلیہ | قَالُوا | هُمْ | ۳.(هُمْ، هُ، نَحْنُ) | ۲. معرب | ۸. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱.۳) حم | غیر تمنی | + | ۲. مفعول بہ، حال |
| وَفَجَّرْنَا الْأَرْضَ عُيُونًا | خبریہ فعلیہ | فَجَّرَ | نَا | ۱.(نَا) | ۲. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱.۳) حم | غیر تمنی | + | ۲. مفعول بہ، تمیز |
| فَاللّٰهُ خَيْرٌ حَافِظًا | خبریہ اسمیہ | خَيْرٌ | اَللّٰهُ | ۲.(هُوَ، هُوَ) | ۳. معرب | ۳. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حم | غیر تمنی | + | تمیز |
| اِرْجِعِي إِلَى رَبِّكِ رَاضِيَةً مَرْضِيَّةً | انشائیہ فعلیہ | اِرْجِعِي | أَنْتِ | ۳.(أَنْتِ، كِ، هِيَ، هِيَ) | ۳. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حم | غیر تمنی | + | ۲. حال (رَاضِيَةً مَرْضِيَّةً) |
| فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا | خبریہ فعلیہ | لَبِثَ | هُوَ | ۲.(هُوَ، هِمْ) | ۳. معرب | ۶. مبنی | بالحرکت، بالحرف | لفظی (۱.۱۳) حم | تمنی، غیر تمنی | + | ۲. مفعول بہ تمیز |
| وَيَنْقَلِبُ إِلَى أَهْلِهِ مَسْرُورًا | خبریہ فعلیہ | يَنْقَلِبُ | هُوَ | ۳.(هُوَ، ہ، هُوَ) | ۳. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) حم | غیر تمنی | (يَنْقَلِبُ) حالت رفعی (۱) حم | حال |

# التمرين:

"وَجَاءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا،، فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً،، أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا،، أَأَنْتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا،، يَوْمَ يَقُومُ الرُّوحُ وَالْمَلَائِكَةُ صَفًّا،، يَا أَيُّهَا النَّبِيُّ إِنَّا أَرْسَلْنَاكَ شَاهِدًا وَمُبَشِّرًا وَنَذِيرًا،،

وَدَخَلَ جَنَّتَهُ وَهُوَ ظَالِمٌ لِنَفْسِهِ،، وَجَاءَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ،، وَاشْتَعَلَ الرَّأْسُ شَيْبًا،، وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَعَدْلًا".

بدانکه فاعل بر دو قسم است مظهر و مضمر الخ: ............... الی قوله بدانکه افعال ناقصه هفتده اند.

## ترجمه:

پوه سه! چي فاعل پر دوه قسمه دئ اسم مظهر لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ" او مضمر بارز (ښکاره) لکه: "ضَرَبْتُ" او مضمر مستتر (پټ) لکه: "زَيْدٌ ضَرَبَ" چي د "ضَرَبَ" فاعل "هُوَ" دئ او په "ضَرَبَ" کي مستتر دئ.

پوه سه! چي فاعل کله مؤنث حقيقي وي يا ضمير د مؤنث حقيقي وي نو علامه د تانيث په فعل کي لازمي وي لکه: "قَامَتْ هِنْدٌ، هِنْدٌ قَامَتْ" يعني د "هِيَ" ضمير دئ او په اسم مظهر غير حقيقي او په مظهر جمع تکسيره کي دواړه صورتونه جائز دي لکه: "طَلَعَ الشَّمْسُ اَوْ طَلَعَتِ الشَّمْسُ" "قَالَ الرِّجَالُ اَوْ قَالَتِ الرِّجَالُ". دوهم قسم فعل مجهول دئ پوه سه چي فعل مجهول د فاعل پر ځای و مفعول به ته رفع ور کوي او نورو مفاعيل ته نصب ور کوي لکه: "ضُرِبَ زَيْدٌ يَوْمَ الْجُمُعَةِ اَمَامَ الْاَمِيْرِ ضَرْبًا شَدِيْدًا فِيْ دَارِهٖ تَادِيْبًا وَ الْخَشَبَةَ" او فعل مجهول ته فعل ما لم يسم فاعله هم ورته ويل کيږي او د ده و مرفوع ته مفعول مالم يسم فاعله ويل کيږي.

پوه سه! چي فعل متعدي پر څلور قسمه دئ اول متعدي بيک مفعول لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا" دوهم متعدي بدو مفعول او اقتصار و اکتفاء پر يوه مفعول جائز وي لکه: باب د اعطيت او هغه کلمات چي د اعطيت په معنٰی کوي لکه: "اَعْطَيْتُ زَيْدًا دِرْهَمًا" او د ده پر ځای "اَعْطَيْتُ زَيْدًا" ويل هم جائز دي، دريم متعدي بدو مفعول لېکن اقتصار پر يوه جائز نه وي او دا افعال قلوب دي لکه: "عَلِمْتُ، وَ ظَنَنْتُ، وَ حَسِبْتُ، خِلْتُ، وَ زَعَمْتُ، وَ رَاَيْتُ، وَوَجَدْتُ" لکه: "عَلِمْتُ زَيْدًا فَاضِلًا" او "ظَنَنْتُ زَيْدًا عَالِمًا". څلورم متعدي بسه مفعول لکه: "اَعْلَمَ، وَ اَرَى، وَ اَنْبَاَ، وَ اَخْبَرَ، وَ خَبَّرَ، وَ نَبَّاَ، وَ حَدَّثَ" لکه: "اَعْلَمَ اللهُ زَيْدًا عَمْرًا فَاضِلًا".

پوه سه! چي دا ټول مفعولات مفعول به دي لېکن دوهم مفعول په باب د "عَلِمْتُ" کي او دريم مفعول په باب د "اَعْلَمْتُ" کي او مفعول له و مفعول معه د فاعل قائم مقام نسي جوړېدای او د دې څخه علاوه نور قائم مقامه دِ فاعل جوړېدای سي او په باب د "اَعْطَيْتُ" کي اول مفعول په مفعول مالم يسم فاعله جوړولو کي زيادہ لائق دئ تر دوهم.

## الدرس السابع والعشرون

د نن سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د فاعل ([1]) اقسام:

فاعل پر دوه قسمه دئ:

---

([1]) د فعل ماضي په دولسو (۱۲) صيغو کي فاعل ضمير بارز وي او صرف دوې صيغې "ضَرَبَ، ضَرَبَتْ"، که چيري دغه دوې صيغې په ابتداء د کلام کي راغلې نو بيا همېشه د دوی فاعل اسم ظاهر وي لکه: "ذَهَبَ اللّٰهُ بِنُوْرِهِمْ خَتَمَ اللّٰهُ عَلٰى قُلُوْبِهِمْ" او که چيري په وسط د کلام کي راغلی نو بيا د دوی فاعل همېشه اسم ضمير وي او د هغه دپاره څلور مقامونه دي:

۱. اول مقام: چي فعل خبر د مبتداء وي لکه: "اَللّٰهُ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَاءُ".

۲. دوهم مقام: يا صله د موصول وي لکه: "اَلَّذِيْ خَلَقَ الْمَوْتَ وَالْحَيٰوةَ لِيَبْلُوَكُمْ".

۳. دريم مقام: يا صفت دپاره د موصوف وي لکه: "اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ لَهَا مَا كَسَبَتْ".

۴. څلورم مقام: يا حال دپاره د ذوالحال وي لکه: "جَاءَنِيْ زَيْدٌ قَدْ رَكِبَ".

لېکن که چيري د دغه څلورو ځايو وروسته ضمير راغلئ او راجع وو يو د دا څلورو ځايو ته نو بيا د دوی فاعل اسم ظاهر راځي لکه: "اَلَّذِيْنَ ضَلَّ سَعْيُهُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا" او د مضارع په نه (۹) صيغو کي فاعل ضمير بارز دئ او په پنځو صيغو کي مستتر دئ بيا په درې صيغو کي چي "تَضْرِبُ" مخاطبه او "اَضْرِبُ، نَضْرِبُ" متکلم کي فاعل واجب الاستتار دئ او په دوو صيغو کي چي "يَضْرِبُ" واحد مذکر "تَضْرِبُ" واحده مؤنثه کي فاعل ضمير جائز الاستتار دئ او د دوی دواړو حکم د ماضي د "ضَرَبَ" او "ضَرَبَتْ" دئ لېکن په دانورو صيغو کي صرف په "تَضْرِبِيْنَ" کي اختلاف دئ څوک وايي: چي په دې کي فاعل ضمير بارز دئ چي "يَا" ده او څوک وايي "اَنْتِ" يې فاعل دئ چي ضمير مستتر دئ، او فعل ماضي مجهول او مضارع مجهول په شان د ماضي معلوم او مضارع معلوم دي. او داغه رنګه جحد، نفي، امر غائب، نهي حاضر و غائب د فعل مضارع په حکم کي دي. (العلامات النحوية).

۱. اسم ظاهر لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ".
۲. اسم ضمير.
بيا اسم ضمير پر دوه قسمه دئ:
۱. بارز لکه: "ضَرَبْتُ".
۲. مستتر لکه: په "زَيْدٌ ضَرَبَ" کي د "هُوَ" ضمير.

## ضابطه:

کم وخت چي فاعل اسم ظاهر وي فعل همېشه (۱) واحد راوړل کيږي خواه که فاعل واحد وي تثنيه وي او که جمع وي لکه: "قَامَ زَيْدٌ، قَامَ الزَّيْدَانِ، قَامَ الزَّيْدُوْنَ". او که چيري فاعل اسم ضمير وو بيا د ده او د فعل مطابقت واجب دئ لکه: "زَيْدٌ قَامَ، اَلزَّيْدَانِ قَامَا، اَلزَّيْدُوْنَ قَامُوْا".
د فاعل د استعمال صورتونه او احکام په اعتبار د تذکير او تانيث سره:
فاعل به يا اسم ظاهر وي او يا به اسم ضمير وي که چيري د فعل فاعل اسم ظاهر وو يا به مفرد وي او يا به جمع وي که چيري مفرد وو د هغه دپاره شپږ (٦) صورتونه دي.
د مفرد صورتونه:
۱. اول صورت: چي فاعل اسم ظاهر واحد مذکر راغلی وي نو فعل به هم همېشه واحد مذکر ورسره راځي لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ" او تثنيه هم د مفرد په حکم کي ده لکه: "ضَرَبَ الزَّيْدَانِ، قَامَتِ الْمَرْئَتَانِ".
۲. دوهم صورت: چي فاعل اسم ظاهر مؤنث سماعي وي لکه: "اَلشَّمْسُ".
۳. دريم صورت: يا فاعل اسم ظاهر مؤنث حقيقي مع الفصل وي مثال لکه: "حَضَرَ الْمَجْلِسَ اِمْرَاَةٌ".

---

(۱) ضابطه: فعل که چيري په جواب د نفي کي راسي نو بيا د ده حذف کول جائز دي لکه: "مَا قَامَ اَحَدٌ" په جواب کي صرف "بَلٰى زَيْدٌ" ويل يعني "قَامَ زَيْدٌ" دلته "قَامَ" حذف کول جائز دي او داغه رنگه د استفهام محقق په جواب کي يې حذف کول هم جائز دي لکه: "وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ". په جواب کي "لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ اَىْ لَيَقُوْلُنَّ خَلَقَهُنَّ اللّٰهُ" او د استفهام مقدر په جواب کي لکه: "يُسَبِّحُ لَهٗ فِيْهَا بِالْغُدُوِّ وَالْاٰصَالِ رِجَالٌ لَا تُلْهِيْهِمْ: اَىْ يُسَبِّحُهٗ رِجَالٌ". (تنوير)

نو په دې دواړو صورتو کي فعل مذکر او مؤنث دواړه راوړل جائز دي د مؤنث سماعي مثال لکه: "طَلَعَ الشَّمْسُ، طَلَعَتِ الشَّمْسُ". او د مؤنث حقيقي مع الفصل مثال لکه: "قَامَ الْيَوْمَ اِمْرَءَةٌ، قَامَتِ الْيَوْمَ اِمْرَاَةٌ" لېکن په دغه دواړو صورتو کي تانيث افصح دئ.

۴. څلورم صورت: چي فاعل اسم ظاهر مؤنث حقيقي بلا فصل وي لکه: "جَائَتْ فَاطِمَةُ".

۵. پنځم صورت: چي فاعل اسم ظاهر مؤنث حقيقي وي لېکن د مذکر سره مشابه وي لکه: "هِنْدٌ".

نو په دې دواړو صورتو کي فعل واحد مؤنث راوړل واجب دي، د مؤنث حقيقي بلا فصل مثال لکه: "جَائَتْ فَاطِمَةُ" او د مؤنث حقيقي مشابه بالمذکر مثال لکه: "جَائَتْ هِنْدٌ".

٦. شپږم صورت: چي فاعل اسم ظاهر مؤنث حقيقي وي او فعل د "نِعْمَ" يا "بِئْسَ" وي نو په دې صورت کي فعل مذکر او مؤنث دواړه راوړل جائز دي لکه: "نِعْمَ الْمَرْءَةُ، نِعْمَتِ الْمَرْءَةُ" لېکن دلته تانيث اَجْوَدُ دئ.

## دوهمه خبره:

د فاعل اسم ظاهر د جمع صورتونه:

فاعل اسم ظاهر چي کله جمع وي نو د ده دپاره اته (۸) صورتونه دي:

۱. اول صورت: چي فاعل اسم ظاهر جمع مذکر سالمه وي نو بیا فعل وجوبًا واحد مذکر راوړل کيږي لکه: "قَالَ الْمُسْلِمُوْنَ".

۲. دوهم صورت: چي فاعل اسم ظاهر جمع مؤنث سالم ذو العقول وي لکه: "اَلْمُسْلِمَاتُ".

۳. دريم صورت: يا غير ذو العقول وي لکه: "اَلْكَرَامَاتُ".

۴. څلورم صورت: چي فاعل جمع مکسره مذکره ذو العقول وي لکه: "اَلرِّجَالُ".

۵. پنځم صورت: يا غير ذو العقول وي لکه: "اَلْجِمَالُ".

٦. شپږم صورت: چي فاعل جمع مکسر مؤنث وي لکه: "اَلْفَوَاطِمُ".

۷. چي فاعل اسم ظاهر اسم جمع وي لکه: "قَوْمٌ وَرَهْطٌ".

۸. چي فاعل اسم ظاهر اسم جنس وي لکه: "عَرَبٌ وَرُوْمٌ".
نو په دې ټولو صورتو کي فعل واحد مؤنث او واحد مذکر دواړه راوړل جائز دي د جمع مؤنث سالم ذوالعقول مثال لکه: "جَاءَ الْمُسْلِمَاتُ جَاءَتِ الْمُسْلِمَاتُ" د جمع مؤنث سالم غیر ذوالعقول مثال لکه: "جَاءَ الْكِرَامَاتُ جَاءَتِ الْكِرَامَاتُ" او په دې صورتو کي تانیث اَصَحّ دئ. د جمع مکسره مذکري ذوالعقول مثال لکه: "جَاءَ الرِّجَالُ جَاءَتِ الرِّجَالُ". د جمع مکسره مذکري غیر ذوالعقول مثال لکه: "جَاءَ الْجِمَالُ جَائَتِ الْجِمَالُ" د جمع مکسري مؤنث مثال لکه: "جَاءَ الْفَوَاطِمُ جَاءَتِ الْفَوَاطِمُ" لېکن په دغه صورتو کي تذکیر د مذکر سره او تانیث د مؤنث سره اَفْضَلُ دئ. د اسم جمع مثال لکه: "جَاءَ الْقَوْمُ جَاءَتِ الْقَوْمُ". د اسم جنس مثال لکه: "قَالَ الْعَرَبُ اَوِ الرُّوْمُ قَالَتِ الْعَرَبُ اَوِ الرُّوْمُ".

## دریمه خبره:

**د فاعل د استعمال صورتونه په شکل د اسم ضمیر کي:**
که چیري فاعل ضمیر وو یا به د مفرد ضمیر وي او یا به د جمع ضمیر وي که چیري د مفرد ضمیر وو بیا د هغه دپاره درې (۳) صورتونه دي:
د فاعل اسم ضمیر د مفرد صورتونه:
۱. اول صورت: فاعل چي کله د واحد مذکر ضمیر وي نو فعل به وجوبًا واحد مذکر ور سره راوړل کیږي لکه: "زَيْدٌ يَضْرِبُ" په "يَضْرِبُ" کي د "هُوَ" ضمیر فاعل دئ.
۲. دوهم صورت: فاعل چي کله د مؤنث حقیقي ضمیر وي.
۳. دریم صورت: یا د مؤنث سماعي ضمیر وي.
نو په دې دواړو صورتو کي فعل (۱) وجوبًا واحد مؤنث راوړل کیږي د مؤنث حقیقي مثال لکه: "فَاطِمَةُ ذَهَبَتْ" او د مؤنث سماعي مثال لکه: "اَلشَّمْسُ طَلَعَتْ" (۱).

---

(۱) د فعل حذف وجوبًا:
ضابطه متصله په ماقبل پوري که چیري تر "اِذْ" او د "لَوْ" او "اِنْ" وروسته یو اسم مرفوع راسي نو هلته فعل حذف کول واجب دي د "اِذْ" مثال لکه: "إِذَا السَّمَاءُ انْشَقَّتْ" دلته اول "اِنْشَقَّتْ" حذف سوی دئ چي مابعد یې تفسیر دئ د "لَوْ" مثال لکه: "لَوْ أَنْتُمْ تَمْلِكُونَ" دلته اول "تَمْلِكُونَ" حذف سوی دئ د "اِنْ" مثال لکه: "وَإِنْ أَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ اسْتَجَارَكَ" دلته اول "اسْتَجَارَكَ"

د فاعل اسم ضمير د جمع صورتونه: كه چيري فاعل د جمع ضمير وو نو د هغه دپاره شپږ (٦) صورتونه دي:

١. اول صورت: فاعل چي كله د جمع مذكر سالم ضمير وي نو بيا فعل وجوبًا جمع مذكر راوړل كيږي لكه: "اَلْمُجْتَهِدُوْنَ يَنْجَحُوْنَ".

٢. دوهم صورت: فاعل چي كله د جمع مؤنث سالم ضمير وي نو فعل صرف مؤنث راوړل كيږي خواه كه جمع مؤنث وي او كه واحد مؤنث وي دواړه راوړل كيږي لكه: "اَلْمُسْلِمَاتُ جَائَتْ يَا جِئْنَ".

٣. دريم صورت: فاعل چي كله د اسم جمع ضمير وي نو بيا فعل واحد مذكر واحد مؤنث او جمع مؤنث راوړل جائز دي، لكه: "اَلْقَوْمُ قَدْ جَاءَ، جَاؤُا، جَائَتْ".

۴. څلورم صورت: فاعل چي كله د جمع مكسر مذكر ذوالعقول ضمير وي نو فعل واحد مؤنث او جمع مذكر دواړه راوړل جائز دي لكه: "اَلرِّجَالُ جَاؤُا يَا جَائَتْ" ليكن تذكير په ضمير د جمع عاقل سره افصح دئ.

۵. پنځم صورت: فاعل چي كله د جمع مكسر مذكر غير ذوالعقول ضمير وي نو بيا فعل صرف مؤنث ور سره راوړل كيږي خواه كه واحد مؤنث وي او كه جمع مؤنث وي دواړه راوړل جائز دي لكه: "اَلْجِمَالُ تَسِيْرُ، يَسِرْنَ".

٦. شپږم صورت: فاعل چي كله د جمع مؤنث مكسر ضمير وي نو بيا فعل صرف مؤنث راوړل كيږي خواه كه واحد مؤنث وي او كه جمع مؤنث وي دواړه راوړل جائز دي لكه: "اَلْفَوَاطِمُ اَقْبَلَتْ يَا اَقْبَلْنَ".

د فاعل تقديم پر مفعول باندي وجوبا:

---

حذف سوى دئ "اَىْ وَاِنِ اسْتَجَارَكَ أَحَدٌ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ اسْتَجَارَكَ" او داغه رنګه كه چيري تر "لَوْ" وروسته "اَنَّ" راسي نو په دې وخت كي په مينځ كي د "ثَبَتَ" فعل محذوف وي او "اَنَّ" د هغه دپاره فاعل جوړيږي لكه: "وَلَوْ اَنَّنَا اَىْ لَوْ ثَبَتَ اَنَّنَا".

(١) دلته يو وهم كيږي هغه دا چي تا د فاعل د اسم ظاهر د مفرد په صورتو كي وويل چي كم وخت فاعل مؤنث سماعي راسي نو فعل مذكر او مؤنث دواړه راوړل جائز دي او دلته وايې چي د مؤنث سماعي دپاره صرف ضمير د مؤنث راوړل واجب دي نو د هغه جواب دا دئ: چي هلته د فاعل اسناد و ظاهر ته دئ او دلته و ضمير ته دئ نو هلته د مؤنث سماعي حكم په اعتبار د اسم ظاهر سره دئ او دلته په اعتبار د اسم ضمير سره دئ. (از مرتب عفي عنه)

عموما فاعل پر مفعول باندي مقدم راځي لېکن په څلورو (۴) ځايو کي د فاعل تقديم پر مفعول باندي واجب دئ:

۱. فاعل چي کله ضمير متصل په فعل پوري وي لکه: "ضَرَبْتُ زَيْدًا".
۲. کله چي فاعل و مفعول دواړه اسم مقصور وي او د اشتباه خطره وي لکه: "ضَرَبَ مُوْسٰى عِيْسٰى".
۳. مفعول چي کله تر "اِلَّا" وروسته واقع سي لکه: "مَا ضَرَبَ زَيْدٌ اِلَّا عَمْرًا".
۴. يا د معنى د "اِلَّا" وروسته واقع سي لکه: "اِنَّمَا ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا".

## څلورمه خبره:

فعل مجهول:

دوهم قسم د فعل فعل مجهول دئ.

د فعل مجهول تعريف:

فعل مجهول هغه فعل دئ چي دلالت پر نسبت وقوعي کوي او د ده فاعل حذف سوى وي او مفعول د هغه قائمقام درېدلى وي لکه: "ضُرِبَ زَيْدٌ".

د فعل مجهول عمل:

فعل مجهول د فاعل پر ځاى مفعول به ته رفع ور کوي او نورو مفاعيل ته نصب ور کوي لکه: "ضُرِبَ" (فعل مجهول) "زَيْدٌ" (نائب فاعل) "يَوْمَ الْجُمُعَةِ" (مفعول فيه ظرف زمان) "اَمَامَ الْاَمِيْرِ" (مفعول فيه ظرف مكان) "ضَرْبًا شَدِيْدًا" (مفعول مطلق) "فِي دَارِهٖ" (جار و مجرور مفعول فيه) "تَادِيْبًا" (مفعول له) "وَالْخَشَبَةَ" (مفعول معه).

د فعل مجهول دپاره کم شيان نائب فاعل واقع کېداى سي:

۱. اول: د فاعل قائم مقامه تر ټولو زيات په اوله درجه کي لائق هغه مفعول به دئ ځکه هغه فعل ته قريب دئ لکه: "ضُرِبَ زَيْدٌ".

۲. دوهم: مفعول مطلق دئ او د مفعول مطلق دپاره شرط دا دئ: چي دی به فعل متصرف وي احترازي مثال لکه: "سُبْحَانَ، مَعَاذَ" اتفاقي مثال لکه: "وُقِفَ وُقُوْفٌ طَوِيْلٌ، نُظِرَ فِي الْاَمْرِ نَظْرَتَانِ اَوْ نَظَرَاتٌ، سِيْرَ سَيْرَ الصَّالِحِيْنَ".

۳. دريم: که چيري مفعول مطلق نه وو بيا ظرف نائب فاعل واقع کيږي ليکن په ظرف کي دوه شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي دی به متصرف وي احترازي مثال لکه: "عِنْدَ، لَدٰى، قَبْلُ، بَعْدُ".

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي پر محدوده زمانه به دلالت کوي احترازي مثال لکه: "حِيْن، دَهْر" اتفاقي مثال لکه: مُشِيَ يَوْمٌ كَامِلٌ، وَ صِيْمَ رَمَضَانُ.

۴. څلورم: که چيري ظرف نه وو بيا جار او مجرور نائب فاعل واقع کيږي ليکن د جار او مجرور دپاره دوه شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي دوی به هغه جاره نه وي چي د استثناء دپاره راځي احترازي مثال لکه: "حَاشَا، خَلَا، عَدَا".

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي د علت والا معنٰی به نه وي پکښې احترازي مثال لکه: "وُقِفَ لَكَ، وُقِفَ مِنْ اَجْلِكَ" چي کله "لَامْ" جاره او "مِنْ" د علت دپاره وي. اتفاقي مثال يې لکه: "يَوْمَ يُكْشَفُ عَنْ سَاقٍ".

## پنځمه خبره:

د فعل متعدي اقسام:

فعل متعدي پر څلور قسمه دئ:

۱. اول قسم: هغه دئ چي متعدي وي په يوه مفعول سره هغه عام افعال وي لکه: "ضَرَبَ زَيْدٌ عَمْرًا".

۲. دوهم قسم: هغه دئ چي متعدي وي و دوو مفعولو ته دا بيا پر دوه قسمه دي:

اول: چي اصل يې مبتداء و خبر نه وئي هغه باب د "اَعْطَيْتُ" او د ده په معنٰى سره نور افعال (۱) هغه لكه: "اَعْطٰى، سَأَلَ، مَنَحَ، مَنَعَ، كَسَا، اَلْبَسَ، وَ عَلَّمَ" وغيره او په باب د "اَعْطَيْتُ" كي اكتفاء پر يوه مفعول جائز ده لكه: مثال "اَعْطَيْتُ زَيْدًا دِرْهَمًا" او صرف "اَعْطَيْتُ زَيْدًا" ويل هم جائز دي.

دوهم: چي اصل يې مبتداء او خبر وي دا هم پر دوه قسمه دي: اول افعال قلوب. دوهم افعال تصيير، يا تحويل.

**د افعال قلوب تعريف:**

افعال قلوب هغه افعال دي چي د هغه تعلق د انسان د ظاهري اندامو سره نه وي بلكه د زړه سره وي.

**د افعال قلوب تعداد:**

افعال قلوب ټوله څوارلس (۱۴) دانې دي: "رَئٰى (۲)، عَلِمَ، دَرَى، وَجَدَ، اَلْفٰى، تَعَلَّمْ، ظَنَّ، خَالَ، حَسِبَ، جَعَلَ، حَجَا، عَدَّ، زَعَمَ، هَبْ".

---

(۱) د دغه افعال مثالونه "اَعْطٰى" لكه: "اَعْطَيْتُكَ كِتَابًا". "مَنَحَ" لكه: "مَنَحْتُ الْمُجْتَهِدَ جَائِزَةً". "مَنَعَ" لكه: "مَنَعْتُ الْكَسْلَانَ التَّنَزُّهَ". "كَسَا" لكه: "كَسَوْتُ الْفَقِيْرَ ثَوْبًا". "اَلْبَسَ" لكه: "اَلْبَسْتُ الْمُجْتَهِدَةَ وِسَامًا". "عَلَّمَ" لكه: "عَلَّمْتُ سَعِيْدًا الْاَدَبَ".(جامع الدروس العربية جلد ۱ صفحه ۲۰)

(۲) افعال قلوب بعض افعال يقين دي هغه لكه: "رَئٰى" په معنى د "عَلِمَ" او "اِعْتَقَدَ" سره دئ مثال يې لكه: "اِنَّهُمْ يَرَوْنَهُ بَعِيْدًا. وَنَرَاهُ قَرِيْبًا" "اِنِّيْ اَرَانِيْ اَعْصِرُ خَمْرًا". او كه د رُؤيت څخه مراد رُؤيت قلبي نه وي بلكه: رؤيت بصري وي يعني په معنى د "اَبْصَرَ. وَ رَئٰى بِعَيْنِهٖ" سره وي نو بيا دى متعدي و يوه مفعول ته وي لكه: "رَاَيْتُ زَيْدًا يَا ضَرَبَهٗ فَرَاٰهُ".

"عَلِمَ" په معنى د "اِعْتَقَدَ" سره لكه: "فَاِنْ عَلِمْتُمُوْهُنَّ مُؤْمِنَاتٍ" كه چيري دى په معنى د "عَرَفَ" سره دئ لكه: "عَلِمْتُ الْاَمْرَ اَىْ عَرَفْتُهٗ" "وَاللّٰهُ اَخْرَجَكُمْ مِنْ بُطُوْنِ اُمَّهَاتِكُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ شَيْئًا". نو دى به متعدي په يوه مفعول سره وي داغه رنګه كه چيري په معنى د "شَعَرَ، اَحَاطَ، اَدْرَكَ" سره وي لكه: "عَلِمْتُ الشَّيْئَ وَ بِالشَّيْئِ".

"دَرٰى" په معنى د "عَلِمَ" او "اِعْتَقَدَ" سره دئ لكه: "دَرَيْتُ الْوَفِيَّ الْعَهْدَ" ليكن دى اكثره متعدي بيک مفعول وي په واوسطه د "با" سره لكه: "دَرَيْتَ بِهٖ" او كه چيري دى په معنى د "خَطَلَ، خَدَعَ، هَكَّ" سره وي لكه: "دَرَيْتُ الصَّيْدَ اَىْ خَطَلْتُهٗ وَ خَدَعْتُهٗ، دَرٰى رَاْسَهٗ بِالْمَدْرٰى اَىْ حَكَّهٗ بِهٖ" به نو بيا به دى متعدي بيک مفعول وي.

"وَجَدَ" په معنى د "عَلِمَ" و "اِعْتَقَدَ" سره دئ او د ده مصدر "اَلْوُجُوْدُ وَالْوِجْدَانُ" راځي لكه: "وَجَدْتُ الصِّدْقَ زِيْنَةَ الْعُقَلَاءِ" وَمِنْهُ قَوْلُهٗ تَعَالٰى "وَاِنْ وَجَدْنَا اَكْثَرَهُمْ لَفَاسِقِيْنَ" او كه چيري دى په معنى د "عَلِمَ" و "اِعْتَقَدَ" سره نه وو نو بيا د دې باب څخه نه وي لكه: "وَجَدْتُ الْكِتَابَ".

د افعال قلوب اقسام:

افعال قلوب پر څلور قسمه دي:

۱. چي د يقين معنٰی فائده کوي هغه څلور دي "وَجَدَ، وَرَىٰ، اَلْفٰى، تَعَلَّمْ" کله چي په معنٰی د "اَعْلَمْ" سره وي.

۲. چي د ظن غالب معنٰی فائده کوي هغه پنځه دي: "جَعَلَ، حَجَا، عَدَّ، هَبْ، زَعَمَ".

۳. چي دواړي معناګاني فائده کوي لېکن د يقين معنٰی يې کثير الاستعماله وي هغه دوه دي: "رَئٰ، عَلِمَ".

۴. چي دواړي معناګاني فائده کوي لېکن د ظن غالب معنٰی يې کثير الاستعماله وي هغه دري دي "ظَنَّ، حَسِبَ، خَالَ".

د افعال قلوب عمل؛

افعال قلوب پر جمله اسميه داخليږي مبتداء او خبر ته نصب ورکوي مبتداء ته مفعول اول او خبر ته مفعول ثاني ويل کيږي. او افعال قلوب ته نواسخ ابتداء هم ويل کيږي او په افعال قلوب کي اکتفاء پر يوه مفعول جائز نه وي لکه: "عَلِمْتُ زَيْدًا فَاضِلًا".

---

"اَلْفٰى" په معنی د "عَلِمَ وَاِعْتَقَدَ" سره دئ لکه: "اَلْفَيْتُ قَوْلَکَ صَوَابًا" لېکن که چيري دَی په معنی د "اَصَابَ الشَّيْئَ وَظَفَرَ بِهٖ" سره وو نو بيا به دی متعدي و يوه مفعول ته وي لکه: "اَلْفَيْتُ الْكِتَابَ" وَمِنْهُ قَوْلُهُ تَعَالٰى "وَاَلْفَيَا سَيِّدَهَا لَدَى الْبَابِ".

"تَعَلَّمْ" په معنی د "اِعْلَمْ" او "اِعْتَقِدْ" سره راځي لکه: "تَعَلَّمُوْا اَنَّ رَبَّكُمْ لَيْسَ بِاَعْوَرَ". او که چيري دی امر وي د "تَفَعُّلْ" څخه بيا دی متعدي ييک مفعول وي لکه: "تَعَلَّمُوْا الْعَرَبِيَّةَ وَعَلِّمُوْهَا النَّاسَ".

او بعض افعال ظن دي هغه لکه: "ظَنَّ" په معنی د "وَهُوَ لِرُجْحَانِ وَقُوْعِ الشَّيْئِ" سره راځي لکه: قول د شاعر: "ظَنَنْتُکَ اِنْ شَبَّتْ لَظَى الْحَرْبِ صَالِيًا" او کله "ظَنَّ" د يقين فائده هم ور کوي لکه: "اَلَّذِيْنَ يَظُنُّوْنَ اَنَّهُمْ مُلَاقُوْ رَبِّهِمْ... وَظَنُّوْا اَنْ لَا مَلْجَاَ مِنَ اللهِ اِلَّا اِلَيْهِ" او که چيري دی په معنی د "اِتَّهَمَ" سره راسي نو بيا به دَی متعدي ييک مفعول وي لکه: "ظَنَّ الْقَاضِيْ فُلَانًا اَيْ اِتَّهَمَهٗ".

"خَالَ" په معنی د "ظَنَّ" سره راځي لکه شعر: "اِخَالُکَ اِنْ لَمْ تُغْضِضِ الطَّرْفَ ذَا هَوًى". او کله د يقين دپاره راځي لکه: "وَخِلْتُنِيْ لِيَ اسْمٌ".

"حَسِبَ" هم په معنی د "ظَنَّ" سره راځي لکه: "وَتَحْسَبُهُمْ اَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُوْدٌ" "يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَاءَ مِنَ التَّعَفُّفِ" او کله د يقين دپاره هم راځي لکه: شعر "حَسِبْتُ التُّقٰى وَالْجُوْدَ خَيْرَ تِجَارَةٍ". (جامع الدروس العربية جلد ۱ صفحه ۲۸)

## شپږمه خبره:

افعال تصيير يا تحويل:

هغه افعال چي په معنٰی د "صَيَّرَ" سره راځي.

د افعال تصيير تعداد:

افعال تصيير اووه (۷) داني دي: (۱) "صَيَّرَ، رَدَّ، تَرَکَ، تَخِذَ، اِتَّخَذَ، جَعَلَ، وَهَبَ" لکه: "وَاتَّخَذَ اللّٰهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا".

د افعال قلوب او افعال تصيير مشترک احکام:

د افعال تصيير د پاره دري حکمونه دي:

۱. اول حکم: يې اِعمال دئ يعني دوی عمل کوي په دوو مفعولو کي او اصل يې مبتداء و خبر وو او د دوی اصل حکم هم داغه دئ.

۲. دوهم حکم: يې الغاء عن العمل چي دوی لفظا و معنا عمل نه کوي بيا دوی په دوو شکلو سره راځي:

اول شکل: کله د مسند او مسند اليه په مينځ کي راځي لکه: "زَيْدٌ ظَنَنْتُ قَائِمٌ".

دوهم شکل: او کله په آخر کي راځي لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ ظَنَنْتُ".

۳. دريم حکم: يې تعليق يعني چي لفظًا يې عمل باطليږي ليکن معنًا پاته کيږي او دا تعليق هغه وخت راځي کله چي د دوی پر معمولاتو باندي لام ابتداء لام قسم، يا حرف نفي "اِنْ"

---

(۱) د "افعال التصيير" مثالونه اول "صَيَّرَ" دئ لکه: "صَيَّرْتُ العَدُوَّ صَدِيقًا". دوهم "رَدَّ" دئ لکه: قول د الله تعالی "وَدَّ كَثِيرٌ مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ لَوْ يَرُدُّونَكُمْ مِنْ بَعْدِ إِيمَانِكُمْ كُفَّارًا". دريم "تَرَكَ" دئ لکه: قول د الله تعالی "وَتَرَكْنَا بَعْضَهُمْ يَوْمَئِذٍ يَمُوجُ فِي بَعْضٍ". څلورم "تَخِذَ" دئ لکه: "تَخِذْتُكَ صَدِيقًا". پنځم "اِتَّخَذَ" دئ لکه: قول د الله تعالی "وَاتَّخَذَ اللّٰهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلًا"، شپږم "جَعَلَ" دئ لکه: "وَقَدِمْنَا إِلَى مَا عَمِلُوا مِنْ عَمَلٍ فَجَعَلْنَاهُ هَبَاءً مَنْثُورًا". اووم "وَهَبَ" دئ لکه: "وَهَبَنِيَ اللّٰهُ فِدَاءَ الْمُخْلِصِينَ" او دغه افعال په هغه وخت کي متعدي بدو مفعولين وي کله چي دوی په معنی د "صَيَّرَ" سره وي ليکن که چيري "رَدَّ" په معنی د "رَجَعَ" سره وي لکه: "رَدَدْتُهُ أَیْ رَجَعْتُهُ" يا "تَرَکَ" په معنی د "خَلَّ" سره وي لکه: "تَرَكْتُ الْجَهْلَ أَیْ خَلَّيْتُهُ" او يا "جَعَلَ" په معنی د "خَلَقَ" سره وي نو بيا به دوی متعدي و يوه مفعول ته وي او داغه رنګه "وَهَبَ" که چيري په معنی د "أَعْطٰی" سره سي نو بيا د دې باب څخه نه وي که څه هم و دوه مفعولين ته نصب ور کوي لکه: "وَهَبْتُکَ فَرَسًا" ليکن فصيح "وَهَبْتُ لَکَ فَرَسًا" دئ. (جامع الدروس العربية ج ۱ ص ۳۵)

چي د قسم په جواب کي راځي داخل سوی وي لکه مثال: "عَلِمْتُ اَزَيْدٌ عِنْدَکَ اَمْ عَمْرٌو. لِنَعْلَمَ أَيُّ الْحِزْبَيْنِ أَحْصَى لِمَا لَبِثُوا أَمَدًا. عَلِمْتُ مَا زَيْدٌ فِي الدَّارِ. لَقَدْ عَلِمْتَ مَا هٰؤُلَاءِ يَنْطِقُونَ. عَلِمْتُ لَزَيْدٌ مُنْطَلِقٌ. وَلَقَدْ عَلِمُوا لَمَنِ اشْتَرَاهُ مَالَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ".

## اوومه خبره:

۳. دريم قسم متعدي و دوه مفعولو ته چي اقتصار يې پر يوه مفعول جائز نه وي هغه لکه: "اَفْعَالِ قُلُوْب او اَفْعَالِ تَصْيِيْر" چي بحث يې تېر سو.

۴. څلورم قسم متعدي و درې مفعولو ته: کم افعال چي متعدي په درې مفعول سره راځي: هغه اووه (۷) افعال دي ([1]) "اَرٰی، اَعْلَمَ، اَنْبَأَ، نَبَّأَ، اَخْبَرَ، خَبَّرَ، حَدَّثَ". مثال يې لکه: "اَرٰی زَيْدٌ عَمْرًا خَالِدًا عَالِمًا".

## فائده:

۱. د افعال قلوب څخه وروسته که چيري جمله وي نو هغه قائمقامه د دوو مفعولين وي.

۲. او د فعل متعدي ودغه ټولو مفعولاتو ته مفعول به ويل کيږي.

۳. د فعل متعدي دوهم مفعول نائب فاعل نسي جوړېدای د "حُسِبَ زَيْدٌ فَاضِلًا" پر ځای "حُسِبَ فَاضِلٌ زَيْدًا" ويل جائز نه دي.

۴. د "اَعْلَمَ" او د ده د هم معنٰی په متعدي افعال کي دريم مفعول نائب فاعل نسي جوړېدای او داغه رنګه مفعول له او مفعول معه هم نائب فاعل نسي جوړېدای باقي ټول مفاعيل جوړېدای سي لېکن په باب د "اَعْطَيْتُ" کي هر يو مفعول د نائب فاعل جوړېدو صلاحيت لري لکه: د "اُعْطِيَ زَيْدٌ دِرْهَمًا" پر ځای "اُعْطِيَ دِرْهَمٌ زَيْدًا" ويل هم جائز دي لېکن اول مفعول نائب فاعل جوړول بهتره دئ.

---

([1]) هغه افعال چي متعدي بدو مفعول وي د هغه مثالونه: "اَرٰی" لکه: "رَاَيْتُ سَعِيْدًا الْاَمْرَ وَاضِحًا". "عَلِمْتُ" لکه: "اَعْلَمْتُهُ اِيَّاهُ صَحِيْحًا". "اَنْبَاَ" لکه: "اَنْبَاْتُ خَلِيْلًا الْخَبَرَ وَاقِعًا". "نَبَّاَ" لکه: "نَبَّاْتُهُ اِيَّاهُ حَقًّا". "اَخْبَرَ" لکه: "اَخْبَرْتُهُ اِيَّاهُ حَقًّا". "خَبَّرَ" لکه: "خَبَّرْتُهُ اِيَّاهُ حَقًّا". "حَدَّثَ" لکه: "حَدَّثْتُهُ اِيَّاهُ حَقًّا". (جامع الدروس العربية)

# جملے:

| عنوان | خبریہ، انشائیہ مع الاقسام | مسند | مسند الیہ | اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت و بالحرف | لفظی، تقدیری | تبعی و غیر تبعی | اعراب المضارع | افعال ناقصہ |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| لَيْسَ عَلَى الْأَعْمَى حَرَجٌ | خبریہ فعلیہ | (عَلَى الْأَعْمَى) باعتبار متعلق | حَرَجٌ | ۱۔ هُوَ | ۳۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | (الْأَعْمَى) تقدیری (۱۳)، (حَرَجٌ) لفظی (۱) | غیر تبعی | + | (لَيْسَ) فعل ناقص |
| عَسَى رَبُّكُمْ أَنْ يَرْحَمَكُمْ | خبریہ فعلیہ | أَنْ يَرْحَمَكُمْ | رَبُّكُمْ | ۳۔ كُمْ، هُوَ، كُمْ | ۲۔ معرب | ۵۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (أَنْ يَرْحَمَكُمْ) حالت نصبی (۱) قسم | (عَسَى) فعل مقارب |
| طَفِقَا يَخْصِفَانِ عَلَيْهِمَا مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ | خبریہ فعلیہ | طَفِقَا | هُمَا | ۳۔ هُمَا، هُمَا، هِمَا | ۳۔ معرب | ۶۔ مبنی | بالحرف و بالحرکت | لفظی (۱) قسم | تبعی و غیر تبعی | (يَخْصِفَانِ) حالت نصبی (۳) قسم | (طَفِقَا) فعل مقارب |
| كُونُوا أَنْصَارَ اللّٰهِ | انشائیہ فعلیہ | كُونُوا | أَنْتُمْ | ۱۔ أَنْتُمْ | ۲۔ معرب | ۲۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | + | (كُونُوا) فعل ناقص |
| إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا | خبریہ اسمیہ | كَانَ الخ | الْبَاطِلَ | ۲۔ هُوَ، هُوَ | ۲۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | + | (كَانَ) فعل ناقص |
| عَسَى أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا | خبریہ فعلیہ | أَنْ يَبْعَثَكَ الخ | رَبُّكَ | ۴۔ هُوَ، كَ، كَ، هُوَ | ۳۔ معرب | ۶۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (يَبْعَثَكَ) حالت نصبی (۱) قسم | (عَسَى) فعل مقارب |
| مَا كَادُوا يَفْعَلُونَ | خبریہ فعلیہ | يَفْعَلُونَ | هُمْ | ۲۔ هُمْ، هُمْ | ۱۔ معرب | ۴۔ مبنی | بالحرف | لفظی (۳) قسم | تبعی و غیر تبعی | (يَفْعَلُونَ) حالت نصبی (۳) قسم | (كَادُوا) فعل مقارب |
| وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا حَكِيمًا | خبریہ فعلیہ | عَلِيمًا حَكِيمًا | اَللّٰهُ | ۲۔ هُوَ، هُوَ | ۳۔ معرب | ۴۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | + | (كَانَ) فعل ناقص |
| وَإِنْ لَمْ تَغْفِرْ لَنَا وَتَرْحَمْنَا لَنَكُونَنَّ مِنَ الْخَاسِرِينَ | خبریہ شرطیہ | تَغْفِرْ | أَنْتَ | ۶۔ أَنْتَ، نَا، أَنْتَ، نَا، نَحْنُ | ۳۔ معرب | ۱۳۔ مبنی | بالحرکت و بالحرف | لفظی (۱۰) قسم | تبعی غیر تبعی | (لَمْ تَغْفِرْ و تَرْحَمْ) حالت جزمی (۱) قسم | (لَنَكُونَنَّ) فعل ناقص |
| لَنْ أَبْرَحَ الْأَرْضَ | خبریہ فعلیہ | أَبْرَحَ | أَنَا | ۱۔ أَنَا | ۲۔ معرب | ۲۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | (لَنْ أَبْرَحَ) حالت نصبی (۱) قسم | (لَنْ أَبْرَحَ) فعل ناقص |
| أَصْبَحُوا نَادِمِينَ | خبریہ فعلیہ | نَادِمِينَ | هُمْ | هُمْ، هُمْ | ۱۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرف | لفظی (۷) قسم | تبعی | + | (أَصْبَحُوا) فعل ناقص |
| مَا انْفَكَّ الْقَاضِي عَادِلًا | خبریہ فعلیہ | عَادِلًا | الْقَاضِي | ۱۔ هُوَ | ۲۔ معرب | ۳۔ مبنی | بالحرکت | لفظی و تقدیری (۱۰،۱) قسم | تبعی غیر تبعی | + | (مَا انْفَكَّ) فعل ناقص |
| مَا زَالَ الْحَرُّ شَدِيدًا مُنْذُ شَهْرٍ | خبریہ فعلیہ | شَدِيدًا | الْحَرُّ | ۱۔ هُوَ | ۳۔ معرب | ۴۔ مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر تبعی | + | (مَا زَالَ) فعل ناقص |

| عنوان | خبر و انشاء مع الاقسام | مسند | مسند الیہ | اسم غیر متمکن | معرب | مبنی | بالحرکت و بالحرف | لفظی و تقدیری | منصرف و غیر منصرف | اعراب المضارع | افعال ناقصہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَوْ كَانَ اللِّسَانُ مَحْفُوظًا لَمْ يَكُنِ الْقَلْبُ مَجْرُوحًا | خبریہ شرطیہ | مَحْفُوظًا مَجْرُوحًا | اَللِّسَانُ الْقَلْبُ | ۲. هُوَ، هُوَ | ۵. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱) قسم | غیر منصرف | لم یکن حالت جزمی قسم (۱) | (كَانَ) فعل ناقص |
| لَيْسَ شَيْئٌ أَكْرَمَ عَلَى اللّٰهِ مِنَ الدُّعَاءِ | خبریہ فعلیہ | أَكْرَمَ عَلَى الْمُؤمِنِ الدُّعَاءِ | شَيْئٌ | ۱. هُوَ | ۴. معرب | ۵. مبنی | بالحرکت | لفظی (۱، ۵) قسم | غیر منصرف | + | (لَيْسَ) فعل ناقص |
| لَيْسَ مِنَّا مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ وَشَقَّ الْجُيُوْبَ وَدَعَا بِدَعْوَ الْجَاهِلِيَّةِ | خبریہ فعلیہ | مِنَّا | مَنْ ضَرَبَ الْخُدُوْدَ وَشَقَّ الْجُيُوْبَ وَدَعَا بِدَعْوَ الْجَاهِلِيَّةِ | ۵. نَا، هُوَ، هُوَ، هُوَ، هُوَ | ۵. معرب | ۱۳. مبنی | بالحرکت | لفظی | غیر منصرف | + | (لَيْسَ) فعل ناقص |

# التمرين:

"لَمْ يَكُنِ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ،، فَسُبْحَانَ اللّٰهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ،، خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ،، فَنَظَلُّ لَهَا عَاكِفِينَ،، أَلَا إِلَى اللّٰهِ تَصِيرُ الْأُمُورُ،، يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا،، أَلَا يَوْمَ يَأْتِيهِمْ لَيْسَ مَصْرُوفًا عَنْهُمْ،، لَا أَبْرَحُ حَتَّى أَبْلُغَ مَجْمَعَ الْبَحْرَيْنِ،، فَمَا زَالَتْ تِلْكَ دَعْوَاهُمْ حَتَّى جَعَلْنَاهُمْ حَصِيدًا خَامِدِينَ،، وَأَصْبَحَ فُؤَادُ أُمِّ مُوسَى فَارِغًا".

بدانکہ افعال ناقصہ ہفدہ اند الخ:.................... الی قولہ باب سوم در عمل اسماء عاملہ۔

## ترجمه:

پوه سه چي افعال ناقصه اولس (۱۷) دي "كَانَ، صَارَ، ظَلَّ، بَاتَ، اَصْبَحَ، اَضْحٰى، اَمْسٰى، عَادَ، آضَ، غَدَا، رَاحَ، مَازَالَ، مَاانْفَكَّ، مَابَرِحَ، مَافَتِئَ مَادَامَ، لَيْسَ" او دغه افعال ناقصه يکره په فاعل سره نه تاميري بلکه و خبر ته محتاجه دي په دې سبب و دوی ته افعال ناقصه ويل کيږي او دوی پر جمله اسميه داخليږي او مسند اليه ته رفع ورکوي او مسند ته نصب ورکوي لکه: "كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا" او ومرفوع ته د "كَانَ" اسم ويل کيږي او منصوب ته د "كَانَ" خبر او باقي پر دوی باندي قياس کړه.

پوه سه! چي په دوی کي بعض افعال په بعض حالاتو کي صرف په فاعل سره پوره کيږي لکه: "كَانَ" بمعنى "حَصَلَ" او ده ته "كَانَ" تامه ويل کيږي او "كَانَ" زائده هم راځي.

فصل بدانکه افعال مقاربه چار است.

پوه سه! چي افعال مقاربه څلور دي: "عَسٰی، کَادَ، کَرُبَ، اَوْشَکَ". او دوی پر جمله اسمیه باندي داسي داخلیږي لکه: "کَانَ" فعل ناقص اسم ته رفع ورکوي او خبر ته نصب ورکوي مګر فرق دا دئ چي د دې افعالو مضارع سره د "اَنْ" وي لکه: "عَسٰی زَیْدٌ اَنْ یَّخْرُجَ" یا بغیر "اَنْ" وي لکه: "عَسٰی زَیْدٌ یَخْرُجُ" او کېدای سي فعل مضارع سره د "اَنْ" د "عَسٰی" دپاره فاعل واقع سي او بیا و خبر ته ضرورت نسي پاته لکه: "عَسٰی اَنْ یَّخْرُجَ زَیْدٌ" دئ په محل د رفع کي وي او د مصدر په معنٰی سره وي.

فصل بدانکه افعال مدح وذم چار است.

پوه سه! چي افعال مدح و ذم څلور دي: "نِعْمَ، حَبَّذَا" د مدح دپاره راځي او "بِئْسَ، سَاءَ" د ذم دپاره راځي او چي د فاعل څخه وروسته اسم راځي هغه ته مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم ویل کیږي او د ده دپاره شرط دا دئ چي فاعل به معرف باللام وي لکه: "نِعْمَ الرَّجُلُ زَیْدٌ" یا د معرف باللام و طرفته مضاف وي لکه: "نِعْمَ صَاحِبُ الْقَوْمِ زَیْدٌ" یا ضمیر مستتر ممیز په نکره منصوبه سره وي لکه: "نِعْمَ رَجُلًا زَیْدٌ" د "نِعْمَ" فاعل "هُوَ" دئ چي په "نِعْمَ" کي پټ دئ او "رَجُلًا" منصوب دئ بنا بر تمیز ځکه "هُوَ" مبهم دئ او "نِعْمَ، حَبَّذَا" "حَبَّ" فعل مدح او "ذَا" یې فاعل دئ او "زَیْدٌ" مخصوص بالمدح وي او داغه رنګه "بِئْسَ الرَّجُلُ زَیْدٌ" او "سَاءَ الرَّجُلُ عَمْرٌو".

فصل بدانکه افعال تعجب دو صیغه از ہر مصدر ثلاثی مجرد باشد.

پوه سه! چي افعال تعجب د هر مصدر ثلاثي مجرد څخه دوې صیغې راځي اول "مَااَفْعَلَهٗ" لکه: "مَا اَحْسَنَ زَیْدًا" زید څومره زیات ښائسته دئ د دې اصل عبارت دا دئ: "اَیُّ شَیْئٍ اَحْسَنَ زَیْدًا" "مَا" د "اَیُّ شَیْئٍ" په معنٰی سره دئ په محل د رفع کي دئ بنا بر ابتدائیت او "اَحْسَنَ" هم په محل د رفع کي دئ بنا بر خبریت او د "اَحْسَنَ" فاعل "هُوَ" دئ چي په ده کي پټ دئ او "زَیْدًا" مفعول به دئ دوهم "اَفْعِلْ بِهٖ" لکه: "اَحْسِنْ بِزَیْدٍ" "اَحْسِنْ" صیغه د امر ده په معنٰی د "اَحْسَنَ" سره د دې اصلي عبارت دا دئ: "اَحْسَنَ زَیْدٌ" یعني "صَارَ ذَا حُسْنٍ" او باء زائده ده.

# الدرس الثامن والعشرون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

## اوله خبره:

د فعل قاصر اقسام:

مخکې د فعل په تقسيم کې فعل تام و فعل قاصر تېر سوه اوس په دې سبق کې د فعل قاصر اقسام بیانیږي فعل قاصر پر دوه قسمه دئ:

۱. افعال ناقصه.

۲. افعال مقاربه.

که يې چیري د خبر دپاره مضارع واني شرط وو افعال مقاربه دي او که نه وو شرط افعال ناقصه دي.

د افعال ناقصه (۱) تعریف:

افعال ناقصه هغه افعال دي چي خپل فاعل لره د خپل مصدر څخه علاوه د يو بل صفت ثابتولو دپاره وضع سوي وي لکه: "كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا" د قیام صفتیت زید لره ثابته وي نه د "كَانَ" مصدر چي "كَوْنٌ" دئ.

د افعال ناقصه تعداد:

افعال ناقصه څلورويشت (۲۴) دانې دي لېکن په دې کي ديارلس (۱۳) افعال ناقصه دي هغه دا دي: "كَانَ، صَارَ، ظَلَّ، بَاتَ، اَصْبَحَ، اَضْحَى، اَمْسَى، لَيْسَ، مَازَالَ، مَاانْفَكَّ، مَابَرِحَ، مَافَتِئَ، مَادَامَ".

او يوولس (۱۱) دانې يې ملحقات دي هغه دا دي: "آضَ، رَجَعَ، اِسْتَحَالَ، عَادَ، حَارَ، اِرْتَدَّ، تَحَوَّلَ، غَدَا، رَاحَ، اِنْقَلَبَ، تَبَدَّلَ" دا ملحقات ټول په معنى د "صَارَ" سره دي.

د افعال ناقصه عمل:

---

(۱) د افعال ناقصه وجه د تسمیه: "سُمِّيَتْ هٰذِهِ الْاَفْعَالُ نَاقِصَةً لِاَنَّهَا لَا يَتِمُّ بِهَا مَعَ مَرْفُوْعَاتِهَا كَلَامٌ تَامٌّ بَلْ لَابُدَّ مِنْ ذِكْرِ الْمَنْصُوْبِ لِيَتِمَّ الْكَلَامُ فَمَنْصُوْبُهَا لَيْسَ فُضْلَةً لِاَنَّهٗ خَبَرٌ دَائِمًا نُصِبَ تَشْبِيْهًا بِالْفُضْلَةِ".

ضابطه: هر هغه فعل تام چي متضمن وي معنى د فعل ناقص لره هغه به عمل د فعل ناقص کوي.

افعال ناقصه پر جمله اسميه باندي داخليږي مبتداء ته رفع او خبر ته نصب ور کوي لکه: "كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا".

افعال ناقصه په اعتبار د شرائطو د عمل:

افعال ناقصه په اعتبار د شرائطو د عمل سره پر درې قسمه دي:

۱. اول هغه دي چي بلا څه شرطه عمل کوي هغه اته (۸) دانې دي: "كَانَ، صَارَ، ظَلَّ، بَاتَ، اَصْبَحَ، اَضْحٰى، اَمْسٰى، لَيْسَ".

۲. دوهم هغه دي چي د هغو د عمل دپاره شرط دا دئ چي د دوى څخه مخکي به نهي، نفي (۱) او يا دعاء راغلې وي هغه څلور دانې دي "مَازَالَ، مَاانْفَكَ، مَابَرِحَ، مَافَتِئَ"، لکه: "لَازِلْتَ بِخَيْرٍ، وَلَا يَزَالُونَ مُخْتَلِفِينَ، لَنْ نَبْرَحَ عَلَيْهِ عَاكِفِينَ".

۳. دريم هغه دي چي د هغه د عمل دپاره شرط دا دئ چي د ده څخه مخکي به ما مصدريه (۲) ظرفيه وي لکه: "مَادَامَ (۳) زَيْدٌ جَالِسًا".

افعال ناقصه (۴) په اعتبار د تصرف او عدم تصرف سره:

---

(۱) په نفي کي تعميم دئ خواه که مذکوره وي او که مقدره وي لکه: "تَاللّٰهِ تَفْتَأُ تَذْكُرُ يُوسُفَ اَىْ لَاتَفْتَأُ" خواه که حرف نفي وي او که فعل نفي وي لکه: "لَسْتَ تَبْرَحُ مُجْتَهِدًا" او که اسم نفي وي لکه: "زُهَيْرٌ غَيْرُ مُنْفَكٍّ قَائِمًا بِالْوَاجِبِ". (جامع الدروس العربية جلد ۲ صفحه ۱۹۴)

(۲) ځکه "مَا" مصدريه ظرفيه خپل مابعد په تاويل د مصدر سره اړوي د ماقبل جمله دپاره ظرف واقع کيږي.

(۳) د "مَادَامَ" په شروع کي چي کم "مَا" وي و دې ته "مَا" مصدريه حينيه ويل کيږي حينيه ځکه ورته ويل کيږي چي د "حِيْنَ" معنى وخت او دى هم د وخت په معنى سره راځي. او مصدريه ځکه ورته ويل کيږي چي دى خپل مابعد په تاويل د مصدر سره اړوي او "مَادَامَ" همېشه د دوو کلامو په مينځ کي راځي او دا خبره ښکاره کوي چي تر کمه وخته پوري د ده د اسم دپاره خبر ثابت دئ تر هغه وخته پوري به د ده د مسند اليه دپاره د ده د ماقبل حکم هم ثابت وي لکه: "زَيْدٌ جَالِسٌ مَادَامَ الْاَمِيْرُ جَالِسًا" تر څو پوري چي د امير دپاره جلوس ثابت وي تر هغه وخته پوري به د زيد دپاره هم جلوس ثابت وي. (تنوير)

(۴) افعال ناقصه پر درې قسمه دي:

۱. اول قسم: بعض هغه دي چي د هغه په شروع کي حرف نفي نه وي نو د هغو خبر پر اسم باندي مقدم کېداى سي بلکه د دوى خبر پر دوى هم مقدم کېداى سي لکه: "وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ، مُضْحِيَةً كَانَتِ السَّمَاءُ".

۲. دوهم قسم: بعض هغه اسماء دي چي د هغه په شروع کي مانافيه وي لکه: "مَازَالَ مَابَرِحَ" و غيره نو د دوى خبر پر اسم نسي مقدم کېداى ځکه نفي د صدارت تقاضا کوي د تقديم په صورت کي يې صدارت باطليږي.

افعال ناقصه په اعتبار د تصرف او عدم تصرف سره پر درې قسمه دي:

۱. اول قسم هغه دي چي دوی هيڅکله متصرف نه واقع کيږي او د دوی څخه مضارع و امر نه راځي هغه دوه دانې دي: "لَيْسَ، دَامَ".

۲. دوهم قسم هغه دي چي دوی متصرف تام واقع کيږي او د دوی څخه افعال ثلاثه: ماضي، مضارع، امر درې سره راځي هغه اووه دانې دي: "كَانَ، صَارَ، اَصْبَحَ، اَمْسٰى، اَضْحٰى، ظَلَّ، بَاتَ".

۳. دريم قسم هغه دي چي دوی متصرف ناقصه واقع کيږي يعني د دوی څخه صرف ماضي، او مضارع راځي نه بل څوک، هغه څلور دانې دي، "مَازَالَ، مَاانْفَكَ، مَافَتِئَ، مَابَرِحَ".

## دوهمه خبره:

د افعال ناقصه معناګاني:

"كَانَ" (۱):

د "كَانَ" معنٰى (وو) بيا "كَانَ" پر درې قسمه راځي: ناقصه، تامه، زائده.

۱. "كَانَ" ناقصه: چي دی دلالت کوي پر ثبوت د خبر دپاره د اسم په زمانه ماضي کي او ثبوت د خبر کله دائمي (۲) وي لکه: "وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيمًا حَكِيمًا" او کله وختي (يعني غير دائمي) وي لکه: "كَانَ زَيْدٌ قَائِمًا".

---

۳. دريم قسم: "لَيْسَ" دئ په "لَيْسَ" کي اختلاف دئ عند الاكثر خبر يې پر اسم نسي مقدم کېدای او داغه رنګه "لَيْسَ" حرف نفي هم راځي او جامد هم راځي صرف ماضي يې مستعمله ده.

(۱) کله کله اسم د "كَانَ" پټ وي او خبر يې هم حذف سوی وي لکه: "هَلْ اَصْبَحَ الرَّاكِبُ مُسَافِرًا" په جواب کي يې صرف "اَصْبَحَ" راځي "اَیْ اَصْبَحَ هُوَ مُسَافِرًا". (جامع الدروس العربية جلد ۲ صفحه ۱۹۵)

او د "كَانَ" خبر په دوو صورتو کي فعل ماضي راځي:

۱. اول صورت: کله چي د "كَانَ" د خبر په شروع کي "قَدْ" راغلی وي لکه: "كَانَ زَيْدٌ قَدْ جَلَسَ".

۲. دوهم صورت: کله چي د "كَانَ" څخه مخکي حرف شرط راغلی وي لکه: "وَاِنْ كَانَ قَمِيصُهُ قُدَّ مِنْ دُبُرٍ" کله کله "كَانَ" په لفظو کي حذف کيږي او د ده عمل باقي پاته کيږي لکه: "اِنْ خَيْرًا فَخَيْرٌ" په اصل کي "اِنْ كَانَ عَمَلُهُ خَيْرًا فَجَزَائُهُ خَيْرٌ".

(۲) يعني خبر يې د اسم څخه نسي جلا کېدای او کله غير دائمي وي يعني خبر يې د اسم څخه جلا کېدای سي.

۲. "كَانَ" تامه (۱) چي صرف په اسم سره پوره كيږي خبر ته ضرورت نه لري او بيا دى په دې وخت كي په معنى د "وَجَدَ، حَصَلَ، ثَبَتَ" سره راځي لكه: "قَدْ كَانَ مَطَرٌ اَىْ وَجَدَ، حَصَلَ، مَطَرٌ" "وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ".

۳. "كَانَ" زائده (۲) هغه دئ چي دى غير عامل وي او معنى زائده هم نه ور كوي صرف د تحسين كلام دپاره راځي لكه: "قَالُوا كَيْفَ نُكَلِّمُ مَنْ كَانَ فِي الْمَهْدِ صَبِيًّا". "اِنَّ مِنْ اَفْضَلِهِمْ كَانَ زَيْدٌ".

"صَارَ":

"صَارَ" معنى (سو) لكه: "صَارَ زَيْدٌ غَنِيًّا" زيد غني سو.

"ظَلَّ":

---

(۱) كله كله دغه افعال ناقصه تامه راځي خبر ته ضرورت نه لري كه چيري "كَانَ" په معنى د "حَصَلَ" سره سي "اَمْسٰى" په معنى د "دَخَلَ فِي الْمَسَاءِ" سي او "اَصْبَحَ" په معنى د "دَخَلَ فِي الصَّبَاحِ" سي "اَضْحٰى" په معنى د "دَخَلَ فِي الضُّحٰى" سي "ظَلَّ" په معنى د "دَامَ" او "اِسْتَمَرَّ" سي او "بَاتَ" په معنى د "نَزَلَ لَيْلًا" يا "اَدْرَكَهُ اللَّيْلُ" يا "دَخَلَ مَبِيْتَهُ" سره سي "صَارَ" په معنى د "اِنْتَقَلَ" سره سي، يا د "ضَمَّ اَمَالَ"، يا د "قَطَعَ" و "فَصَلَ" سره سي، "دَامَ" په معنى د "اَبْقٰى اِسْتَمَرَّ" سره سي "اَنْفَكَّ" په معنى د "اِنْفَصَلَ. اِنْحَلَّ" سره سي "بَرِحَ" په معنى د "ذَهَبَ" سره سي يا د "فَارَقَ" نو په دې ټولو صورتو كي دغه افعال تامه جوړيږي صرف په فاعل سره پوره كيږي خبر ته ضرورت نه لري لكه: "إِنَّمَا أَمْرُهُ إِذَا أَرَادَ شَيْئًا أَنْ يَقُولَ لَهُ كُنْ فَيَكُونُ،. وَإِنْ كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَى مَيْسَرَةٍ،. خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ،. أَرْبَعَةً مِنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ،. فَسُبْحَانَ اللَّهِ حِينَ تُمْسُونَ وَحِينَ تُصْبِحُونَ". (جامع الدروس العربية)

(۲) "كَانَ" زائده تقريبًا په اوو (۷) ځايو كي راځي:

۱. اول ځاى: د مبتداء او خبر په مينځ كي لكه: "زَيْدٌ كَانَ قَائِمٌ".
۲. دوهم ځاى: په مينځ د موصوف او صفت كي لكه: "رَجُلٌ كَانَ عَالِمٌ".
۳. دريم ځاى: په مينځ د فعل او فاعل كي لكه: "ضَرَبَ كَانَ زَيْدٌ".
۴. ځلورم ځاى: په مينځ د معطوف او معطوف عليه كي لكه: "جَاءَ زَيْدٌ كَانَ وَ عَمْرٌو".
۵. پنځم ځاى: په مينځ د "مَا" او فعل تعجب كي لكه: "مَاكَانَ اَحْسَنَهُ".
٦. شپږم ځاى: په مينځ د "بِئْسَ" او د ده د فاعل كي لكه: "بِئْسَ كَانَ زَيْدٌ".
۷. اووم ځاى: په مينځ كي د "نِعْمَ" او د ده د فعل كي لكه: "نِعْمَ كَانَ زَيْدٌ". (شرح اشموني)

"ظَلَّ" معنٰی (ټوله ورځ وه) لکه: "ظَلَّ زَيْدٌ سَائِرًا" (زيد ټوله ورځ ګرځېدئ) او دی کله کله په معنٰی د "صَارَ" سره هم راځي.

"بَاتَ":

د "بَاتَ" معنٰی (ټوله شپه بيده وه) يا د (شپې په وخت کي سو) لکه: "بَاتَ زَيْدٌ فَقِيْرًا" (زيد د فقيری په حالت کي شپه تېره کړه، يا د شپې فقير سو مال يې هلاک سو).

"اَصْبَحَ":

"اَصْبَحَ" معنٰی (د سهار په وخت کي سو) لکه: "اَصْبَحَ زَيْدٌ قَائِمًا" (زيد د سهار په وخت کي ولاړ سو او دی هم کله په معنٰی د "صَارَ" سره راځي).

"اَمْسٰی":

د "اَمْسٰی" معنٰی (د ماښام په وخت کي سو) لکه: "اَمْسٰی زَيْدٌ عَالِمًا" (زيد د ماښام په وخت کي عالم سو) او کله په معنٰی د "صَارَ" سره هم راځي.

"اَضْحٰی":

د "اَضْحٰی" معنٰی (د څاښت په وخت کي سو) لکه: "اَضْحٰی زَيْدٌ طَالِبًا" (زيد د څاښت په وخت کي طالب سو).

"لَيْسَ":

"لَيْسَ" د نفي حالي دپاره راځي لکه: "لَيْسَ زَيْدٌ قَائِمًا" (زيد اوس نه دئ ولاړ) لېکن که چيري د "اَمْسِ" يا د "غَدًا" قيد ور سره وو بيا دی د ماضي او استقبال معنٰی هم ور کوي لکه: "لَيْسَ زَيْدٌ مَأمُوْرًا بِالْاَمْسِ، يَا غَدًا".

"مَازَالَ، مَاانْفَکَّ، مَابَرِحَ، مَافَتِیَٔ" دا ټوله په معنٰی د جلاکېدو او زائلېدو سره راځي يعني په دوی کي د نفي معنٰی موجوده ده بيا د دوی په شروع کي مانافيه سته نو د دوی معنٰی هم د نفي ده او د ما نافيه معنٰی هم د نفي ده نو نفي چي پر نفي داخلي سي اثبات فائده کوي نو اوس د دوی معنٰی ده (همېشه وو) لکه: "مَازَالَ زَيْدٌ غَنِيًّا" (زيد د همېشه څخه غني وو) چي د کم وخت څخه اسم خبر قبول کړی وي د هغه وخته څخه خبر د اسم دپاره د همېشه څخه ثابت وي.

"مَادَامَ":

د "مَادَامَ" معنٰی (چي تر څو پوري وي) لکه: "اِجْلِسْ مَادَامَ زَیْدٌ جَالِسًا" (ته کښېنه چي تر څو پوري زید ناست وي) او "وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا" (تر څو چي زه ژوندی یم).

"عَادَ، آضَ، غَدَا، رَاحَ" دا ټول په معنٰی د "صَارَ" سره دي لکه: "عَادَ زَیْدٌ غَنِیًّا" (زید مالداره سو).

## دریمه خبره:

**افعال مقاربه:**

**دوهم قسم د افعال قاصره څخه افعال مقاربه دي:**

**د افعال مقاربه تعریف:**

افعال مقاربه هغه افعال دي چي دوی د دې خبري ښکاره کولو دپاره وضع سوي وي چي د خبر حصول فاعل لره قریب وي یعني د یو فعل قریب والی ښکاره کوي لکه: "كَادَ زَیْدٌ اَنْ یَأْکُلَ الدَّجَاجَةَ" (قریبه ده چي زید به چرګه وخوري).

**د افعال مقاربه اقسام په اعتبار د معنٰی سره:**

**افعال مقاربه په اعتبار د معنٰی سره پر درې قسمه دي:**

۱. اول قسم: هغه دي چي دلالت کوي پر قرب [۱] د خبر هغه درې دانې دي: "كَادَ، كَرُبَ، أَوْشَكَ".

---

[۱] د فعل قریب والی په درې شکلو سره راځي:

۱. اول شکل: قربت په اعتبار د امید سره وي لکه: "عَسٰی زَیْدٌ اَنْ یَخْرُجَ" امید دئ چي زید وتلو ته نژدې دئ.

۲. دوهم شکل: قربت په اعتبار د حصول سره وي لکه: "كَادَ زَیْدٌ اَنْ یَخْرُجَ" زید یقینا وتلو ته قریب دئ.

۳. دریم شکل: قربت په اعتبار د شروع سره وي لکه: "كَرُبَ زَیْدٌ اَنْ یَخْرُجَ" زید یقینا وتل شروع کړل، دغه افعال درې سره په معنی د "قَرُبَ" سره راځي "أَوْشَكَ" په معنی د "أَسْرَعَ" سره راځي "طَفِقَ، جَعَلَ، اَخَذَ" دا درې سره د شروع په معنی سره راځي: د "كَادَ" مثال لکه: "كَادَ الْمَطَرُ یَهْطِلُ، أَوْشَكَ الْوَقْتُ اَنْ یَنْتَهِيَ، كَرُبَ الصُّبْحُ اَنْ یَنْبَلِجَ". (نصر الخبیر و شرح التصریح)

۲. دوهم قسم: "افعال الرجاء" چي دلالت کوي پر امید د وقوع د خبر یعني متکلم ته د خبر د حصول توقع او امید وي نه یقین هغه هم درې دانې دي: "عَسٰی، حَرٰی، اِخْلَوْلَقَ" او دوی د انشاء د قبیل څخه دي باقي د اخبار د قبیل څخه دي.

۳. دریم قسم: "افعال الشروع" چي دلالت کوي پر شروع في العمل باندي.

او په دوی کي د حصول د خبر یقین وي لېکن متکلم دا ښکاره کول غواړي چي فاعل د تحصیل خبر دپاره کوشش شروع کړي دي د دې دپاره څلور افعال دي: "اَخَذَ، طَفِقَ، جَعَلَ، عَلَقَ" او هغه افعال چي د دوی په معنٰی سره راځي هغه لکه: "اَنْشَاَ، هَبَّ، بَدَاَ، اِبْتَدَاَ، قَامَ، اِنْبَرَیٰ".

## څلورمه خبره:

د افعال مقاربه (۱) د خبر (۲) اقسام په اعتبار د اقتران د "اَنْ" او عدم اقتران د "اَنْ" سره پر څلور قسمه دي:

۱. اول قسم: چي پر خبر باندي یې "اَنْ" راوړل واجب وي هغه دوه دانې دي: "حَرٰی، اِخْلَوْلَقَ".

۲. دوهم قسم: چي پر خبر باندي یې "اَنْ" راوړل غالبه وي هغه هم دوه دي: "عَسٰی، اَوْشَکَ".

---

(۱) دا ټوله افعال جامد او غیر متصرف دي صرف ماضي یې استعمالیږي لېکن د "اَوْشَکَ" او د "کَادَ" مضارع هم مستعمله ده لکه: "یَکَادُ زَیْتُهَا یُضِيءُ.. یُوْشِکُ اَنْ یَّاْتِیَنِي رَسُوْلُ رَبِّيْ".

(۲) په خبر د "کَادَ" او اخواتو کي درې شرطونه دي:

اول شرط: چي د ده خبر به فعل مضارع وي خواه که مقترنه په "اَنْ" سره وي لکه: "اَوْشَکَ النَّهَارُ اَنْ یَنْقَضِيَ" یا بغیر "اَنْ" وي لکه: "کَادَ اللَّیْلُ یَنْقَضِيْ" "لَا یَکَادُوْنَ یَفْقَهُوْنَ قَوْلًا.. وَطَفِقَا یَخْصِفَانِ عَلَیْهِمَا مِنْ وَرَقِ الْجَنَّةِ" او د دوی خبر ماضي او جمله اسمیه نسي واقع کېدای.

دوهم شرط: چي د دوی خبر به تر دوی وروسته وي.

دریم شرط: چي په خبر د "حَرٰی" او "اِخْلَوْلَقَ" کي دا دئ چي مقترن به په "اَنْ" سره وي. (المقاصد النحویة و جامع الدروس العربیة)

۳. دريم قسم: چي پر خبر باندي يې "اَنْ" نه راوړل واجب وي هغه څلور ذي: "اَخَذَ، طَفِقَ، جَعَلَ، عَلَقَ".

۴. څلورم قسم: چي پر خبر باندي يې "اَنْ" نه راوړل غالبه وي هغه دوه دانې دي: "كَادَ، كَرُبَ".

**د افعال مقاربه عمل:**

افعال مقاربه د افعال ناقصه په شان پر جمله اسميه باندي داخليږي اسم ته رفع او خبر ته نصب ور كوي.

**د افعال مقاربه تراكيب:**

په افعال مقاربه كي درې تركيبونه كيږي:

۱. اول تركيب: "عَسٰى اَنْ يَخْرُجَ زَيْدٌ" "عَسٰى" فعل مقارب "اَنْ يَخْرُجَ زَيْدٌ" جمله بتاويل مصدر سره فاعل دپاره د "عَسٰى" دئ "عَسٰى" سره د خپل فاعله جمله فعليه خبريه ده.

۲. دوهم تركيب: "عَسٰى" فعل مقارب "اَنْ يَخْرُجَ" فعل "هُوَ" ضمير مستتر يې فاعل دئ فعل سره د خپل فاعله په تاويل د مصدر سره خبر مقدم "زَيْدٌ" اسم مؤخر "عَسٰى" سره د اسم وخبره جمله انشائيه فعليه ده.

۳. دريم تركيب: "عَسٰى" فعل مقارب "هُوَ" ضمير مستتر په فعل مقارب كي هغه يې اسم دئ "اَنْ" مصدريه "يَخْرُجَ" فعل "زَيْدٌ" يې فاعل فعل سره د خپل فاعله په تاويل د مصدر سره منصوب محلا خبر دپاره د "عَسٰى" دئ "عَسٰى" سره د اسم وخبره جمله فعليه انشائيه ده. او مشهوره دريم تركيب دئ.

**فائده:**

كله كله په "عَسٰى" پوري ضمير متصل سي لكه: "عَسَاكَ" نو بيا د ده په تركيب كي اختلاف دئ د امام سبويه په نزد باندي "عَسٰى" فعل نه دئ بلكه حرف دئ د "لَعَلَّ" په شان دئ ناصب اسم رافع خبر دئ د امام مبرد په نزد باندي "عَسٰى" فعل دئ ليكن و اسم ته يې د خبر او خبر ته يې د اسم اعراب ور كړی دئ.

## پنځمه خبره:

افعال مدح و ذم (۱):

مصنف رحمه الله شروع و کړه په هغه افعال باندي چي هغه د انشاء خاص دپاره وضع سوي دي بعض خاص د انشاء د مدح دپاره وي بعض خاص د انشاء د ذم دپاره وي.

د افعال مدح و ذم تعريف:

افعال مدح و ذم هغه افعال دي چي دوی د انشاء د مدح يا د ذم دپاره وضع سوی وي يعني په دوی سره تعريف يا بدوالی بيانيږي لکه: "نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ، بِئْسَ الْمِهَادُ جَهَنَّمُ".

د مخصوص بالمدح تعريف:

مخصوص بالمدح هغه اسم دئ چي د ده مدح بيانول مقصود وي او دی تر فعل مدح وروسته واقع سوی وي لکه: "زَيْدٌ" په "نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ" کي.

د مخصوص بالذم تعريف:

مخصوص بالذم هغه اسم دئ چي د ده ذم بيانول مقصود وي او دی تر فعل ذم وروسته واقع سوی وي لکه: "زَيْدٌ" په "بِئْسَ الرَّجُلُ زَيْدٌ" کي.

د افعال مدح و ذم تعداد:

افعال مدح و ذم څلور دانې دي دوه د مدح دپاره دي: "نِعْمَ، حَبَّذَا" دوه د ذم دپاره دي: "بِئْسَ، سَاءَ".

د افعال مدح و ذم عمل:

دغه افعال و خپل مابعد ته بناء بر فاعليت رفع ور کوي او در فاعل وروسته چي کم اسم راځي او د هغه مدح يا ذم بيانول مقصود وي نو هغه ته مخصوص بالمدح يا مخصوص (۲) بالذم ويل کيږي.

---

(۱) دا څلور سره افعال غير متصرف دي د دوی صرف ماضي معلوم مستعمله ده او دوی د مصدريت د معنی څخه او داغه رنګه د زمانه څخه خالي وي د انشاء په معنی کي استعماليږي چونکه دوی غير متصرف جامد دئ نو ځکه پر دوی باندي حرف جر داخلېدای سي لکه: "نِعْمَ السَّيْرُ عَلَى بِئْسَ الْعَيْرِ" په تاويل سره د "نِعْمَ السَّيْرُ عَلَى عَيْرٍ مَقُوْلٍ فِي حَقِّهِ بِئْسَ الْعَيْرُ".

(۲) مخصوص بالمدح او مخصوص بالذم کله کله د قرينه په وجه حذف کيږي لکه: "نِعْمَ النَّصِيْرُ اَیْ اَللّٰهُ" يا "هُوَ" دلته محذوف دئ چه مخصوص بالمدح دئ. داغه رنګه "نِعْمَ الثَّوَابُ اَیْ اَلْجَنَّةُ" مخصوص بالمدح محذوف دئ. "نِعْمَ الْعَبْدُ اَیْ اَيُّوْبُ" مخصوص بالمدح محذوف دئ او کله کله مخصوص بالمدح يا مخصوص بالذم مقدم کيږي هم لکه: "اَبُوْبَكْرٍ نِعْمَ الرَّجُلُ".

د افعال مدح و ذم د استعمال شرائط:

د افعال مدح و ذم د استعمال دپاره څلور شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: د دوی فاعل به معرف باللام وي لکه: "نِعْمَ الْعَبْدُ، نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ".

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چي یا به و معرف باللام ته مضاف وي لکه: "نِعْمَ صَاحِبُ الْقَوْمِ ..فَلَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِينَ.

۳. دریم شرط یې دا دئ: یا به د ده فاعل ضمیر مستتر وي چي تمیز یې نکره راغلی وي لکه: "نِعْمَ رَجُلًا زَيْدٌ، بِئْسَ لِلظَّالِمِينَ بَدَلًا".

۴. څلورم شرط یې دا دئ: یا به د ده فاعل لفظ د "مَا" په معنٰی د "اَلشَّيْءُ" سره وي او فاعل د "نِعْمَ" وئ لکه: "فَنِعِمَّا هِيَ".

**شپږمه خبره:**

"حَبَّذَا" د دې شرائطو څخه مستثنی دئ ځکه د هغه فاعل همېشه "ذَا" وي.

د "حَبَّذَا" ترکیب:

"حَبَّ" فعل مدح "ذَا" یې فاعل دئ "زَيْدٌ" مخصوص بالمدح دئ جمله انشائیه ده.

د افعال مدح و ذم ترکیب په اعتبار د الف لام د "اَلرَّجُلُ" سره:

که چیري په "نِعْمَ الرَّجُلُ زَيْدٌ" کي د "اَلرَّجُلُ" الف لام د عهد خارجي دپاره سي او د "اَلرَّجُلُ" څخه مراد معین "زَيْدٌ" سي نو بیا یې دا ترکیب متعین دئ "نِعْمَ" فعل مدح "اَلرَّجُلُ" فاعل فعل سره د خپل فاعله خبر مقدم "زَيْدٌ" مخصوص بالمدح مبتداء مؤخره جمله انشائیه ټوله به یوه جمله سي لیکن که چیري د "اَلرَّجُلُ":

۱. الف لام د استغراق دپاره سي او ټولو لره شامل سي.

---

ضابطه: هر فعل ثلاثي چي د تعجب صلاحیت لري او د ده استعمال پر وزن د "فَعُلَ" یا اصالةً جائز وي لکه: "كَرُمَ، لَؤُمَ" یا تحویلا جائز وي لکه: "ضَرَبَ فَهِمَ" څخه "ضَرُبَ فَهُمَ" ویل نو دوی د مدح و ذم د معنی حاصلولو دپاره دوی د فعل مدح و ذم قائمقامه جوړېدای سي لکه: "كَرُمَ الْفَتَى زُهَيْرٌ، لَؤُمَ الْخَائِنُ فُلَانٌ، خَبُثَ الرَّجُلُ زَيْدٌ". (جامع الدروس العربية جلد ۱ صفحه ۶۷)

۲. یا لام د جنس سي لېکن په خارج کي مصداق فرد واحد سي.
۳. یا الف لام د عهد ذهني دپاره سي او د ابهام تعین یې په مخصوص بالمدح یا مخصوص بالذم سره وسي نو بیا یې یو ترکیب هغه دئ چي مخکي تېر سو.

دوهم ترکیب: "نِعْمَ" فعل مدح "اَلرَّجُلُ" فعل و فاعل جلا جمله انشائیه "زَیْدٌ" خبر دئ د مبتداء محذوفي دپاره چي "هُوَ" دئ دا جلا جمله ده.

دریم ترکیب: "نِعْمَ" فعل مدح "اَلرَّجُلُ" مبین "زَیْدٌ" عطف بیان مبین سره د خپل عطف بیان دا به فاعل د "نِعْمَ" سي جمله فعلیه انشائیه.

څلورم ترکیب: "نِعْمَ الرَّجُلُ" فعل و فاعل جمله انشائیه "زَیْدٌ" ممدوح مبتداء ده خبر یې محذوف دئ دا جلا جمله ده.

په دې ټولو کي اول ترکیب مشهور دئ.

## اوومه خبره:

افعال تعجب:

د فعل تعجب تعریف:

فعل تعجب هغه فعل دئ چي د انشاء تعجب دپاره وضع سوی وي لکه: "مَا اَحْسَنَهُ وَ اَحْسِنْ بِهِ".

## فائده:

که څه هم د تعجب د معنی دپاره ډېري کلمې استعمالیږي لکه: "کَیْفَ تَکْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَکُنْتُمْ أَمْوَاتًا، سُبْحَانَ اللّٰهِ اِنَّ الْمُؤْمِنَ لَا یَنْجُسُ حَیًّا وَ مَیِّتًا، وَلِلّٰهِ دَرُّهٗ فَارِسًا". لېکن د ثلاثي مجرد څخه د تعجب دپاره دوې صیغې وضع سوي دي هغه "مَا اَفْعَلَهُ وَ اَفْعِلْ بِهِ" دي. په دې شرط چي د لون او د عیب د معنی څخه به خالي وي ځکه فعل تعجب د غیر ثلاثي مجرد او د ثلاثي مجرد د لون او د عیب څخه په دې طریقه راځي چي د صیغه په شروع کي به د "اَشَدُّ" یا د "اَکْثَرُ" یا د "اَقْوٰی" لفظ یا د دې په شان بله د اسم تفضیل صیغه په شروع کي راوړل سي او وروسته به د داغه باب مصدر بطور تمیز راوړل سي لکه: "مَا اَشَدَّ سِوَادَ عَیْنِهِ مَا اَشَدَّ اِیْمَانَهٗ".

د فعل تعجب د دا دوو صیغو شرائط:

د فعل تعجب د دا دوو صیغو دپاره نه (۹) شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چې دوی به فعل وي.

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چې ثلاثي مجرد به وي.

۳. دریم شرط یې دا دئ: چې متصرف به وي.

۴. څلورم شرط یې دا دئ: چې معنیٰ به یې قابله د تفاضل وي.

۵. پنځم شرط یې دا دئ: مبني للمفعول به نه وي.

۶. شپږم شرط یې دا دئ: تام به وي.

۷. اووم شرط یې دا دئ: مثبت به وي.

۸. اتم شرط یې دا دئ: چې صفت به یې پر وزن د "اَفْعَلُ" او د "فَعْلَاءُ" نه وي.

۹. نهم شرط یې دا دئ: چې د لون او د عیب د معنیٰ څخه به خالي وي.

د "مَا اَفْعَلَهُ" [1] ترکیب:

په "مَا" کې اتفاق دئ چې اسم دئ مبتداء لیکن د امام سبویه په نزد باندې "مَا" موصوفه په معنیٰ د "شَيْئٌ" سره نکره تامه مبتداء ده "اَيُّ شَيْئٍ عَظِيْمٍ اَفْعَلَ زَيْدًا". یعني د تنوین عظیم په وجه په دې کې تخصیص راغلی دئ "اَحْسَنَ زَيْدًا" فعل او فاعل او مفعول خبر د "مَا" دپاره دئ.

او د امام فراء په نزد باندې "مَا" استفهامیه په معنیٰ د "اَيُّ شَيْئٍ" سره دئ.

"اَيُّ شَيْئٍ اَفْعَلَ زَيْدًا":

او د امام اخفش په نزد باندې "مَا" موصوله دئ په معنیٰ د "اَلَّذِيْ" سره "اَيُّ اَلَّذِيْ اَفْعَلَ زَيْدًا" "شَيْئٌ عَظِيْمٌ" یې خبر محذوف دئ.

د "اَفْعِلْ بِهٖ" [1] ترکیب:

---

[1] د "مَا اَفْعَلَهُ" متصل متعجب منه به منصوب بنا بر مفعولیت وي لکه: "مَا اَحْسَنَ زَيْدًا" او په "اَفْعَلُ" کې اختلاف دئ د امام کسائي او بصریین په نزد باندې دی فعل دئ ځکه کله چې د ده په آخر کې یاء د متکلم راسي نو بیا نون وقایه راوړل کیږي لکه: "مَا اَفْقَرَنِيْ اِلَى رَحْمَةِ اللهِ" او د کوفیین په نزد باندې "اَفْعَلُ" اسم دئ ځکه د ده څخه تصغیر هم راځي لکه: "مَا اُحَيْسِنَهُ". (تنویر)

د "اَفۡعِلۡ بِهٖ" تقدیر "اَحۡسِنۡ بِزَیۡدٍ اَیۡ صَارَ ذَا حُسۡنٍ" "اَحۡسِنۡ" صیغه د امر په معنٰی د "اَحۡسَنَ" فعل ماضي سره "بَا" زائده "زَیۡدٌ" فاعل د "اَحۡسَنَ" دئ فعل سره د خپل فاعله جمله انشائیه مُفَسَّرۡ "اَیۡ" حرف تفسیر "صَارَ" فعل ناقص "هُوَ" ضمیر مستتر اسم د "صَارَ" "ذَا حُسۡنٍ" مضاف و مضاف الیه خبر د "صَارَ" "صَارَ" سره د اسمِ و خبره مُفَسِّرۡ، مُفَسَّرۡ سره د مُفَسِّره جمله تفسیریه.

## جملې:

| عنوان | خبریه و انشائیه مع الاقسام | مسند | مسند الیه | معرب | مبني | بالحرکت و بالحرف | لفظي و تقدیري | تمیی و غیر تمیی | تعیین منصوبات | اعراب المضارع | افعال ناقصه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| كُنۡتُمۡ خَیۡرَ اُمَّةٍ اُخۡرِجَتۡ لِلنَّاسِ | خبریه فعلیه | خَیۡرَ اُمَّةٍ | تُمۡ | ۳. معرب | ۵. مبني | بالحرکت (۱) قسم | لفظي | تمیی و غیر تمیی | خَیۡرَ اُمَّةٍ | + | (كُنۡ) فعل ناقص |
| یَكَادُ زَیۡتُهَا یُضِیۡءُ | خبریه فعلیه | یُضِیۡءُ | زَیۡتُهَا | ۳. معرب | ۲. مبني | بالحرکت (۱) قسم | لفظي | غیر تمیی | (یُضِیۡءُ) کلا خبر | ۲. حالت رفعي (۱) قسم | (یَكَادُ) فعل مقارب |
| نِعۡمَ الثَّوَابُ وَحَسُنَتۡ مُرۡتَفَقًا | خبریه فعلیه | نِعۡمَ حَسُنَتۡ | الثَّوَابُ هِيَ | ۲. معرب | ۵. مبني | بالحرکت (۱) قسم | لفظي | غیر تمیی | (مُرۡتَفَقًا) تمیز | + | (نِعۡمَ) فعل مدح |
| فَمَا اَصۡبَرَهُمۡ عَلَی النَّارِ | انشائیه فعلیه | اَصۡبَرَهُمۡ | مَا | ۱. معرب | ۶. مبني | بالحرکت (۱) قسم | لفظي | غیر تمیی | (هُمۡ) مفعول به | + | (مَا اَصۡبَرَ) فعل تعجب |
| بِئۡسَ الشَّرَابُ وَسَاءَتۡ مُرۡتَفَقًا | خبریه فعلیه | بِئۡسَ سَاءَتۡ | الشَّرَابُ هِيَ | ۲. معرب | ۵. مبني | بالحرکت (۱) قسم | لفظي | غیر تمیی | (مُرۡتَفَقًا) تمیز | + | (بِئۡسَ، سَاءَ) افعال ذم |
| لَا یَسۡخَرۡ قَوۡمٌ مِنۡ قَوۡمٍ عَسٰی اَنۡ یَكُوۡنُوۡا خَیۡرًا مِنۡهُمۡ | انشائیه فعلیه | لَا یَسۡخَرۡ | قَوۡمٌ | ۵. معرب | ۸. مبني | بالحرکت (۱) قسم | لفظي | غیر تمیی | (خَیۡرًا) خبر (كَانَ) | (یَسۡخَرۡ) حالت جزمي (۱) قسم (یَكُوۡنُوۡا) حالت نصبي (۳) قسم | (عَسٰی) تامه، (یکونوا) فعل ناقص |
| وَلَا یَزَالُوۡنَ مُخۡتَلِفِیۡنَ | خبریه فعلیه | مُخۡتَلِفِیۡنَ | هُمۡ | ۲. معرب | ۳. مبني | بالحرف (۱۰) قسم | لفظي | تمیی و غیر تمیی | (مُخۡتَلِفِیۡنَ) خبر فعل ناقص | (یَزَالُوۡنَ) حالت رفعي (۳) قسم | (یَزَالُوۡنَ) فعل ناقص |

(۱) د "اَفۡعِلۡ بِهٖ" متصل متعجب منه لفظا مجروره وي په باء زائده سره لیکن محلا مرفوع دئ او "اَفۡعِلۡ بِهٖ" بالاتفاق فعل دئ او دی به همیشه واحد راځي. د بصرین په نزد باندي "اَفۡعِلۡ بِهٖ" فعل امر دئ لیکن معنٰی خبر دئ ځکه د دهٔ اصل فعل ماضي ده چي د "اَفۡعَلَ" پر وزن راځي بیا د تغیر په وجه فعل امر ځني جوړ سوی دئ بیا چونکه د امر نسبت وه اسم ظاهر ته قبیح وو نو ځکه یې د ده پر فاعل باندي باء زائده وجوبا راوړه چي د مفعول به شکل پیدا سي لکه: په "وَلَا تُلۡقُوۡا بِاَیۡدِیۡكُمۡ اِلَی التَّهۡلُكَةِ" کي لیکن اسم ظاهر فاعل دئ مفعول به نه دئ او کله کله د ده متعجب منه حذف کیږي لکه: "اَسۡمِعۡ بِهِمۡ وَاَبۡصِرۡ"، او چونکه فعل تعجب غیر متصرف دئ نو ځکه د ده معمول پر ده باندي نسي مقدم کېدای او داغه رنګه د دوی په مینځ کي فصل هم نا جائز دئ بغیر د ظرف وجار و مجرور څخه په ظرف و جار و مجرور سره فصل راتلای سي. (شرح عمدة الحافظ و جامع الدروس العربیة)

| عنوان | خبریه انشائیه مع الاقسام | مسند | مسند الیه | معرب | مبنی | بالحرکت یا بالحرف | لفظی یا تقدیری | تمیمی وغیر تمیمی | تعیین منصوبات | اعراب المضارع | افعال قاصره |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَقَدْ نَادَانَا نُوحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيبُونَ | خبریه فعلیه | نَادَای | نُوحٌ | ۰۲ معرب | ۰۹ مبنی | بالحرکت (۱) قسم بالحرف (۱۰) قسم | لفظی | تمیمی وغیر تمیمی | "نَا" مفعول به مقدم | + | (نِعْمَ) فعل مدح |
| فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا | خبریه فعلیه | إِخْوَاناً | تُمْ | ۰۲ معرب | ۰۵ مبنی | بالحرکت (۱۰) قسم | لفظی | غیر تمیمی | (إِخْوَانًا) خبر فعل ناقص | + | (أَصْبَحَ) فعل ناقص |
| وَالَّذِينَ يَبِيتُونَ لِرَبِّهِمْ سُجَّدًا وَقِيَامًا | خبریه فعلیه | سُجَّدًا وَقِيَامًا | هُمْ | ۰۴ معرب | ۰۶ مبنی | بالحرکت (۱) قسم | لفظی | غیر تمیمی | (سُجَّدًا وَقِيَامًا) خبر فعل ناقص | (يَبِيتُونَ) حالت رفعی (۳) قسم | (يَبِيتُونَ) فعل ناقص |
| وَغَدَوْا عَلَى حَرْدٍ قَادِرِينَ | خبریه فعلیه | قَادِرِينَ | هُمْ | ۰۲ معرب | ۰۵ مبنی | بالحرکت (۱) قسم وبالحرف (۱۰) قسم | لفظی | تمیمی وغیر تمیمی | (قَادِرِينَ) خبر فعل ناقص | + | (غَدَوْا) فعل ناقص |
| وَكَانَ الْكَافِرُ عَلَى رَبِّهِ ظَهِيرًا | خبریه فعلیه | ظَهِيرًا | اَلْكَافِرُ | ۰۳ معرب | ۰۶ مبنی | بالحرکت (۱) قسم | لفظی | غیر تمیمی | (ظَهِيرًا) خبر (كَانَ) | + | (كَانَ) فعل ناقص |

## التمرين:

"إِنْ كَادَ لَيُضِلُّنَا عَنْ آلِهَتِنَا،، عَسَى أَنْ يَكُونَ مِنَ الْمُفْلِحِينَ،، أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ،، وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ قَدَرًا مَقْدُورًا،، تَاللّٰهِ إِنْ كِدْتَ لَتُرْدِينِ،، وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلَى خَائِنَةٍ،، وَأَوْصَانِي بِالصَّلَاةِ وَالزَّكَاةِ مَا دُمْتُ حَيًّا،، مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ،، فَنِعْمَ عُقْبَى الدَّارِ".

باب سوم در عمل اسماء عاملہ وآں یازدہ قسم است الخ:............................. الی قولہ قسم ششم صفت مشبہ.

## ترجمه:

دريم باب د اسماء عامله په عمل كي دئ او هغه اسماء يوولس (۱۱) قسمه دي: اول اسماء شرطيه چي د "إِنْ" په معنىٰ سره دئ هغه نه (۹) داني دي: "مَنْ، مَا، اَيْنَ، مَتٰى، اَيٌّ، اَنّٰى، اِذْمَا، حَيْثُمَا، مَهْمَا" فعل مضارع ته جزم ور كوي لكه: "مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ. مَا تَفْعَلْ اَفْعَلْ. اَيْنَ تَجْلِسْ اَجْلِسْ، مَتٰى تَقُمْ اَقُمْ. اَيُّ شَيْئٍ تَأْكُلْ آكُلْ. اَنّٰى تَكْتُبْ اَكْتُبْ. اِذْمَا تُسَافِرْ اُسَافِرْ حَيْثُمَا تَقْصُدْ اَقْصُدْ مَهْمَا تَقْعُدْ اَقْعُدْ" دوهم اسماء افعال چي د فعل ماضي په معنىٰ سره راځي لكه: "هَيْهَاتَ، شَتَّانَ، اَوْ سَرْعَانَ" و اسم ته بناء بر فاعليت رفع ور كوي لكه "هَيْهَاتَ يَوْمُ الْعِيْدِ اَىْ بَعُدَ". دريم اسماء افعال په معنىٰ د امر حاضر سره لكه: "رُوَيْدَ، بَلْهَ، حَيْهَلْ، عَلَيْكَ، دُوْنَكَ" او "هَا" دا ټوله اسم ظاهر ته نصب ور كوي بنا بر مفعوليت لكه:

"رُوَيْدَ زَيْدًا اَیْ اَمْهِلْهُ". څلورم اسم فاعل چي د حال يا استقبال په معنٰی سره وي د فعل معروف په شان عمل كوي په دې شرط چي اعتماد به يې پر داسي لفظ كړی وي چي د ده څخه مخكي به وي هغه لفظ به يا مبتداء وي په فعل لازم كي لكه: "زَيْدٌ قَائِمٌ اَبُوْهُ" او په فعل متعدي لكه: "زَيْدٌ ضَارِبٌ عَمْرًا" يا به موصوف وي لكه: "مَرَرْتُ بِرَجُلٍ ضَارِبٍ اَبُوْهُ بَكْرًا" يا موصول وي لكه: "جَائَنِي الْقَائِمُ اَبُوْهُ او جَائَنِي الضَّارِبُ اَبُوْهُ عَمْرًوا" يا به ذوالحال وي لكه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ رَاكِبًا غُلَامُهُ فَرَسًا" يا به همزه استفهام وي لكه: "اَضَارِبٌ زَيْدٌ عَمْرًوا" يا به حرف نفي وي لكه: "مَاقَائِمٌ زَيْدًا" چي كم عمل "قَامَ" او "ضَرَبَ" كوي "قَائِمٌ وَ ضَارِبٌ" هم هغه عمل كوي. پنځم قسم اسم مفعول چي د حال او د استقبال په معنٰی سره وي د فعل مجهول په شان عمل كوي په دې شرط چي اعتماد مذكور به وده ته حاصل وي لكه: "زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ اَبُوْهُ" او "عَمْرٌ مُعْطًی غُلَامُهُ دِرْهَمًا" او "بَكْرٌ مَعْلُوْمٌ اِبْنُهُ فَاضِلًا" او "خَالِدٌ مُخْبَرٌ اِبْنُهُ عَمْرًا فَاضِلًا" كم عمل چي "ضُرِبَ وَ اُعْطِیَ وَ عُلِمَ وَ اُخْبِرَ" كوي او هغه عمل "مَضْرُوْبٌ، مُعْطًی، اَوْ مَعْلُوْمٌ اَوْ مُخْبَرٌ" هم كوي.

## الدرس التاسع والعشرون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

اسماء شرطيه:

د ادوات د شرط جازم للفعلين تعداد:

كم ادوات شرط چي و دوو فعلو ته جزم ور كوي هغه ديارلس (۱۳) د ي دي: "اِنْ، اِذْمَا، مَنْ (۱)، مَا، مَهْمَا، مَتٰی، اَيَّانَ، اَيْنَ، اَنّٰی، حَيْثُمَا، كَيْفَمَا، اَیٌّ، اِذَا".

---

(۱) د "مَنْ" اقسام: (۱)"مَنْ" شرطيه لكه: "مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ". (۲)"مَنْ" موصوله چي په معنی د "اَلَّذِيْ" سره راځي لكه: "فَمِنْهُمْ مَنْ يَمْشِيْ عَلٰی بَطْنِهٖ". (۳)"مَنْ" استفهاميه لكه: "مَنْ ذَا الَّذِيْ يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا". (۴)"مَنْ" موصوفه چي اكثره د "مَنْ" موصوله سره ملاويږي. (۵)"مَنْ" نافيه لكه: "وَمَنْ يَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ". (۶)"مَنْ" زائده چي اكثره په اشعارو كي راځي. (ضوابط نحوية)

د اسماء شرطيه عمل:

اسماء شرطيه د "اِنْ" په شان پر دوو جملو داخليږي اولي جملې ته شرط (۱) دوهمي جملې ته جزاء ويل کيږي. او دوی چونکه د "اِنْ" معنٰی لره متضمن دي نو ځکه فعل مضارع ته جزم ور کوي لکه: "مَنْ تَضْرِبْ اَضْرِبْ، مَا تَفْعَلْ اَفْعَلْ، مَهْمَا تَقْعُدْ اَقْعُدْ".

د اسماء شرطيه اقسام:

اسماء شرطيه پر شپږ (٦) قسمه راځي:

١. اول قسم: هغه دي چي صرف د شرطيت پر معنٰی دلالت کوي هغه دوه داني دي "اِنْ" لکه: "وَاِنْ تُبْدُوا مَا فِي أَنْفُسِكُمْ أَوْ تُخْفُوهُ يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ" "اِذْمَا" (۲) لکه: "اِذْمَا تَأْتِ مَا اَنْتَ آمِرٌ بِهِ تُلْفِ مَنْ اِيَّاهُ".

٢. دوهم قسم: هغه اسم مبهم دئ چي د ذوالعقول دپاره راځي او معنٰی د شرط لره متضمن وي هغه يو دئ چي "مَنْ" دئ لکه: "مَنْ يَعْمَلْ سُوءًا يُجْزَ بِهِ".

٣. دريم قسم: هغه اسم مبهم دئ دئ چي د غير ذوی العقول دپاره راځي او معنٰی د شرط لره متضمن وي هغه دوه داني دي: "مَا، مَهْمَا" (۳) لکه: "وَقَالُوا مَهْمَا تَأْتِنَا بِهِ مِنْ آيَةٍ لِتَسْحَرَنَا بِهَا فَمَا نَحْنُ لَكَ بِمُؤْمِنِينَ".

---

(۱) وجه د تسميه د شرط و جزاء: شرط ته ځکه شرط ويل کيږي چي شرط په معنی د علامه سره راځي او دی هم علامه وي د فعل ثاني پر وجود باندي او جزاء ته ځکه جزاء ويل کيږي چي دا مشابه ده د جزاء د اعمالو سره لکه: څنګه چي پر عمل باندي جزاء مرتبه وي داغه رنګه جزاء هم پر فعل اول باندي مرتبه وي او و دې ته جواب شرط هم ويل کيږي ځکه دا مشابه ده د سوال د جواب سره. (شرح شذور الذهب و همع الهوامع)

(۲) د "اِذْمَا" په اسميت او حرفيت کي اختلاف دئ د امام سبويه او جمهورو په نزد باندي دئ حرف دئ او د بعض په نزد باندي اسم دئ.

(۳) د "مَا" حرفيه اقسام: (۱) "مَا" نافيه لکه: "مَا أَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ". (۲) "مَا" مشابه بليس لکه: "مَا هَذَا بَشَرًا" (۳) "مَا" مصدريه غير زمانيه لکه: "فَذُوقُوا بِمَا نَسِيتُمْ". (۴) "مَا" مصدريه زمانيه لکه: "فَاتَّقُوا اللّٰهَ مَا اسْتَطَعْتُمْ". (۵) "مَا" زائده غير کافه لکه: "مِمَّا خَطِيئَاتِهِمْ. لَا سِيَّمَا". (٦) "مَا" زائده کافه لکه: "رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا".

د "مَا" اسميه اقسام: (۱) "مَا" موصوله چي په معنی د "اَلَّذِيْ" سره راځي لکه: "مَا عِنْدَكُمْ يَنْفَدُ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ بَاقٍ". (۲) "مَا" موصوفه چي په معنی "شَيْئٌ" يا "شَيْئًا" سره راځي لکه: "ظَهَرَ الْفَسَادُ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ بِمَا كَسَبَتْ أَيْدِي النَّاسِ". د دوی په مينځ کي

۴. څلورم قسم: هغه اسماء دي چې پر زمانه دلالت کوي او معنٰی د شرط لره متضمن وي هغه درې دانې دي: "مَتٰى، اَيَّانَ، اِذَا" لکه: "مَتٰى تَقُمْ اَقُمْ، اَيَّانَ يَوْمُ الدِّيْنِ، وَ اِذَا تُصِبْکَ خَصَاصَةٌ فَتَجَمَّلِ".

۵. پنځم قسم: هغه اسماء دي چې پر مکان دلالت کوي او معنٰی د شرط لره متضمن وي هغه درې دانې دي: "اَيْنَ، اَنّٰى، حَيْثُمَا" (۱) لکه: "اَيْنَ تَنْزِلْ اَنْزِلْ، اَنّٰى تَدْرُسْ اَدْرُسْ، حَيْثُمَا تَقْصُدْ اَقْصُدْ".

۶. شپږم قسم: هغه اسماء دي او مبهم وي چې متضمن معنٰی د شرط لره وي هغه يو "کَيْفَمَا" دئ لکه: "کَيْفَمَا تَکُنْ يَکُنْ قَرِيْنُکَ" او بل "اَیٌّ" دئ چې په ټولو اسماء شرطيه وو کي دئ معرب دئ او معرب استعماليږي باقي ټوله مبني دي او دی متردد وی په مينځ کي د مخکني اقسام اربعه وو لکه: "اَیَّ شَيْئٍ تَأْکُلْ اٰکُلْ" يعني د ده دار و مدار پر مضاف اليه باندي دئ که چيري دی و ذوالعقول ته مضاف وو نو بيا دی د باب څخه د "مَنْ" دئ لکه: "اَيُّهُمْ يَقُمْ اَقُمْ" او که چيري دی و غير ذوی العقول ته مضاف وو بيا دی د باب څخه د "مَا" دئ لکه: "اَیَّ الدَّوَابِّ تَرْکَبْ اَرْکَبْ" او که چيري ظرف زمانه ته مضاف وو بيا دی د باب څخه د "مَتٰى" دئ لکه: "اَیَّ يَوْمٍ تَصُمْ اَصُمْ" او که چيري و ظرف مکان ته مضاف وو بيا دی د باب څخه د "اَيْنَ" دئ لکه: "اَیَّ مَکَانٍ تَجْلِسْ اَجْلِسْ".

---

فرق "مَا" موصوله معرفه وي او "مَا" موصوفه نکره وي. (۳) "مَا" نکره تامه چي د صفت محتاجه نه وي لکه: "مَا اَحْسَنَ الرَّجُلُ" ما نکره ناقصه چي د صفت محتاجه وي. (۴) ما شرطيه لکه: "مَا اَصَابَکَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ". (۵) "مَا" استفهاميه چي اکثره د کلام په شروع کي راځي: "وَمَا تِلْکَ بِيَمِيْنِکَ يَا مُوْسٰى". (۶) "مَا" صفتيه لکه: "اَضْرِبْهُ ضَرْبًا مَّا". (۷) "مَا" تامه لکه: "نِعِمَّا هِيَ اَیْ: نِعْمَ مَا هِيَ".

(۱) "حَيْثُ" او "اِذْ" چي کله د "مَا" څخه مجرد وي نو بيا دوی جازم نه واقع کيږي. (شرح شذور الذهب)

**فائده:**

د شرط و جزاء تفصيلي بحث په حروف جوازمو کي د "اِنْ" شرطيه جازمه په بحث کي تېر سوی دئ "اِنْ شِئْتَ التَّفْصِيْلَ فَارْجِعْ اِلَيْهِ".

**دوهمه خبره:**

د اسماء شرطيه وو تقسيم ثاني:

اسماء(۱) شرطيه د دوهم تقسيم په اعتبار سره پر درې قسمه دئ:

۱. اول قسم: بعض هغه دي چي هغه حروف وي هغه يو "اِنْ" شرطيه جازمه دئ او بل "اِذْمَا" دئ على اختلاف القولين.

۲. دوهم قسم: اسماء مبهمه دي چي متضمن وي معنٰى د شرط لره هغه "مَنْ، مَا، مَهْمَا، اَیٌّ، کَيْفَمَا" دئ.

۳. دريم قسم: هغه دي چي هغه پر زمان يا مکان دلالت کوي او متضمن وي معنٰى د شرط لره هغه "اَيْنَ، اَيَّانَ، مَتٰى، اِذْ، حَيْثُمَا" و غيره دي.

د اسماء شرطيه ترکيبي حيثيت:

---

(۱) کله کله قسم و شرط يو ځای سره جمع سي او د دوی څخه وروسته صرف يوه جمله ذکر سوې وي اوس په دې صورت کي قسم جواب غواړي او شرط جزاء غواړي نو ضاطبه دا ده چي په شرط او قسم کي هر يو مقدم وي نو دا مابعد جمله به د هغه دپاره معمول وي که چيري قسم مخکي وو تر شرط نو مابعد جمله به جواب د قسم وي او د شرط دپاره به جزاء محذوفه رايستل کيږي او که چيري شرط مقدم وو نو بيا به مابعد جمله د شرط دپاره معمول او جزاء وي او د قسم دپاره به جواب محذوفه رايستل کيږي. چي په کم ځای کي قسم مقدم وي د هغه مثال لکه: "لَئِنْ أَشْرَکْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُکَ". اوس په دې مثال کي چي پر "لَئِنْ" باندي کم "لَا" دئ هغه "لام مؤطئه" دئ يعني دا کلام دا تقاضا کوي چي دلته قسم مقدم دئ جواب غواړي نو ځکه مابعد جمله به جواب د قسم وي، او د شرط دپاره به جزاء محذوفه راووزي، ځکه "اِنْ" شرطيه دئ جزاء غواړي نو په دې صورت کي قسم مقدم دئ جواب غواړي نو ځکه مابعد جمله به جواب د قسم او د شرط دپاره به جزاء محذوفه راووزي نو بيا به تقدير د عبارت په دې شکل وي "وَاللهِ لَئِنْ أَشْرَکْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُکَ" "لِيَحْبِطْ عَمَلُکَ" اوس دلته "لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُکَ" به جواب د قسم سي او "لِيَحْبِطْ عَمَلُکَ" به جزاء محذوفه سي او چي په کم صورت کي شرط مقدم وي او قسم مؤخر وي د هغه مثال لکه: "اِنْ ضَرَبْتَ وَاللهِ اَضْرِبُ" نو د غه "اَضْرِبُ" به جزاء د شرط سي او د قسم دپاره به جواب محذوف راووزي چي "لَاَضْرِبَنَّ" دئ نو تقدير د عبارت به داسي وي "اِنْ ضَرَبْتَ وَاللهِ اَضْرِبُ لَاَضْرِبَنَّ".

اول "مَنْ وَ مَا وَ مَهْمَا" دي د دغه درې تركيب به په دې شكل وي كه چيرې د دوی څخه وروسته فعل متعدي وو او د عمل استعداد يې درلوی او مفعول به يې نه وو ذكر سوی نو بيا دوی د هغه فعل متعدي دپاره مفعول به جوړيږي او دوی به محلا منصوب وي لكه: "مَا تُحْصِلْ فِي الصِّغَرِ يَنْفَعُكَ فِي الْكِبَرِ. مَنْ تُجَاوِزْ فَاحْسِنْ اِلَيْهِ. مَهْمَا تَفْعَلْ تُسْأَلْ عَنْهُ" او كه چيرې فعل متعدي تابله د عمل نه وو يعني مفعول به يې ذكر سوی وو يا فعل لازمي وي يعني مفعول به ته يې ضرورت نه درلودئ نو بيا په دې دواړو صورتو كي دوی مبتدا، واقع كيږي په خبر كي يې درې قولونه دي:

اول قول: څوک وايي: د دوی خبر صرف شرط دئ.

دوهم قول: څوک وايي: چي خبر صرف جزاء ده.

دريم قول: او بعض وايي: چي شرط و جزاء دواړه خبر دي او په دې صورت كي دوی به محلا مرفوع وي لكه: "مَا يَجِيئُ بِهِ الْقَدَرُ فَلَا مَفَرَّ مِنْهُ. مَنْ يَجِدُّ يَجِدْ. مَهْمَا يَنْزِلْ بِكَ مِنْ خُطَبٍ فَاحْتَمِلْهُ. مَا تَفْعَلْهُ تَلْقَهُ. مَنْ تَنْقُدْهُ فَسَلِّمْ عَلَيْهِ مَهْمَا تَفْعَلُوْهُ تَجِدُوْهُ".

**دريمه خبره:**

دوهم "كَيْفَمَا" دئ: "كَيْفَمَا" په تركيب كي حال واقع كيږي د شرط د فاعل څخه او دی په محل د نصب كي وي لكه: "كَيْفَمَا تَكُنْ يَكُنْ اَبْنَاءُكَ".

دريم قسم: "اَيُّ" دئ: "اَيُّ" لازم الاضافت دئ الى المفرد او دی معرب دئ په تركيب كي دی د مضاف اليه تابع دئ كه چيرې د ده مضاف اليه زمان يا مكان وو نو بيا به دی مفعول فيه واقع كيږي د ما بعد فعل دپاره خواه كه فعل تام وي او كه قاصر وي لكه: "اَيَّ يَوْمٍ تَذْهَبْ اَذْهَبْ. اَيَّ بَلَدٍ تَسْكُنْ اَسْكُنْ" او كه چيرې د ده مضاف اليه مصدر وو نو بيا دی مفعول مطلق واقع كيږي د مابعد فعل دپاره لكه: "اَيَّ اِكْرَامٍ تُكْرِمْ اُكْرِمْ". او كه چيرې د ده مضاف اليه د ظرف او د مصدر څخه علاوه بل شی وو نو بيا د ده حكم په تركيب كي د "مَنْ و مَا و مَهْمَا" دئ، يا به مفعول وي لكه: "اَيَّ كِتَابٍ تَقْرَءْ تَسْتَفِدْ" او يا به مبتداء وي لكه: "اَيُّ رَجُلٍ يَخْدُمْهُ اُمَّتَهُ تَخْدُمْ".

څلورم قسم: هغه اسماء دي چي د ظرفيت دپاره راځي كه چيرې د دوی څخه وروسته فعل تام وو نو دوی د هغه دپاره مفعول فيه واقع كيږي او كه چيرې د دوی څخه وروسته فعل قاصر وو نو بيا يې

خبر ته كتل كيږي چي جامد دئ او كه مشتق دئ كه چيري خبر مشتق وو نو بيا دوی د هغه خبر دپاره مفعول فيه واقع كيږي او كه چيري خبر جامد وو نو بيا دوی د فعل قاصر دپاره مجبورا مفعول فيه واقع كيږي.

پنځم قسم: "إِذْمَا" دئ "إِذْمَا" حرف دئ د "إِنْ" مرادف دَی په تركيب كي يو شی نه واقع كيږي.

شپږم قسم: "إِذَا" دئ "إِذَا" غير جازمه دئ لېكن كله كله په شعرو كي جازم واقع كيږي او دَی همېشه مضاف وي و شرط ته او شرط يې مضاف اليه وي او دی په خپل شرط كي عمل كوي ځكه مضاف په مضاف اليه كي عمل كوي بيا مضاف و مضاف اليه دواړه د جزاء دپاره مفعول فيه جوړيږي.

## فائده:

په جزاء كي يو ضمير ضروري دئ چي راجع وي و اسماء شرطيه ته چي احتياج پيداسي و شرط ته كه چيري ضمير نه وو بيا به مقدر رائستل كيږي. او ټوله ادوات شرط مبني دي مګر "أَيٌّ" معرب دئ په حركات ثلاثه سره او لازم الاضافة الى المفرد دئ.

## څلورمه خبره:

اسماء افعال:

دوهم قسم د اسماء عامله وو څخه اسماء افعال (¹) دي.

د نحاتو اصول:

د نحاتو حضراتو دا اصول دئ چي كله يو شی د بل شي معنٰی لره متضمن وي لېكن دغه دوه شيان په احكامو لفظيه وو كي سره مختلف وي متحد نه وي نو دوی و داغه شي ته هم د دا بل شي نوم ور كوي صرف د داغه شي د نامه په شروع كي لفظ د اسم زياته وي لكه: "فعل، اسم فعل، مصدر، اسم مصدر، جمع، اسم جمع، فاعل، اسم فاعل".

---

(¹) په اسماء افعالو كي د ضمير دپاره څه علامه نه ظاهريږي لكه: "صَه" د واحد، تثنيه، جمع مذكر و مؤنث د ټولو دپاره دغه شكل دئ يعني "صَه" كه چيري واحد وي هم "صَه" ويل كيږي او كه چيري تثنيه وي هم "صَه" ويل كيږي نو په ده كي ظاهرا د تثنيت و جمعيت تذكير و تانيث هيڅ يو علامه نه وي. (تسهيل اشموني صفحه ۳۰۲)

**د اسماء افعال د وضع مقصد:**

اسماء افعال د يو څو غرضو حاصلولو دپاره وضع سوي دي:

۱. اول غرض: د اختصار حاصلولو دپاره لکه: "رُوَيْدَ" (۱) د مذکر، مؤنث، واحد، تثنيه، جمع د ټولو دپاره وضع سوی دئ.

۲. دوهم غرض: د دوام او استمرار معنٰی حاصلولو دپاره لکه: "نَزَالِ" معدول سوی دئ د "اَنْزِلْ" څخه.

۳. دريم غرض: د استعجاب دپاره لکه: "هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ" يعني ليري سوه ليري سوه هغه خبره او دا معنٰی د "بَعُدَ" څخه نه حاصليږي او په "شَتَّانَ" کي چي کم افتراق دئ هغه په "اِفْتَرَقَ" کي نسته او په "سَرْعَانَ" کي چي کم تعجب دئ هغه په "سَرُعَ" کي نسته.

**د اسماء افعال عمل:**

اسماء افعال د عمل په اعتبار سره پر دوه قسمه دي:

۱. اول قسم: بعض هغه دي چي په معنٰی د فعل ماضي سره راځي هغه و خپل مابعد ته بناء بر فاعليت رفع ورکوي هغه "هَيْهَاتَ، شَتَّانَ، سَرْعَانَ" دي.

۲. دوهم قسم: بعض په معنٰی د امر حاضر سره راځي هغه خپل مابعد ته نصب ورکوي بناء بر مفعوليت بلا خبره دا ده چي اسماء افعال د کم فعل په معنٰی سره راځي د هغه فعل عمل

---

(۱) "رُوَيْدَکَ، بَلْهَکَ" په "رُوَيْدَکَ" او "بَلْهَکَ" کي دوه احتماله دي:

۱. يو احتمال دا چي دوی دواړه اسم فعل وي مبني بر فتحه وي او کاف حرف خطاب وي "لَا مَحَلَّ لَهَا مِنَ الْاِعْرَابِ".

۲. دوهم احتمال دا چي دوی دواړه مصدر وي او پر دوی دواړو باندي فتحه اعرابي وي او د "رُوَيْدَکَ" په کاف کي دوې وجهي دي: چي فاعل دئ، يا مفعول دئ، دغه دوه احتماله په "رُوَيْدَ" او "بَلْهَ" کي په هغه صورت کي دئ چي کله په دوی کي معنٰی د طلب وي يعني دوی به معنٰی د امر سره وي، لېکن که چيري دوی د طلب د معنٰی څخه خالي وي نو بيا دوی دواړه اسمونه وي په معنٰی د "کَيْفَ" سره او د دوی مابعد مرفوع وي لکه: په حديث شريف کي راځي "أَعْدَدْتُ لِعِبَادِيَ الصَّالِحِيْنَ مَا لَا عَيْنٌ رَأَتْ، وَلَا أُذُنٌ سَمِعَتْ، وَلَا خَطَرَ عَلَى قَلْبِ بَشَرٍ ذُخْرًا مِنْ بَلْهِ مَا اَطْلَعْتُمْ عَلَيْهِ" په دې حديث کي "بَلْهَ" مجرور دئ په "مِنْ" جاره سره او دی د معاني مذکوره څخه خالي دي او "رُوَيْدَ" کله کله حال هم واقع کيږي لکه: "سَارُوْا رُوَيْدًا" د فاعل څخه حال دئ عند البعض د مصدر محذوف د ضمير څخه حال دئ عند البعض دی صفت دئ دپاره د مصدر. (همع الهوامع و جامع الدروس العربية)

کوي او د دوی متعدي والی او لازمي والی د هغه فعل پر متعديت ولازميت باندي موقوف دئ.

فرق په مينځ کي د فعل و اسم فعل:

د اسماء افعالو او افعالو په مينځ کي دوه فرقونه دي:

۱. اول فرق: يو دا چي د اسماء افعالو معمول پر دوی باندي نسي مقدم کېدای بخلاف د افعالو.

۲. دوهم فرق: دا چي اسماء افعال د تانيث و تذکير، تثنيه و جمع علامه نه قبلوي بخلاف د افعالو. او اسماء افعال "لَا مَحَلَّ لَهَا مِنَ الْإِعْرَاب" دئ.

د اسماء افعالو احکام:

۱. اول حکم يې دا دئ: چي دوی مضاف (۱) نسي واقع کېدای لکه: د دوی افعال.

۲. دوهم حکم يې دا دئ: چي د دوی معمول پر دوی باندي نسي مقدم[۲] کېدای ځکه دوی عام طور ضعيف دي او د دوی عمل د فعل د نيابت په وجه دئ.

۳. دريم حکم يې دا دئ: چي کم اسماء افعال چي په معنٰی د امر سره راځي که چيري د دوی په جواب کي مضارع راسي نو هغه به مجزومه وي نصب يې جائز نه دئ نو لهذا "صَهْ فَأُحَدِّثَكَ" ويل غلط دي.

د اسم فعل مشترک حکم:

کم اسم فعل چي مشترک وي په معنٰی کي د متعدد افعالو نو بيا به د ده استعمال په اعتبار د هغه فعل سره وي لکه: "حَيْهَلْ" چي کله په معنٰی د "اِيْتِ" سره وي نو بيا دی بغير واسطه د حرف جر

---

(۱) پر دې حکم باندي اعتراض دا کيږي چي تاويل اسم فعل مضاف نسي واقع کېدای په "بَلْهَ زَيْدٍ" او "رُوَيْدَ زَيْدٍ" کي "بَلْهَ، رُوَيْدَ" مضاف واقع سوی دئ چي د هغه په وجه "زَيْدٍ" مجروره سوی دئ جواب دلته "بَلْهَ" و "رُوَيْدَ" اسماء افعال نه دي بلکه مصدرونه دي پر دوی باندي فتحه اعرابي ده او دوی مصدر مضاف دئ که چيري اسماء افعال وای نو بيا به "رُوَيْدَ زَيْدًا" يا "بَلْهَ زَيْدًا" ويل سوی وای. (جامع الدروس العربية)

(۲) د امام کسائي په نزد باندي تقديم د معمول پر اسماء افعالو باندي جائز دئ او پر دې باندي دليل د الله تعالی دا قول دئ "كِتَابَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ" لېکن په دې کي موږ تاويل کوو دلته اسم فعل "عَلَيْكُمْ" مقدر دئ چي وروسته "عَلَيْكُمْ" يې تفسير دئ "أَيْ عَلَيْكُمْ كِتَابَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ".

سره استعماليږي لکه: "حَيهَلِ الثَّرِيدَ" بمعنی "اِيْتِ الثَّرِيدَ" او که چیرې "حَيهَلْ" په معنی د "اَقْبِلْ" سره وي نو بیا به دی په "عَلٰی" سره استعماليږي لکه: "حَيهَلْ عَلَی الخَيْرِ" بمعنی "اَقْبِلْ عَلَی الخَيْرِ" او که چیرې په معنی د "اَسْرِعْ" سره وي نو بیا به دی په "بَا" سره استعماليږي لکه: "اِذَا ذُكِرَ الصَّالِحُوْنَ فَحَيهَلْ بِعُمَرَ اَیْ اِسْرِعْ بِعُمَرَ".

## پنځمه خبره:

اسم فاعل:

دریم قسم د اسماء عامله وو څخه اسم فاعل دئ.

د اسم فاعل تعریف:

اسم فاعل هغه اسم مشتق دئ چې دی د فعل څخه پر داسې ذات باندې د دلالت کولو دپاره وضع شوی وي چې په ده پورې معنی مصدري په طریقه د حدوث سره قائمه وي نه په طریقه د ثبوت سره لکه: "قَائِمٌ" په "زَيْدٌ قَائِمٌ اَبُوْهُ" کې.

د اسم فاعل عمل او د ده اقسام په اعتبار د عمل سره:

اسم فاعل په اعتبار د عمل سره پر دوه قسمه دئ:

۱. اول قسم: مقرون باللام.
۲. دوهم قسم: مجرد عن اللام.

د مقرون باللام حکم:

د اسم فاعل سره چې کله الف و لام وي نو بیا د ده د عمل کولو دپاره هیڅ شرط نشته بلکه دی د فعل په شان په زمانه ماضي، حال، استقبال: او په ټولو معمولاتو یعنې فاعل چې ضمیر وي یا مفعول مطلق، مفعول له، مفعول فیه، حال، تمیز وغیره په ټولو کې عمل کوي لکه: "جَاءَ الْمُعْطِی الْمَسَاكِيْنَ اَمْسِ اَوِ الْاٰنَ اَوْ غَدًا".

د مجرد عن اللام حکم:

پر اسم فاعل باندې چې کله الف لام نه وي نو بیا چې کله دی په فاعل اسم ظاهر کې عمل کوي نو بیا د ده دپاره درې شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چې پر یو د دا شپږو شیانو به یې اعتماد (۱) (تکیه) کړې وي.

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چې اسم فاعل به موصوف نه وي احترازي مثال لکه: "قَائِمٌ ضَاحِكٌ يَذْهَبُ".

۳. دریم شرط یې دا دئ: چې دی به مصغر نه وي احترازي مثال لکه: "ضُوَيْرِبٌ". اتفاقي مثال لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ أَبُوْهُ".

او کله چې په مفعول به کې عمل کوي بیا د ده دپاره دوه شرطونه دي:

۱. اول شرط یې دا دئ: چې دی به په معنٰی د حال یا (۲) استقبال سره وي حَقِيقَةً یا حِكَايَةً.

۲. دوهم شرط یې دا دئ: چې پر یو د دا شپږو شیانو به یې اعتماد کړی وي او په باقي تمام معمولاتو کې بلا شرط عمل کوي.

---

(۱) د اعتماد اقسام او مثالونه:

۱. پر مبتدا به یې اعتماد کړی وي د لازمي مثال لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ أَبُوْهُ" د متعدي مثال لکه: "زَيْدٌ ضَارِبٌ أَبُوْهُ عَمْرًا".

۲. پر موصوف به یې اعتماد کړی وي لکه: "مَرَرْتُ بِرَجُلٍ ضَارِبٍ أَبُوْهُ بَكْرًا".

۳. پر موصول باندې د لازمي مثال لکه: "جَائَنِي الْقَائِمُ أَبُوْهُ" د متعدي مثال لکه: "جَائَنِي الضَّارِبُ أَبُوْهُ عَمْرًا".

۴. پر ذو الحال باندې لکه: "جَائَنِي زَيْدٌ رَاكِبًا غُلَامُهُ فَرَسًا".

۵. پر همزه استفهام لکه: "أَضَارِبٌ زَيْدٌ عَمْرًا".

۶. پر حرف نفي لکه: "مَاضَارِبٌ زَيْدٌ عَمْرًا، مَا قَائِمٌ زَيْدٌ".

د همزه استفهام او حرف نفي څخه مراد عام دي او دغه اخری دوه قسمونه د مبتدا، قسم ثاني جوړیږي او فاعل یې قائمقامه د خبر جوړیږي لېکن شرط یې دا دئ چې ضمیر متصل به نه وي بلکه دوی به و اسم ظاهر ته رفع ور کوي. (نصر الخبیر و شرح التصریح)

(۲) د حال یا د استقبال شرط یې ځکه لګولی دئ چې اسم فاعل د مضارع د مشابهت په وجه عمل کوي چې د ده د مضارع سره په کامله طریقه باندې مشابهت راسي مخکې خو یې صرف مشابهت لفظي وو یعني په تعداد د حروف، حرکاتو و سکناتو کې وو او س یې په معنی کې هم مشابهت پیدا کړ لېکن د ماضي په صورت کې مشابهت بر قراره نه پاته کیږي ها که چیري یو ځای اسم فاعل په معنی د ماضي سره په دې شکل راغلی وو چې د هغه پر ځای باندې مضارع واقع کول صحیح وو نو بیا اسم فاعل عمل کولای سي لکه: "وَكَلْبُهُمْ بَاسِطٌ ذِرَاعَيْهِ" په معنی د "يَبْسُطُ ذِرَاعَيْهِ" سره دئ. دوهم شرط د اعتماد یې ځکه ولګوئ چې دی خپل مخکې لفظ ته د فعل یو څه نسبت وساتي. (حاشیه خضري، شرح التصریح، همع الهوامع) لکه فعل چې پر فاعل اعتماد کړی وي نو د ده دپاره هم پر شي باندې اعتماد کول ضروري.

## شپږمه خبره:

## فائده:

په اسم فاعل كي ضمير د متكلم او مخاطب او غائب د مقام په مناسبت سره په ده كي مستتريږي يعني كه چيري د ده څخه مخكي متكلم وو نو د متكلم ضمير او كه مخاطب وو نو د مخاطب ضمير او كه غائب وو نو د غائب ضمير په ده كي مستتريږي. او په ده كي ضمير مستتر دائمي وي بارز نه سي راتلای او په "ضَارِبَانِ" او "ضَارِبُوْنَ" كي "الف" او "واو" صرف علامې د تثنيه او جمع دي د فاعل ضميرونه نه دي بخلاف د "ضَرَبَا" او "ضَرَبُوْا" هلته دواړه شيان دي.

## فائده:

كه چيري د اسم فاعل څخه د ثبوت معنىٰ مراد وي نو بيا به دی د صفت مشبه په شان عمل كوي فاعل سببي ته رفع ور كوي او وروسته اسم كه چيري معرفه وو نو د مفعول د مشابهت پر بنياد باندي و اسم معرفه ته نصب ور كوي او كه چيري د ده وروسته اسم نكره وو نو بيا بنا بر تميز نصب ور كوي يا بالاضافت جر ور كوي.

## فائده:

د اسم فاعل اضافت و خپل فاعل ته جائز نه دئ نو لهذا "هَلْ مُكْرِمُ سَعِيْدٍ ضُيُوْفَهُ" ويل جائز نه دي.

عام طور د نحو په كتاب كي مطلقا د اسم فاعل د عمل دپاره دوه شرطونه ذكر كيږي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي دی به په معنىٰ د حال يا استقبال سره وي.
۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي اعتماد به يې پر يو د دا شپږو شيانو كړی وي خواه كه په فاعل كي عمل كوي او كه په مفعول به كي عمل كوي.

---

(۱) اعتماد پر دوه قسمه دئ خواه كه مذكور وي لكه: په تېرو سوو مثالو كي او كه يې پر مقدر باندي اعتماد كړی وي لكه: په "يَا طَالِعًا جَبَلًا" كي دلته موصوف معتمد دئ پر ياء حرف نداء مقدر باندي "اَیْ يَا رَجُلًا طَالِعًا" داغه رنګه په "مُخْتَلِفٌ اَلْوَانُهُ" كي "صِنْفٌ" مقدر دئ "اَیْ صِنْفٌ مُخْتَلِفٌ اَلْوَانُهُ". (شرح التصريح جلد ۲ صفحه ۲۰)

**فائده:**

تقديم د معمول پر اسم فاعل باندي جائز دئ لکه: "أَنْتَ الخيْرَ فَاعِلٌ" مګر که چيري اسم فاعل مقرون باللام وو لکه: "هَذَا الْمُكْرِمُ سَعِيْدًا" يا مجرور بالاضافت وو لکه: "هَذَا وَلَدُ مُكْرِمٍ خَالِدًا" يا مجرور په حرف جر اصلي سره وو لکه: "أَحْسَنْتُ إِلَى مُكْرِمٍ عَلِيًّا" بيا يې تقديم جائز نه دئ او که چيري مجرور په حرف جر زائده سره وو بيا يې تقديم جائز دئ لکه: "لَيْسَ سَعِيْدٌ بِسَابِقٍ خَالِدًا" دا هم ويلای سي "لَيْسَ سَعِيْدٌ خَالِدًا بِسَابِقٍ" ځکه حرف جر زائد په حکم د ساقط کي دئ.

**اوومه خبره:**

اسم مفعول:

څلورم قسم د اسماء عامله وو څخه اسم مفعول دئ:

د اسم مفعول تعريف:

اسم مفعول هغه اسم مشتق دئ چي دی د فعل متعدي څخه مشتق سوی وي دپاره د دلالت کولو پر داسي ذات چي فعل د فاعل پر ده باندي په طريقه د حدوث سره واقع وي لکه: "مَضْرُوْبٌ".

د اسم مفعول عمل:

اسم مفعول د فعل مجهول په شان عمل کوي که چيري متعدي بيک مفعول وو نو نائب فاعل ته رفع ور کوي او که چيري متعدي بدو مفعول وو نو بيا مفعول اول ته رفع او مفعول ثاني ته نصب ور کوي او که چيري متعدي بسه مفعول وو نو بيا اول مفعول به ته بنا بر نائب فاعل رفع ور کوي او مفعول ثاني و ثالث ته نصب ور کوي.

د اسم مفعول د عمل شرائط:

د اسم مفعول د عمل دپاره هغه شرطونه دي: کم چي د اسم فاعل د عمل دپاره وه هغه يو دا چي په معنٰی د حال او استقبال سره به وي. او دوهم دا چي اعتماد به يې کړی وي پر يو د دا شپږو شيانو باندي:

۱. مبتداء لکه: "زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ أَبُوْهُ، عَمْرٌو مُعْطًى غُلَامُهُ دِرْهَمًا".

۲. موصوف لکه: مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مَضْرُوْبٌ أَبُوْهُ، مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مُعْطًى غُلَامُهُ دِرْهَمًا".

٣. موصول لکه: "جَاءَ الْمَضْرُوْبُ اَبُوْهُ، جَاءَنِي الْمُعْطٰى غُلَامُهُ دِرْهَمًا".

۴. ذوالحال لکه: "جَاءَنِي زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ اَبُوْهُ، جَاءَنِي الْمُعْطٰى غُلَامُهُ دِرْهَمًا".

۵. همزه استفهام لکه: "اَمَضْرُوْبٌ زَيْدٌ، اَمُعْطًى زَيْدٌ دِرْهَمًا".

٦. حرف نفي لکه: "مَا مَضْرُوْبٌ زَيْدٌ، مَا مَعْلُوْمٌ زَيْدٌ فَاضِلًا".

**نوټ**: کله چي مفعول متعدي پر څلور قسمه دئ او اعتماد پر یو د دا شپږو شیانو باندي کوي نو چي څلور په شپږ کي ضرب کړي نو بیا شپږویشت مثالونه جوړیږي چي په لاندي نقشه کي یې تفصیل ښکارددئ.

| اعتماد | متعدي یک مفعول | متعدي دوه مفعول اعتماد په دوه باندي | متعدي دوه مفعول اعتماد په یو باندي | متعدي درې مفعول |
|---|---|---|---|---|
| مبتدا | زَيْدٌ مَضْرُوْبٌ اَبُوْهُ | عَمْرٌو مُعْطًى غُلَامُهُ دِرْهَمًا | زَيْدٌ مُعَلَّمٌ اِبْنُهُ فَاضِلًا | خَالِدٌ مُخْبَرٌ اِبْنُهُ عَمْرًوا فَاضِلًا |
| موصوف | مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مَضْرُوْبٍ اَبُوْهُ | مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مُعْطًى غُلَامُهُ دِرْهَمًا | مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مُعَلَّمٍ اِبْنُهُ فَاضِلًا | مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مُخْبَرٍ اِبْنُهُ عَمْرًوا فَاضِلًا |
| موصول | جَاءَ الْمَضْرُوْبُ اَبُوْهُ | جَاءَنِي الْمُعْطٰى غُلَامُهُ دِرْهَمًا | جَاءَنِي الْمُعَلَّمُ اِبْنُهُ فَاضِلًا | جَاءَنِي الْمُخْبَرُ اِبْنُهُ عَمْرًوا فَاضِلًا |
| ذوالحال | جَاءَنِي زَيْدٌ مَضْرُوْبًا اَبُوْهُ | جَاءَنِي زَيْدٌ مُعْطًى غُلَامُهُ دِرْهَمًا | جَاءَنِي زَيْدٌ مُعَلَّمًا اِبْنُهُ فَاضِلًا | جَاءَنِي زَيْدٌ مُخْبَرًا اِبْنُهُ عَمْرًوا فَاضِلًا |
| همزه استفهام | اَمَضْرُوْبٌ زَيْدٌ | اَمُعْطًى زَيْدٌ دِرْهَمًا | اَمُعَلَّمٌ زَيْدٌ فَاضِلًا | اَمُخْبَرٌ زَيْدٌ عَمْرًوا فَاضِلًا |
| حرف نفي | مَا مَضْرُوْبٌ زَيْدٌ | مَا مُعْطًى زَيْدٌ دِرْهَمًا | مَا مُعَلَّمٌ زَيْدٌ فَاضِلًا | مَا مُخْبَرٌ زَيْدٌ عَمْرًوا فَاضِلًا |

**فائده**:

د اسم مفعول څخه که چیري معنٰی ثبوتي مراد وي نو بیا بناء بر نائب فاعل رفع ور کوي او بناء بر تشبیه بالمفعول نصب ور کوي که چیري اسم معرفه وو او که نکره وو بیا بنا بر تمیز نصب ور کوي یا بناء بر اضافت جر ور کوي.

**فائده**:

اسم فاعل اسم مفعول، صفت مشبه، مصدر، اسم تفضیل، وغیره ته شبه جمله هم ویل کیږي او د شبه جمله څخه مراد هغه جمله ده چي مکمل جمله نه وي مگر د جملې معنٰی ور کوي.

د اسم فاعل او اسم مفعول په عمل کي فرق:

د اسم فاعل او اسم مفعول په عمل کي فرق صرف دا دئ چي اسم فاعل و فاعل ته رفع ور کوي او اسم مفعول د فاعل پر ځای و نائب فاعل ته رفع ور کوي.

| عنوان | خبریہ انشائیہ | مسند | مسند الیہ | حروف عاملہ، غیر عاملہ | تعین افعال عاملہ | تعین اسماء عاملہ | تعین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعین اسماء شرطیہ، تعین عمل اسم الفاعل و اسم المفعول |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عَلٰى سُرُرٍ مَوْضُونَةٍ مُتَّكِئِينَ عَلَيْهَا مُتَقَابِلِينَ | خبریہ ظرفیہ | عَلٰى سُرُرٍ باعتبار متعلق خبر | (هُمْ) مقدر مبتداء | ۲۔ (عَلٰى) جارہ | + | (مَوْضُونَةٍ) اسم مفعول (مُتَّكِئِينَ مُتَقَابِلِينَ) اسم فاعل | (هُمْ) محلا مبتداء مقدرہ (سُرُرٍ مَوْضُونَةٍ) محلا باعتبار متعلق خبر (هِيَ، هُمْ، هُمْ) محلا فاعل | (مُتَّكِئِينَ مُتَقَابِلِينَ) حالین | (سُرُرٍ) مجرور متعلق بواسطہ (مَوْضُونَةٍ) محلا مجرور (هَا) محلا مجرور متعلق (مُتَّكِئِينَ) | (مَوْضُونَةٍ) اسم مفعول (هِيَ) فاعلہ (مُتَّكِئِينَ، مُتَقَابِلِينَ) اسم فاعل (هُمْ) فاعلہا |
| مَا نَنْسَخْ مِنْ آيَةٍ أَوْ نُنْسِهَا نَأْتِ بِخَيْرٍ مِنْهَا | خبریہ فعلیہ | (نَنْسَخْ، نَأْتِ) | نَحْنُ، نَحْنُ | (مِنْ، بَا، مِنْ) جارہ (أَوْ) حرف عاطف | (نَنْسَخْ، نُنْسِيْ، نَأْتِ) فعل معلوم | (مَا) شرطیہ جازمہ (خَيْرٍ) اسم تفضیل | (نَحْنُ، نَحْنُ، نَحْنُ، هُوَ) محلا فاعل | (مَا)، محلا مفعول بہ مقدم (هَا) محلا مفعول بہ | (آيَةٍ) متعلق (نَنْسَخْ) (هَا) محلا متعلق (نَأْتِ) (بِخَيْرٍ) متعلق "نَأْتِ" | (مَا) اسم شرط جازم |
| وَإِنْ يَسْلُبْهُمُ الذُّبَابُ شَيْئًا لَا يَسْتَنْقِذُوهُ مِنْهُ | خبریہ فعلیہ | يَسْلُبْ، لَا يَسْتَنْقِذُ | الذُّبَابُ، هُمْ | (وَ) حرف عطف (لَا) نافیہ غیر عاملہ (مِنْ) جارہ (إِنْ) جازمہ شرطیہ | (يَسْلُبْ، لَا يَسْتَنْقِذُ) فعل معلوم | + | (الذُّبَابُ) فاعل (هُمْ) محلا فاعل | (هُمْ)، محلا (شَيْئًا هُ) محلا مفعول بہ | (هُ) محلا مجرور متعلق (يَسْتَنْقِذُ) | (إِنْ) حرف شرط جازم |
| ضَعُفَ الطَّالِبُ وَالْمَطْلُوبُ | خبریہ فعلیہ | ضَعُفَ | الطَّالِبُ الْمَطْلُوبُ | (وَ) عاطفہ غیر عاملہ | (ضَعُفَ) فعل معلوم | (الطَّالِبُ) اسم فاعل (الْمَطْلُوبُ) اسم مفعول | (الطَّالِبُ) فاعل (وَالْمَطْلُوبُ) معطوف علیہ | + | + | (الطَّالِبُ) اسم فاعل (هُوَ) فاعلہ (الْمَطْلُوبُ) اسم مفعول (هُوَ) فاعلہ |

# التمرین:

"وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِينًا فَلَنْ يُقْبَلَ مِنْهُ،، أَيْنَمَا تَكُونُوا يُدْرِكْكُمُ الْمَوْتُ،، وَمَا تُنْفِقُوا مِنْ شَيْءٍ فَإِنَّ اللَّهَ بِهِ عَلِيمٌ،، وَقَالَ إِنِّي مُهَاجِرٌ إِلَى رَبِّي،، لَا تَجْعَلْ مَعَ اللَّهِ إِلَهًا آخَرَ فَتَقْعُدَ مَذْمُومًا مَخْذُولًا،، يَمُرُّونَ عَلَيْهَا وَهُمْ عَنْهَا مُعْرِضُونَ،، الَّذِينَ آتَيْنَاهُمُ الْكِتَابَ يَعْلَمُونَ أَنَّهُ مُنَزَّلٌ مِنْ رَبِّكَ،، فَفَتَحْنَا أَبْوَابَ السَّمَاءِ بِمَاءٍ مُنْهَمِرٍ،، وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ،، فَكَذَّبُوهُمَا فَكَانُوا مِنَ الْمُهْلَكِينَ".

ثم ششم صفت مشبہ الخ:.............................. الی قولہ هفتم اسم تفضیل.

## ترجمه:

شپږم قسم صفت مشبه دئ چي د خپل فعل عمل كوي په دې شرط چي اعتماد مذكور به ورته حاصل وي لكه: "زَيْدٌ حَسَنٌ غُلَامُهُ" كم عمل چي "حَسُنَ" فعل ماضي كوي هغه عمل "حَسَنٌ" هم كوي.

# الدرس الثلاثون:

د نن د سبق خلاصه پنځه (۵) خبري دي:

## اوله خبره:

شپږم قسم د اسماء عامله وو ځخه صفت مشبه ده.
د صفت (۱) مشبه تعريف:
صفت مشبه هغه اسم مشتق دئ چي دی مشتق سوی وي د فعل لازمي ځخه دپاره د دلالت کولو پر داسي ذات چي په ده پوري فعل په طريقه د ثبوت سره قائم وي لکه: "حَسَنٌ" هغه سړی ته ويل کيږي چي په ده پوري حسن بطور ثبوت و دوام قائم وي داغه فرق دئ په مينځ د اسم فاعل و صفت مشبه کي په اسم فاعل کي صفت عارضي وي او په صفت مشبه کي صفت دائمي و لازمي وي. او په ده کي زمانه نه وي ځکه دی پر صفات ثبوتيه باندي دلالت کوي او په کم چا کي چي زمانه وي هغه ته صفات عارضه ويل کيږي او دا په ثلاثي مجردو کي اکثريت د "عَلِمَ يَعْلَمُ" د باب ځخه لکه: "اَكْحَلُ" د "كَحِلَ" ځخه او د "شَرُفَ يَشْرُفُ" د باب ځخه لکه: "شَرِيْفٌ" د "شَرُفَ يَشْرُفُ" ځخه راځي. او د دې دوو بابو ځخه علاوه ډېر کم راځي لکه: "سَيِّدٌ" د "سَادَ يَسُوْدُ" "ضَيِّقٌ" د "ضَاقَ يَضِيْقُ" "حَرِيْصٌ" د "حَرَصَ يَحْرِصُ" ځخه.
د صفت مشبه عمل:
صفت مشبه چونکه صرف د فعل لازمي ځخه راځي نو ځکه دی صرف د فعل لازمي عمل کوي يعني فاعل (۲) ته رفع ور کوي لېکن دا يوه خبره ياد ساتل ضروري دي چي صفت مشبه تر خپل فعل په

(۱) د صفت مشبه وجه د تسميه: صفت مشبه ته ځکه صفت مشبه وايي: چي مشبه د اسم مفعول صيغه ده په معنی د تشبيه ورکول سوي سره راځي چونکه د ده هم د اسم فاعل سره تشبيه ور کول سوې ده د تثنيه او جمع او تذکير و تانيث د صيغو په راتللو کي. او معرفه ته نصب ور کول بناء بر تشبه مفعول کما في اسم الفاعل.
(۲) په صفت مشبه کي د ضمير د پېژندولو دپاره ضابطه دا ده که چيري صفت مشبه و خپل معمول ته رفع ور کوله نو بيا دغه معمول اسم ظاهر ده دپاره فاعل وي لکه: "عَلِيٌّ حَسَنٌ خُلُقُهٗ" په ده کي ضمير نسته او که چيري صفت مشبه و خپل معمول ته نصب ور کوئ بناء بر تشبيه مفعول که چيري معرفه وو لکه: "عَلِيٌّ حَسَنٌ خُلُقَهٗ" يا بر تميز که چيري نکره وو لکه: "عَلِيٌّ حَسَنٌ خُلُقًا" يا يې جر ور کاوئ بنا بر اضافت لکه: "عَلِيٌّ حَسَنُ الْخُلُقِ" نو بيا په دې وخت کي په صفت مشبه کي يو ضمير راوزي چي و

عمل کي زيات دئ هغه دا چي صفت مشبه و مفعول به ته نصب هم ور کوي لېکن فعل لازمي و مفعول به ته نصب نسي ور کولای لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ حَسَنٌ وَجْهَهٗ".

د صفت مشبه د عمل کولو دپاره شرطونه:

د صفت مشبه د عمل دپاره پنځه (۵) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي اعتماد به يې پر يو د دا پنځو (¹) شيانو باندي کړی وي سواد موصول څخه.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي صفت مشبه به د مصغر صيغه نه وي.

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي صفت مشبه به موصوف نه وي.

۴. څلورم شرط يې دا دئ: چي پر موصول (²) به يې اعتماد نه وي کړی.

۵. پنځم شرط يې دا دئ: چي په معنٰی د حال و استقبال (³) سره به نه وي. دغه شرطونه هغه وخت دي چي کم وخت په فاعل او شبيه بالمفعول کي عمل کوي. لېکن په نورو معمولاتو کي د عمل کولو دپاره يې څه شرط نسته.

## د ثلاثي مجردو او غير مجردو څخه د صفت مشبه جوړېدل:

د ثلاثي مجردو څخه قياسًا څلور (۴) وزنونه راځي:

---

موصوف ته راجع کيږي او دغه ضمير به د صفت مشبه دپاره فاعل وي او د دغه ضمير تذکير و تانيث او تثنيت و جمعيت په اعتبار د موصوف سره وي ځکه د ضمير د خپل مرجع سره مطابقت ضروري دئ لکه: "زَيْدٌ حَسَنٌ وَجْهَهٗ".(تنوير)

(¹) د اعتماد مثالونه:

۱. مبتداء لکه: "زَيْدٌ حَسَنٌ غُلَامُهٗ".

۲. موصوف لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ حَسَنٌ وَجْهُهٗ".

۳. ذوالحال لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ حَسَنًا وَجْهُهٗ".

۴. همزه استفهام لکه: "اَحَسَنٌ وَجْهُ زَيْدٍ".

۵. حرف نفي لکه: "مَاحَسَنٌ وَجْهُ زَيْدٍ".(نصر الخبير)

(²) ځکه الف لام چي په معنٰی د "اَلَّذِيْ" سره راځي هغه صرف پر اسم فاعل او اسم مفعول باندي داخليږي.

(³) چونکه په صفت مشبه کي د دوام و استمرار معنٰی ده او حال و استقبال حدوث لره مستلزم دي.(نصر الخبير)

۱. اول وزن د "فَعِيْلٌ". لكه: "كَرِيْمٌ، عَظِيْمٌ، حَقِيْرٌ". او دا عام طور د "شَرُفَ يَشْرُفُ" څخه راځي لېكن كله كله د دغه باب څخه د "فَعَلٍ" لكه: "حَسَنٍ" او كله د "فعْلٍ" لكه: "ضخمٍ" او كله "فَعَلٍ" لكه: "بَطَلٍ، حَسَنٍ". او كله د "فَعَالٍ" لكه: "جَبَانٍ" او كله د "فُعَالٍ" لكه: "شُجَاعٍ" او كله د "فُعْلٍ" لكه: "صُلْبٍ" او كله د "فُعُلٍ" لكه: "جُنُبٍ" او كله د "فَعُوْلٍ" لكه: "طَهُوْرٍ" او كله د "فَاعِلٍ" پر وزن هم راځي لكه: "طَاهِرٍ. فَاضِلٍ". او دوى اكثره مخفف د "فَعِيْلٌ" څخه وي.

۲. دوهم وزن د "فَعْلَانٌ" د "فَعِلَ" لازمي څخه چي دلالت كوي پر خُلُوّ (خالي والى) او پر امتلاء (ډک والى) او پر حرارت باطنيه (اندرني ګرمايش) چي مرض نه وي او مؤنث يې "فَعْلَى" راځي. لكه: "عَطْشَانُ" (وږى) "صَدْيَانٌ، عَطْشَانٌ" (تږى).

۳. دريم وزن د "أَفْعَلُ" د "فَعِلَ" لازمي څخه چي دلالت كوي پر لون (رنګ) او پر ظاهري عيبو او پر ظاهري حليه (شكل و صورت) باندي او مؤنث يې "فَعْلَاءُ" راځي. لون لكه: "أَحْمَرُ" (سور). ظاهري عيب لكه: "أَعْمَى" (ړوند). ظاهري حليه لكه: "أَكْحَلُ" (تور سترګى).

۴. څلورم وزن د "فَعِلٌ" د "فَعِلَ" لازمي څخه چي دلالت كوي پر باطني امراضو يا چي د دوى سره مشابه او يا د دوى پر متضادو شيانو باندي او مؤنث يې "فَعِلَةٌ" راځي، امراض به يا باطيني يا به جسماني وي لكه: "وَجِعٌ" (دردناكه). "مَغِصٌ" (چي د درد څخه يې ګلمې پرې سي) يا به خلقي وي لكه: "لَحِزٌ" (بخيل، بد اخلاقه). "بَطِرٌ" (د نعمت ناشكري كول) مشابه شيان "حَزِنٌ" (غمجن كېدل) "حَرِبٌ" (غصه ناكه كېدل) او متضاد شيان لكه: "فَرِحٌ" (خوش حاله كېدل). او د ثلاثي مجرد څخه د اسم فاعل پر وزن راځي لكه: "مُعْتَدِلُ الْقَامَةِ".

## دوهمه خبره:

د صفت مشبه اوزان:

د صفت مشبه اوزان ډېر زيات دي ځکه د دوی تعلق تر سماع پورې دئ او کثير الاستعمال اوزان يې دا دي: "فَعِيْلٌ" لکه: "قَلِيْلٌ". "فَعُوْلٌ" لکه: "ظَلُوْمٌ" او دا دوه وزنونه کله کله د مبالغې دپاره هم استعماليږي لکه: "شَكُوْرٌ، غَفُوْرٌ، عَلِيْمٌ".

د "فَعْلَانٌ" وزن لکه: "تَعْبَانٌ". او کله کله د اسم فاعل وزن هم د صفت مشبه دپاره راځي لکه: "عَادِلٌ". او علامه رضي رحمه الله د سماع پر خبره رد کړی دئ او فرمايلي يې دي چې کله په صفت مشبه کې د عيب او د لون والا معنٰی وي هغه همېشه د "اَفْعَلُ" پر وزن راځي لکه: "اَبْيَضُ، اَسْوَدُ، اَعْوَرُ، اَعْمٰی" او دا قياسي اوزان دي.

د اسم فاعل او صفت مشبه په مينځ کې فرق:

د صفت مشبه او اسم فاعل په مينځ کې څلور (۴) فرقونه دي:

۱. اول فرق: صفت مشبه صرف د فعل لازم څخه راځي او اسم فاعل د لازم و متعدي دواړو څخه راځي.

۲. دوهم فرق: په صفت مشبه کې ثبوت و دوام وي او په اسم فاعل کې حدوث وي.

۳. دريم فرق: د صفت مشبه فاعل صرف سببي راځي او د اسم فاعل، فاعل سببي و اجنبي دواړه راځي.

۴. څلورم فرق: د صفت مشبه معمول نسي مقدم کېدای او د اسم فاعل معمول مقدم کېدای سي.

**فائده:**

عامه قاعده ده چې نکره کله مضاف سي و معرفه ته نو هغه نکره هم معرفه کيږي او داغه رنګه پر مضاف باندې الف لام نسي داخلېدای لېکن صفت مشبه د دې دواړو قاعدو څخه مستثنی ده يعني صفت مشبه په اضافت سره نسي معرفه کېدای او کله چې دا مضاف وي بيا هم پر دوی باندې الف لام داخلېدای سي نو داغه وجه ده چې کله صفت مشبه سره د مضاف اليه صفت واقع سي د معرفه نو بيا پر دې باندې الف لام داخلول ضروري دي چې مطابقت راسي د موصوف سره لکه: "خَالِدُنِ الْكَثِيْرُ الْمَالِ".

## دريمه خبره:

**د صفت مشبه د استعمال صورتونه:**

په صفت مشبه کي د استعمال په اعتبار سره اتلس (۱۸) صورتونه جوړېږي؛ بعض عمده دي بعض احسن دي او بعض حسن دي او بعض مختلف فيه دي او بعض قبيح دي د هغه تفصيل په دې شکل دئ چي صفت مشبه به يا معرف باللام وي يا به مجرد عن اللام وي بيا د هر يوه په معمول کي درې صورتونه جوړېږي:

۱. اول صورت: يا به معرف باللام وي.
۲. دوهم صورت: يا به مضاف وي.
۳. دريم صورت: يا به نه معرف باللام وي او نه به مضاف وي يعني د دواړو څخه به خالي وي دوه ته چي په درې کي ضرب ور کړې نو شپږ قسمه جوړېږي. بيا پر دې شپږ قسمه معمولو باندي درې قسمه اعراب راځي:
۱. اول قسم اعراب: مرفوع بنا بر فاعليت يا بنا بر بدليت د ضمير مستتر څخه.
۲. دوهم قسم اعراب: منصوب که چيري معرفه وو بنا بر شبه مفعول او که نکره وو نصب بنا بر تميز.
۳. دريم قسم اعراب: مجرور په اضافت سره.

نو چي کله شپږو ته په درې کي ضرب ور کړې اتلس صورتونه جوړېږي په دې کي نه احسن (۱) دوه حسن (۲) يو مختلف (۳) فيه، څلور قبيح (۱) دوه ناجائز (۲) دي چي په کم صفت کي يو ضمير وي

(۱) نه (۹) دانې احسن دي چي په هغه کي يو ضمير موجود وي خواه که په صفت کي وي او که په معمول کي وي دا ځکه احسن دي چي د موصوف سره د ربط دپاره يو ضمير دئ او د ربط دپاره يو ضمير کفايت کوي.
(۲) دوه (۹) دانې حسن دي چي په هغه کي دوه ضميرونه موجود وي دغه دوه صورتونه ځکه حسن دي چي په دوی کي د ربط دپاره ضمير موجود دئ لېکن احسن نه دئ ځکه د ربط دپاره يو ضمير کافي دئ او دلته دوه ضميرونه دي.
(۳) يو (۹) صورت مختلف فيه دئ په دې کي اختلاف دئ د بصريين او د امام سبويه رحمة الله عليه په نزد باندي دغه صورت د ضرورت شعري په وجه سره د قباحته جائز دئ او د قباحت وجه دا ده چي دلته په دې صورت کي اضافت لفظي دئ او اضافت لفظي تحفيف فائده کوي په کار دا وه چي دلته د اعلیٰ درجه تخفيف حاصل سوی وای چي د مضاف څخه حذف د تنوين او د مضاف اليه څخه حذف د ضمير دئ لېکن دلته د ادنیٰ درجه تخفيف حاصل دئ چي صرف د مضاف څخه حذف د تنوين دئ او د مضاف اليه څخه ضمير نه دئ حذف سوی نو د اعلیٰ درجه تخفيف د امکان په صورت کي د ادنیٰ درجه په تخفيف سره اکتفاء کول قبيح دي. او د

هغه احسن دي او چي دوه ضميرونه پکښې وي هغه حسن دي او چي خالي وي هغه قبيح دي او کم صفت چي مجرد عن اللام وي او مضاف وي و هغه معمول ته چي مضاف وي و ضمير ته د موصوف هغه مختلف فيه وي او که چيري صيغه د صفت معرف باللام وو او مضاف وو و هغه معمول ته چي مجرد عن اللام وي يا صيغه د صفت معرف باللام وه مضاف وه و هغه معمول ته چي هغه مضاف وو و ضمير ته نو دا دواړه ممتنع دي.

## څلورمه خبره:

د صورتو تفصيل سره د مثالو:

اول صورت چي صفت مشبه معرف باللام وي او ددې معمول مضاف وي نو په دې کي درې (۳) صورتونه جوړيږي:

۱. اول صورت: معمول مرفوع وي لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهُهُ".

۲. دوهم صورت: معمول منصوب وي لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهَهُ".

۳. دريم صورت: معمول مجرور وي لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهِهِ".

دوهم صورت: چي صفت مشبه معرف باللام وي او معمول يې هم معرف باللام وي نو په دې کي هم درې (۳) صورتونه جوړيږي:

۱. اول صورت: معمول مرفوع لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ الْوَجْهُ".

---

کوفيين په نزد باندي دغه صورت بغيره قباحته جائز دي ځکه د جواز دپاره في الجملة څه نه څه تخفيف په کار دئ! او هغه دلته په حذف د تنوين سره حاصل سوی دي.

(۱) څلور (۴) صورتونه قبيح دي چي په هغه کي ضمير نه وي موجود وجه د قباحت يې دا ده چي دلته موصوف د صفت سره ربط غواړي او د ربط دپاره د ضمير ضرورت دئ او دلته ضمير نسته.

(۲) د امتناع په صورت کي دا وه چي صيغه د صفت معرف باللام وي لکه: "اَلْحَسَنُ وَجْهِ" او مضاف وي و هغه معمول ته چي هغه مجرد عن اللام وي د دې صورت د امتناع وجه دا ده چي دلته اضافت د معرفه و نکره ته دئ چي په اضافت معنويه کي ممتنع دئ نو د دې مشابهت په وجه نحويانو دا صورت هم ممتنع بللی دئ او دوهم صورت دا وو چي صيغه د صفت معرف باللام وي او مضاف وي و هغه معمول ته چي هغه مضاف وي و ضمير ته لکه: "اَلْحَسَنُ وَجْهِهِ" او د دې صورت وجه امتناع دا ده چي دلته په اضافت لفظي سره يو قسم تخفيف لانه دئ حاصل سوی ځکه تخفيف يا په حذف د تنوين سره راځي يا په حذف د نون د تثنيه او نون د جمع سره راځي يا د موصوف د ضمير فاعل په حذف سره د صفت څخه لېکن دلته د دا مذکوره وجوه څخه يې د يوې وجه فائده لانه ده حاصله سوې نو ځکه دا صورت ممتنع دئ. (ضوابط نحوية)

۲. دوهم صورت: معمول منصوب لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ الْوَجْهَ".

۳. دریم صورت: معمول مجرور لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ الْوَجْهِ".

دریم صورت چي صیغه د صفت معرف باللام وي او معمول د اضافت او الف لام دواړو څخه خالي وي نو بیا په دې کي هم درې صورتونه جوړیږي؛

۱. اول صورت: معمول مرفوع وي لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهٌ".

۲. دوهم صورت: معمول منصوب وي لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهًا".

۳. دریم صورت: معمول مجرور وي لکه: "زَيْدٌ اَلْحَسَنُ وَجْهٍ".

## پنځمه خبره:

نو د معرف باللام په صورت کي نه (۹) صورتونه جوړ سوه داغه رنګه که چیري مجرد عن اللام وو هم نه (۹) صورتونه جوړیږي هغه په دې شکل:

۱. اول صورت: چي صیغه د صفت مجرد عن اللام وي او پر معمول مضاف باندي درې اعراب ویل جائز دي.

۲. دوهم صورت: چي صیغه د صفت مجرد عن اللام وي او معمول هم مجرد عن اللام وي بیا درې سره اعراب ویل کیږي.

۳. دریم صورت: چي صیغه د صفت مجرد عن اللام وي او معمول معرف باللام وي نو بیا درې صورتونه جوړیږي خو ټوله اتلس (۱۸) صورتونه جوړیږي.

## جملي:

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند اليه | تعيين حروف عامله و غير عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعيين مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعيين صفت مشبه و عمل الاسماء العامله |
| --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- | --- |
| إِنَّ رَبِّي لَسَمِيعُ الدُّعَاءِ | خبريه اسميه | (لَسَمِيعُ الدُّعَاءِ) خبر (إِنَّ) | (رَبِّي) اسم (إِنَّ) | (إِنَّ) حرف مشبه بالفعل | + | (رَبِّ) اسم مضاف، (سَمِيعُ) صفت مشبه | (رَبِّ) محلا اسم (إِنَّ)، (لَسَمِيعُ) خبر (إِنَّ) (هُوَ) محلا فاعل | (رَبِّ) تقديرا، اعراب تقديري اسم ان | (ي) محلا، (اَلدُّعَاءِ) مضاف اليه | (رَبِّ) (لَسَمِيعُ)، صفت مشبه (هُوَ) فاعل (اَلدُّعَاءِ) مفعول |
| أَنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ | خبريه اسميه | (غَنِيٌّ حَمِيدٌ) خبر (إِنَّ) | (اللّٰه) اسم (إِنَّ) | (أَنَّ) مشبه بالفعل | + | (غَنِيٌّ حَمِيدٌ) صفت مشبه | (اللّٰهَ) محلا في محل ابتداء اسم (إِنَّ)، (هُوَ، هُوَ) محلا فاعل | (اللّٰهَ) لفظا اسم (إِنَّ) | + | (غَنِيٌّ حَمِيدٌ) لفظا صفت مشبه (هُوَ) فاعلها |

| عنوان | خبریہ انشائیہ | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ و غیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین صفت مشبہ و عمل الاسماء العاملۃ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ | خبریہ اسمیہ | (لَقَوْلُ) خبر (إنَّ) | (ہٗ) اسم (إنَّ) | (إنَّ) مشبہ بالفعل، (لام) للتاکید غیر عامل | • | (قَوْلُ) مصدر مضاف (كَرِيمٍ) صفت مشبہ | (قَوْلُ) لفظاً خبر (إنَّ) | (ہٗ) محلاً اسم (إنَّ) | (رَسُولٍ) مضاف الیہ (كَرِيمٍ) نعت | (كَرِيمٍ) صفت مشبہ (هُوَ) فاعل، (قَوْلُ) مصدر، (رَسُولٍ) بمعنی (مُرْسَل) |
| إِنَّا أَنْذَرْنَاكُمْ عَذَابًا قَرِيبًا | خبریہ اسمیہ | (أَنْذَرْنَاكُمْ) خبر (إنَّ) | (نَا) اسم (إنَّ) | (إنَّ) مشبہ بالفعل | (أَنْذَرْنَا) فعل معلوم | (قَرِيبًا) صفت مشبہ | (نَا) فی محل مبتداء محلاً اسم (إنَّ)، (أَنْذَرْنَاكُمْ) فی محل الرفع خبر (إنَّ) | (نَا) فاعل، (هُوَ) فاعل (كُمْ) مفعول (عَذَابًا) مفعول بہ (قَرِيبًا) صفت | + | (قَرِيبًا) صفت مشبہ، (هُوَ) فاعل |
| إِنَّ الْإِنْسَانَ لِرَبِّهِ لَكَنُودٌ | خبریہ اسمیہ | (لَكَنُودٌ) خبر (إنَّ) | (الْإِنْسَانَ) اسم (إنَّ) | (إنَّ) مشبہ بالفعل، لام جارہ، (لِ) للقسم او للتاکید | + | (رَبِّ، كَنُودٌ) صفت مشبہ | (الْإِنْسَانَ) فی محل مبتدء محلاً اسم (إنَّ)، (كَنُودٌ) خبر (إنَّ) (هُوَ) محلاً فاعل | (الْإِنْسَانَ) لفظاً اسم (إنَّ) | (رَبِّ، ہٖ) محلاً مجرور متعلق بمحذوف مضاف الیہ | (رَبِّ، كَنُودٌ) (هُوَ) فاعل |
| عَسَىٰ أَنْ يَبْعَثَكَ رَبُّكَ مَقَامًا مَحْمُودًا | خبریہ فعلیہ | (عَسَىٰ) فعل تام • | (أَنْ يَبْعَثَكَ) فاعل | (أَنْ) ناصبہ مصدریہ | (عَسَىٰ) فعل تام (يَبْعَثُ) فعل معلوم | (رَبُّ) اسم مضاف، (مَحْمُودًا) مضاف الیہ | (أَنْ يَبْعَثَكَ) محلاً مرفوع (رَبُّكَ) (هُوَ) محلاً مرفوع کلہم فاعل | (كَ) محلاً مفعول بہ، (مَقَامًا) حال او مفعول مطلق او متعلق فعل (مَحْمُودًا) صفت | (كَ) مضاف الیہ محلاً | (رَبُّ) صفت مشبہ اسم مضاف (مَحْمُودًا) اسم مفعول، (مَقَامًا) مصدر میمی زمان یا مکان |
| إِنَّ الْبَاطِلَ كَانَ زَهُوقًا | خبریہ اسمیہ | (كَانَ زَهُوقًا) خبر (إنَّ) | (هو الْبَاطِلَ) اسم (إنَّ) | (إنَّ) حرف مشبہ بالفعل | (كَانَ) فعل ناقص | (زَهُوقًا) صفت مشبہ | (الْبَاطِلَ) محلاً فی محل مبتداء، (هُوَ، هُوَ) محلاً فاعل | (الْبَاطِلَ) لفظاً اسم (إنَّ) (زَهُوقًا) خبر (كَانَ) | + | (زَهُوقًا) صفت مشبہ (هُوَ) فاعل |
| وَكَانَ الْإِنْسَانُ قَتُورًا | خبریہ فعلیہ | (قَتُورًا) خبر كَانَ | (الْإِنْسَانُ) اسم (كَانَ) | (وَ) استنافیہ | (كَانَ) فعل ناقص | (قَتُورًا) صفت مشبہ | (الْإِنْسَانُ) اسم (كَانَ)، (هُوَ) محلاً فاعل | (قَتُورًا) لفظاً خبر (كَانَ) | + | (قَتُورًا) صفت مشبہ (هُوَ) فاعل |
| فَأَبَىٰ أَكْثَرُ النَّاسِ إِلَّا كُفُورًا | خبریہ فعلیہ | (أَبَىٰ) فعل | (أَكْثَرُ النَّاسِ) فاعل | (فَ) عاطفہ، (إِلَّا) حرف استثناء | (أَبَىٰ) فعل معلوم | (أَكْثَرُ) اسم تفضیل مضاف (كُفُورًا) مصدر | (أَكْثَرُ) فاعل | (كُفُورًا) لفظاً مفعول بہ | (النَّاسِ) مضاف الیہ | (أَكْثَرُ) اسم تفضیل (كُفُورًا) مصدر سماعی |
| لَا يُؤْمِنُونَ بِالْآخِرَةِ حِجَابًا مَسْتُورًا | خبریہ فعلیہ | (لَا يُؤْمِنُونَ) فعل | (هُمْ) فاعل | (لَا) نافیہ غیر عاملہ فی اللفظ، (بِ) جارہ | (يُؤْمِنُونَ) فعل معلوم | (مَسْتُورًا) اسم مفعول | (لَا يُؤْمِنُونَ) فعل مضارع مرفوع (۳) ہم (هُمْ) محلاً فاعل (هُوَ) محلاً فاعل | (حِجَابًا) مفعول بہ (مَسْتُورًا) صفتہ | (الْآخِرَةِ) مجرور متعلق (يُؤْمِنُونَ) | (مَسْتُورًا) اسم مفعول (هُوَ) فاعل |
| قُلْ لَوْ كَانَ فِي الْأَرْضِ مَلَائِكَةٌ يَمْشُونَ مُطْمَئِنِّينَ لَنَزَّلْنَا عَلَيْهِمْ | خبریہ فعلیہ | (قُلْ، فِي الْأَرْضِ، لَنَزَّلْنَا) فعل | (أَنْتَ، مَلَائِكَةٌ، نَا) فاعل | (لَوْ) حرف شرط غیر جازم، (فِي) (عَلَىٰ) جارہ (لَ) برای تاکید غیر عامل | (كَانَ) فعل ناقص (يَمْشُونَ، نَزَّلْ، قُلْ) افعال معلوم | (مُطْمَئِنِّينَ) اسم فاعل | (أَنْتَ) فاعل (مَلَائِكَةٌ) اسم (كَانَ) (هُوَ، هُمْ) محلاً، (هُمْ) محلاً، (نَا) محلاً کلہم فاعل | (فِي الْأَرْضِ) محلاً باظہر متعلق (ثَابِتٌ) خبر كَانَ (مُطْمَئِنِّينَ) حال | (الْأَرْضِ) لفظاً مجرور متعلق محذوف | (مُطْمَئِنِّينَ) اسم فاعل (هُمْ) فاعل |

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند الیه | تعیین حروف عامله و غیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین صفت مشبه و عمل الاسماء العامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُمْ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِهٖ | خبریه اسمیه | (يُضْلِلْ، تَجِدَ) فعل | (هُوَ، أَنْتَ) فاعل | (وَ) عاطفه، (فَ) جزائیه، (لَنْ) ناصب عامل، (لَامْ) جاره، (مِنْ) جاره | (يُضْلِلْ، تَجِدَ) افعال معلوم | (مَنْ) اسم شرط جازم (دُوْنَ) اسم مضاف | (هُوَ، أَنْتَ) محلا فاعل | (مَنْ) محلا مفعول به مقدم (أَوْلِيَاءَ) مفعول به | (هُمْ) مجرور متعلق بمفعول ولی مقدر (دُوْنَ) مجرور متعلق نعت محذوف (الْأَوْلِيَاءِ) (ہ) مضاف الیه محلا | (مَنْ) اسم شرط جازم، (دُوْنَ) اسم مضاف |

## التمرین:

"إِنَّ قُرْآنَ الْفَجْرِ كَانَ مَشْهُودًا،، إِنَّ فَضْلَهُ كَانَ عَلَيْكَ كَبِيرًا،، وَإِنِّي لَأَظُنُّكَ يَا فِرْعَوْنُ مَثْبُورًا،، مَاكِثِينَ فِيهِ أَبَدًا،، وَمَنْ يُضْلِلْ فَلَنْ تَجِدَ لَهُ وَلِيًّا مُرْشِدًا،، وَتَحْسَبُهُمْ أَيْقَاظًا وَهُمْ رُقُودٌ،، فَتَرَى الْمُجْرِمِينَ مُشْفِقِينَ مِمَّا فِيهِ،، وَكَانَ اللّٰهُ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ مُقْتَدِرًا،، وَتَرَى الْأَرْضَ بَارِزَةً،، وَمَا كُنْتُ مُتَّخِذَ الْمُضِلِّينَ عَضُدًا".

هفتم اسم تفضیل الخ الی قوله ................................ هشتم مصدر،

## ترجمه:

اووم قسم اسم تفضیل دئ او دده استعمال پر درې قسمه دئ: اول صرف په "مِنْ" سره لکه: "زَيْدٌ أَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو". دوهم په الف لام سره لکه: "جَائَنِي زَيْدٌ نِ الْأَفْضَلُ". دريم په اضافت سره لکه: "زَيْدٌ أَفْضَلُ الْقَوْمِ" او د ده عمل په فاعل کي وي چي "هُوَ" دئ او د "أَفْضَلُ" فاعل ضمير د "هُوَ" دئ چي په ده کي مستتر دئ.

## الدرس الحادي والثلاثون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

## اوله خبره:

اسم تفضیل:

اووم قسم په اسماء عامله کي اسم تفضیل دئ.

د اسم تفضیل تعريف:

اسم تفضیل هغه اسم دئ چي دى مشتق سوى وي د مصدر څخه او دى دلالت كوي پر اشتراک د دوو شيانو په يوه صفت كي او يو پر هغه بل باندي زيات وي په دا صفت كي لكه: "خَلِيْلٌ اَعْلَمُ مِنْ سَعِيْدٍ وَ اَفْضَلُ مِنْهُ" او دى پر وزن د "اَفْعَلُ" وي كم يو چي په صفتيت كي زيات وي هغه ته "مُفَضَّلٌ" او هغه بل ته "مُفَضَّلٌ عَلَيْهِ يَا مَفْضُوْل" ويل كيږي او دى په مثال د صفت مشبه سره دئ په دوام و استمرار كي تر څو چي د ده خلاف يو قرينه نسي موجوده.

د اسم تفضيل عمل:

اسم تفضيل دوه قسمه عمل كوي:

۱. يو عمل د نصب كوي.
۲. او بل عمل د رفع كوي.

عمل د نصب يې په دوو شكلو سره راځي:

۱. اول شكل: كله بنا بر مفعوليت نصب ور كوي.
۲. دوهم شكل: او كله نصب بناء بر حاليت، يا ظرفيت، يا بناء بر تميز ور كوي.

اول عمل د نصب دئ:

چونكه اسم تفضيل عامل ضعيف دئ ځكه په ده كي د مصدر معنٰى بعينه نه پاته كيږي، بلكه په هغه كي زياتوب راځي نو ځكه دى په ټولو معمولاتو كي عمل نسي كولاى صرف په دا څلورو معمولاتو كي عمل كوي.

۱. اول: په تميز كي.
۲. دوهم: په حال كي.
۳. دريم: په ظرف كي.
۴. څلورم: په فاعل مستتر كي مطلقا عمل كوي لكه: "زَيْدٌ اَحْسَنُ مِنْكَ الْيَوْمَ رَاكِبًا" "اَلْيَوْمَ" ظرف مفعول فيه دئ "رَاكِبًا" حال دئ "أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا" دلته "مَالًا" و "نَفَرًا" تميزونه دي.

**دوهمه خبره:**

چونکه حال او ظرف دواړه ضعيف معمولات دي نو ځکه په دوی کي د عمل کولو دپاره د دوی د عامل د فعل سره ادنی مشابهت هم کافي دئ او دلته د اسم تفضيل د فعل سره په دې اعتبار مشابهت لري چي دی هم پر معنٰی حدثي باندي دلالت کوي چي د فعل يو جزء ده نو ځکه دی په حال او ظرف دواړو کي عمل کولای سي. او تميز هم ډېر زيات کمزوری معمول دئ ځکه اسم تام چي د فعل د معنٰی څخه بالکل خالي وي هغه هم په ده کي عمل کولای سي لکه: "عِنْدِيْ رِطْلٌ زَيْتًا" نو اسم تفضيل چي څه نه څه مشابهت د فعل سره لري نو هغه خو په ده کي په طريقه اولی سره عمل کولای سي.

لېکن اسم تفضيل په مفعول به کي بالکل عمل نسي کولای خواه که مفعول به مظهر وي او که مضمر وي ځکه د اسم تفضيل مفعول د "مُفَضَّلُ عَلَيْهِ" څخه سوا بل يو شی نسي راتلای او "مُفَضَّلُ عَلَيْهِ" هم چي ذکر سي هغه مجروره وي او داغه رنګه اسم تفضيل په مفعول مطلق، مفعول له، او مفعول معه، کي عمل نسي کولای.

دوهم عمل دَ رفع دئ:

رفع بنا بر فاعليت راځي او په دې کي درې صورتونه دي:

۱. اول صورت: په ضمير مستتر کي عمل کول.
۲. دوهم صورت: په ضمير بارز کي عمل کول.
۳. دريم صورت: په اسم ظاهر کي عمل کول.

اسم تفضيل په ضمير مستتر کي بغير د څه شرطه عمل کوي ځکه ضمير مستتر معمول ضعيف دئ لېکن په ضمير بارز او په اسم ظاهر کي بغير د شرط څخه عمل نسي کولای ځکه دا دواړه قوي معمولات دي، مګر په يوه ځای کي په اسم ظاهر کي عمل کولای سي او د هغه دپاره درې شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي اسم تفضيل به په اعتبار د لفظ سره د يوه شي صفت وي او په اعتبار د معنٰی سره به د داغه شي د متعلق صفت وي او دا متعلق به په داغه شي او په بل شي کي مشترک وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چې دا متعلق د شي به په داسې ([1]) شکل وي چې د دغه شي په اعتبار سره به "مُفَضَّلْ" وي او د هغه بل شي په اعتبار سره به "مُفَضَّلْ عَلَيْهِ" وي، يعني دى به "مُفَضَّلْ" او "مُفَضَّلْ عَلَيْهِ" دواړه وي لېکن په دوه اعتباره سره.

۳. دريم شرط يې دا دئ: چې د اسم تفضيل څخه به مخکې نفي، يا نهي، يا استفهام انکاري وي مثال يې لکه: "مَارَاَيْتُ رَجُلًا اَحْسَنَ فِيْ عَيْنِهِ الْكُحْلُ مِنْهُ فِيْ عَيْنِ زَيْدٍ". تفصيل يې په حاشيه کې موجود دئ.

خلاصه د شرائطو دا ده: (۱) چې اسم تفضيل به د لفظ په اعتبار سره د ماقبل صفت وي او د معنى په اعتبار سره به د مابعد صفت وي. (۲) اسم ظاهر به د ماقبل په اعتبار سره "مُفَضَّلْ عَلَيْهِ" وي او د

---

([1]) دا خبره ياد ساتل ضروري دي چې د متعلق د شي د داغه شي په اعتبار سره مفضل کېدل او د دوهم شي په اعتبار سره مفضل عليه کېدل دا د نفي د دخول څخه مخکې دئ ځکه د نفي د دخول څخه وروسته معنى بر عکس کيږي لکه: "مَارَاَيْتُ رَجُلًا اَحْسَنَ فِيْ عَيْنِهِ الْكُحْلُ مِنْهُ فِيْ عَيْنِ زَيْدٍ". اوس په دې مثال کې اول په اعتبار د اثبات سره معنى رائستل په کار دي چې د کلام معنى واضح او ښکاره سي بيا د نفي والا معنى کول په کار دي هغه په دې شکل چې دلته په دغه مخکني مثال کې "اَحْسَنُ" صيغه د اسم تفضيل ده په اعتبار د لفظ سره د يوه شي صفت دئ چې "رَجُلًا" دئ او په اعتبار د معنى سره د "رَجُلْ" د متعلق صفت دئ چې "اَلْكُحْلُ" دئ او "اَلْكُحْلُ" د "رَجُلْ" او د "زَيْدٌ" په سترګو کې مشترک دئ او دغه "اَلْكُحْلُ" په اعتبار د "عين" (سترګو) د "رجل" سره "مُفَضَّلْ" دئ او په اعتبار د "عين" د "زَيْد" سره "مُفَضَّلْ عَلَيْهِ" دئ نو په دې صورت کې معنى دا جوړيږي چې ما يو سړى وليدئ چې د هغه په سترګو کې رانجه د زيد تر سترګو ډېر ښائسته وه اوس په دې صورت کې د نفي څخه ماسوا ټوله شرطونه ښکاره سو لېکن کله چې پر ده باندې نفي داخلي سوي نو بيا اسم تفضيل منفي سو درې سره شرطونه موجود سوه او د نفي څخه وروسته "كُحْلْ" په اعتبار د "عَيْنْ" د "رَجُلْ" سره "مُفَضَّلْ عَلَيْهِ" سو او په اعتبار د "عَيْنْ" د "زَيْدٌ" سره "مُفَضَّلْ" سو او د نفي څخه وروسته مقصود د زيد د سترګو درانجو تعريف دئ. په دې مثال کې "مَا" نافيه دئ "رَجُلًا" مفعول به دئ د "رَاَيْتُ" دپاره او "اَحْسَنَ" اسم تفضيل دئ په "اَلْكُحْلُ" کې عمل کوي او "اَلْكُحْلُ" اسم ظاهر دئ چې د "اَحْسَنَ" فاعل دئ، د دې بل مثال لکه: "مَارَاَيْتُ رَجُلًا اَوْقَعَ فِيْ نَفْسِهِ النَّصِيْحَةُ مِنْهَا فِيْ نَفْسِ زُهَيْرٍ".

او په دې صورت کې اسم تفضيل په اسم ظاهر کې ځکه عمل کوي چې دلته اسم تفضيل په معنى د فعل ماضي د "حَسُنَ" سره جوړ سوى دئ ځکه دا قاعده ده چې کله هم اسم تفضيل تحت النفي واقع سي نو هغه په معنى د فعل سره وي.

او بله قاعده دا ده چې کله پر مقيد بالقيد باندې نفي داخلي سي نو هلته نفي د قيد راځي نو لهذا کله چې پر اسم تفضيل باندې نفي داخلي سي نو نفي د صفت تفضيلي راځي او اصل فعل باقي پاته کيږي نو "اَحْسَنَ" په معنى د "حَسُنَ" فعل سره خپل فاعل اسم ظاهر ته رفع ور کوي، لکه: "مَا مِنْ اَيَّامٍ اَحَبُّ اِلَى اللهِ فِيْهَا الصَّوْمُ مِنْهُ فِيْ عَشْرَةِ ذِى الْحَجَّةِ". (شرح جامي)

ما بعد په اعتبار سره به "مُفَضَّلْ" وي. (۳) د اسم تفضيل ځخه مخکې به نفي يا نهي يا استفهام انکاري وي.

## دريمه خبره:

د اسم تفضيل د استعمال صورتونه:

اسم تفضيل په درې طريقو سره استعمالیږي:

په دې شرط چې دی به خبر نه وي او مفضل عليه به معلوم نه وي ورنه بيا د ده استعمال په دغه درو طريقو سره ضروري نه دئ.

**اوله طريقه: اسم تفضيل کله په "مِنْ" سره استعمالیږي لکه: "زَيْدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍ".**

**د دې اول قسم د استعمال حکم (۱) اسم تفضيل که چیري مستعمل په "مِنْ" سره وو نو بيا دی همېشه مفرد مذکر راوړل واجب دئ خواه که د ده موصوف تثنيه وي او که جمع وي، مذکر وي او که**

---

(۱) اسم تفضيل همېشه د "اَفْعَلُ" پر وزن راځي او لفظ د "خَيْرٌ وَ شَرٌّ او حَبٌّ" هم اسم تفضيل دئ ځکه دا په اصل کي "اَخْيَرُ. اَشْرَرُ اَحْبَبُ" وو بيا همزه د کثرت استعمال په وجه حذف سو، امام اخفش رحمة الله عليه فرمايي: چې په دوی کي دوه شذوذ دي:

۱. يو حذف د همزه دئ.

۲. او بل عدم وجود د فعل دئ ځکه د دوی فعل نسته.(شرح التصريح جلد ۱ صفحه ۹۲)

او د "فُعْلَى" وزن يې د مؤنث دپاره شرط دئ ورنه د "اَفْعَلُ" صيغه اسم تفضيل نه جوړیږي لکه: "اَبْيَضُ. بُيْضَى. اَحْمَرُ. حُمْرَى" د دوی معنی صرف سپين والی او سروالی دئ د زياتوب معنی په دوی کي نسته.

د اسم تفضيل دپاره دغه شرطونه دي "كُلُّ فِعْلٍ ثُلَاثِيٍّ مُتَصَرِّفٌ مَعْلُوْمٌ تَامٌّ مُثْبَتٌ قَابِلٌ لِلتَّفَاضُلِ مُبْنِيٌّ لِلْفَاعِلِ لَيْسَ الْوَصْفُ مِنْهُ عَلَى اَفْعَلَ، وَلَا يَكُوْنُ دَالًّا عَلَى لَوْنٍ اَوْ عَيْبٍ اَوْ حُلْيَةٍ".

د اسم تفضيل او اسم فاعل په مينځ کي فرق په درو شکلو سره راځي:

۱. او د اسم تفضيل د عامل جوړيدلو دپاره هيڅ شرط نسته.

۲. د اسم تفضيل فاعل همېشه ضمير مستتر وي او د اسم فاعل فاعل کله ضمير راځي او کله اسم ظاهر راځي.

۳. او اسم تفضيل صرف فاعل غواړي او اسم فاعل که چیري د فعل متعدي ځخه وو نو بيا دی مفعول به هم غواړي.

د اسم تفضيل او اسم مبالغه په مينځ کي فرق دا دئ چې په اسم مبالغه کي د زياتوب معنی في نفسه موجوده وي لکه: "غَفَّارٌ" ډېر مهربانه او په اسم تفضيل کي د زياتوب معنی بنسبت و غيرته وي لکه: "اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَیْ اَكْبَرُ مِنْ كُلِّ شَيْئٍ".

مؤنث وي او دغه "مِنْ" جاره وي و "مُفَضَّلْ عَلَيْهِ" ته جرور كوي لكه: "خَالِدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو، فَاطِمَةُ اَفْضَلُ مِنْ سُعَادٍ، زَيْدَانِ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو، اِمْرَئَتَانِ اَفْضَلُ مِنْ رَجُلٍ، اَلْمُجَاهِدُوْنَ اَفْضَلُ مِنَ الْقَاعِدِيْنَ، اَلْمُتَعَلِّمَاتُ اَفْضَلُ مِنَ الْجَاهِلَاتِ، هٰذَانِ اَفْضَلُ مِنْ هٰذَا، هَاتَانِ اَنْفَعُ مِنْ هَاتَيْنِ" او كله كله "مِنْ" جاره مقدر وي لكه: "وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَى: اَیْ خَيْرٌ مِنَ الْحَيَاةِ الدُّنْيَا وَ اَبْقٰى مِنْهَا" او كله كله د "مِنْ" اثبات و حذف دواړه سره جمع سوي وي لكه: "أَنَا أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا وَأَعَزُّ نَفَرًا: اى اَعَزُّ مِنْكَ" او داغه رنګه د "مِنْ" تقديم جائز نه دئ مګر چيري مجرور اسم استفهام وو يا مضاف وه اسم استفهام ته بيا يې تقديم مع المجرور واجب دئ لكه: "مِمَّنْ اَنْتَ خَيْرٌ، وَمِنْ فَرَسِ مَنْ فَرَسُكَ اَسْبَقُ".

**دوهمه طريقه: اسم تفضيل كله په الف لام عهد خارجي سره استعماليږي لكه: "زَيْدُنِ الْاَفْضَلُ".**

**د دې دوهم قسم د استعمال حكم:**

**كه چيري اسم تفضيل معرف باللام وو بيا د ده دپاره دوه حكمونه دي:**

١. اول حكم يې دا دئ: چي په دې صورت كي د ده استعمال په "مِنْ" سره هيڅ كله جائز نه دئ.

٢. دوهم حكم يې دا دئ: چي د ده مطابقت د موصوف سره په افراد، تثنيت، جمعيت، تذكير، تانيث كي واجب دئ لكه: "زَيْدُ نِ الْاَفْضَلُ، اَلزَّيْدَانِ الْاَفْضَلَانِ، اَلزَّيْدُوْنَ الْاَفْضَلُوْنَ، هِنْدُ نِ الْفُضْلٰى، اَلْهِنْدَاتُ الْفُضْلَيَاتُ".

## څلورمه خبره:

**دريمه طريقه: اسم تفضيل كله په اضافت سره استعماليږي اضافت په دوو طريقو سره راځي:**

١. كله اضافت و نكره ته وي.

٢. كله اضافت و معرفه ته وي.

**د اضافت الى النكره د استعمال حكم:**

---

او پر اسم تفضيل باندي هيڅكله تنوين نسي راتلای او دی كله د فاعل په معنى كي زياتوب پيدا كوي لكه: "اَضْرَبُ" او كله د اسم مفعول په معنى كي زياتوب پيدا كوي لكه، "اَمْرَتُ اَشْهَرَ" بمعنى مشهورتر. او كله كله مفضل عليه حذف كيږي د يو قرينه په وجه لكه: "اَللّٰهُ اَكْبَرُ اَیْ اَكْبَرُ مِنْ كُلِّ شَيْئٍ". (اوضح المسالک شرح الفيه ابن مالک جلد ٢ صفحه ٤٩٤)

اسم تفضيل كه چيري و نكره ته مضاف وو بيا به دى هميشه مفرد مذكر راځي. لېكن د مفضل او مضاف اليه په مينځ كي مطابقت ضروري دي. لكه: "خَالِدٌ اَفْضَلُ قَائِدٍ، فَاطِمَةُ اَفْضَلُ اِمْرَءَةٍ، اَلزَّيْدَانِ اَفْضَلُ رَجُلَيْنِ، اَلْهِنْدَانِ اَفْضَلُ اِمْرَئَتَيْنِ، اَلْمُجَاهِدُوْنَ اَفْضَلُ رِجَالٍ، اَلْمُتَعَلِّمَاتُ اَفْضَلُ نِسَاءٍ".

د اضافت الى المعرفه د استعمال حكم:

د اضافت الى المعرفه دوه صورتونه دي:

۱. اول صورت: يا به د تفضيل والا معنٰى باقي وي.

۲. دوهم صورت: يا به د تفضيل والا معنٰى ختمه سوې وي.

كه چيري د تفضيل والا معنٰى ختم سوې وه يعني تاويل په كي سوى وو بيا د ده مطابقت د موصوف سره واجب دئ لكه: "اَلنَّاقِصُ وَالْاَشَجُّ اَعْدَلَا بَنِيْ مَرْوَانَ اَىْ هُمَا عَادِلَا هُمْ" دلته اسم تفضيل د "عَادِلٌ" په معنٰى سره دئ.

او كه چيري د اسم تفضيل معنٰى باقي پاته وه بيا مطابقت او عدم مطابقت دواړه جائز دي د مطابقت مثال لكه: "وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا فِيْ كُلِّ قَرْيَةٍ اَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا" او د عدم مطابقت مثال لكه: "وَلَتَجِدَنَّهُمْ أَحْرَصَ النَّاسِ". او په حديث مباركه كي دواړه مثالونه موجود دي: " اَلَا اُخْبِرُكُمْ بِاَحَبِّكُمْ اِلَيَّ وَ اَقْرَبِكُمْ مِنِّيْ مَجَالِسَ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ اَحَاسِنُكُمْ اَخْلَاقًا، الْمُوَطَّئُوْنَ اَكْنَافًا، الَّذِيْنَ يَأْلَفُوْنَ وَيُؤْلَفُوْنَ".

**فائده:**

اسم تفضيل كله كله د معنٰى تفضيلي څخه خالي وي بيا كله د اسم فاعل معنٰى لره متضمن وي لكه: "رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِكُمْ: اَىْ عَالِمٌ بِكُمْ"، او كله د صفت مشبه معنٰى لره متضمن وي لكه: "وَهُوَ الَّذِيْ يَبْدَأُ الْخَلْقَ ثُمَّ يُعِيدُهُ وَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِ: اَىْ وَ هُوَ هَيِّنٌ عَلَيْهِ. اَكْرَمْتُ الْقَوْمَ اَكْبَرَهُمْ وَ اَصْغَرَهُمْ اَىْ صَغِيْرَهُمْ وَ كَبِيْرَهُمْ". لېكن كه چيري معرف باللام وو يا يې اضافت و نكره ته سوى وو يا په "مِنْ" سره مستعمل سوى وو بيا يې خالي والى د معنٰى تفضيلي څخه جائز نه دئ.

هشتم اسم مصدر بشرط آنکه مفعول مطلق نباشد عمل فعلش کند چون "اَعۡجَبَنِيۡ ضَرۡبُ زَيۡدٍ عَمۡرًوا".

## ترجمه:

اتم قسم مصدر دئ په دې شرط چې مفعول مطلق به نه وي او دی د خپل فعل عمل کوي، لکه: "اَعۡجَبَنِيۡ ضَرۡبُ زَيۡدٍ عَمۡرًوا".

## پنځمه خبره:

مصدر:
اتم قسم د اسماء عامله څخه مصدر دئ.
د مصدر تعريف:
**مصدر هغه اسم دئ چې دلالت کوي پر حدث باندې يعني پر داسې معنٰى چې هغه قائم باالغير وي او د ده څخه افعال او مشتقات جوړيږي لکه: "ضَرۡبٌ".**
د مصدر عمل:
مصدر د خپل فعل عمل کوي يعني که چيرې مصدر لازمي وو صرف فاعل ته رفع ور کوي لکه: "اَعۡجَبَنِيۡ قِيَامُ زَيۡدٍ" دلته "قِيَامٌ" مصدر فقط و فاعل يعني و "زَيۡد" ته رفع ور کړې ده. "زَيۡد" که څه هم لفظاً مجروره دئ ليکن محلا مرفوع دئ او که چيرې مصدر متعدي وو بيا فاعل ته رفع او مفعول به ته نصب ور کوي، لکه: "اَعۡجَبَنِيۡ ضَرۡبُ زَيۡدٍ عَمۡرًوا".
د مصدر د عمل (۱) دپاره شرائط:
مصدر چې کله عمل کوي د هغه دپاره نه (۹) شرطونه دي:
۱. اول شرط يې دا دئ: چې مصدر به مفرد وي احترازي مثال لکه: "جَلَسۡتَ جَلۡسَتَيۡنِ".

---

(۱) د مصدر د عمل دپاره دوه مقامونه دي مصدر په دوه ځايو کې عمل کوي:
۱. اول ځای: يو په هغه ځای کې چې دی د لفظ د فعل څخه بدل واقع سوی وي لکه: "ضَرۡبًا زَيۡدًا".
۲. دوهم ځای: په هغه ځای چې د مصدر په ځای کې د فعل راتلل سره د "اَنۡ" يا د "مَا" صحيح وي لکه: "وَلَوۡلَا دَفۡعُ اللهِ النَّاسَ" پر ځای "لَوۡلَا اَنۡ يَّدۡفَعَ" و "يُعۡجِبُنِيۡ قَوۡلُکَ الۡحَقَّ اۤلۡاٰنَ" پر ځای "يُعۡجِبُنِيۡ مَا تَقُوۡلُ الۡحَقَّ اۤلۡاٰنَ" صحيح کيږي. (تسهيل)

۲. دوهم شرط يې دا دئ؛ چې مصدر به مفعول مطلق نه‌وي احترازي مثال لکه؛ "ضَرَبْتُ ضَرْبًا عَمْرًوا".

۳. دریم شرط يې دا دئ: مصدر به موصوف نه وي يعني دی به د عمل کولو څخه مخکې موصوف نه جوړيږي احترازي مثال لکه: "اَعْجَبَنِي ضَرْبُکَ الشَّدِيْدُ زَيْدًا".

۴. څلورم شرط يې دا دئ: مصدر به اسم "مُصَغَّرْ" نه وي احترازي مثال لکه: "يُعْجِبُنِي ضُرَيْبُکَ اللِّصَّ".

۵. پنځم شرط يې دا دئ: په مصدر کې به تاء د وحدت نه وي احترازي مثال لکه: "ضَرَبْتُ ضَرْبَةً وَاحِدَةً".

۶. شپږم شرط يې دا دئ: د مصدر و د معمول په مینځ کې بهٔ فاصله ([1]) نه وي.

۷. اووم شرط يې دا دئ: د مصدر معمول به پر مصدر ([2]) مقدم نه وي.

۸. اتم شرط يې دا دئ: مصدر به معرف باللام نه وي لیکن د معرف باللام په صورت کې کله کله عمل کوي.

۹. نهم شرط يې دا دئ: چې د دغه به مراد معنی حدثي وي لکه: "اَلْعِلْمُ نُوْرٌ".

د مصدر استعمال:

مصدر په درې طریقو سره استعمالیږي:

---

([1]) دلته پر فاصله باندي دا سوال واردیږي چې تا وویل د مصدر او د معمول په مینځ کې به فاصله نه وي په "اِنَّهٗ عَلٰى رَجْعِهٖ لَقَادِرٌ() يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ" کې "رَجْعَةٌ" مصدر دئ په "يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ" کې عمل کوي حالانکه دلته "لَقَادِرٌ" فاصل موجود دئ د هغه جواب دا دئ چې دلته "رَجْعَةٌ" مصدر عمل نه کوي بلکه دلته "يَرْجِعُ" فعل مقدر عمل کوي او "يَوْمَ تُبْلَى السَّرَائِرُ" د "رَجْعَةٌ" دپاره معمول نه دئ بلکه د "يَرْجِعُ" دپاره معمول دئ. (حاشیه خضري صفحه ۲۲)

([2]) د مصدر د معمول تقديم خو جائز نه دئ لیکن که چیرې مصدر د فعل څخه بدل وو او د هغه نائب وو بیا يې تقديم جائز دئ لکه: "عَمَلَکَ اِتْقَانًا" او داغه رنګ نه چیرې د ده معمول ظرف وو یا جار و مجرور وه بیا يې هم تقديم جائز دئ لکه؛ "فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ. وَلَا تَأْخُذْکُمْ بِهِمَا رَأْفَةٌ". (جامع الدروس العربیة جلد ۳ صفحه ۲۰۸)

۱. اوله طريقه: مصدر کله منون يعني په تنوين سره استعماليږي لکه: "فَكُّ رَقَبَةٍ، أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ، يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ" دلته "إِطْعَامٌ" مصدر و "يَتِيمًا" ته نصب ور کړی دئ.

۱. دوهمه طريقه: مصدر کله په اضافت سره استعماليږي لکه: "وَلَوْلَا دَفْعُ اللهِ النَّاسَ" دلته لفظ د "دَفْعُ" مصدر دئ مضاف دئ و "الله" ته هغه يې فاعل دئ "اَلنَّاسَ" يې مفعول دئ.

۲. دريمه طريقه: مصدر کله په الف لام سره استعماليږي لکه: "فَلَمْ أَنْكُلْ عَنِ الضَّرْبِ مُسْمِعًا".

## شپږمه خبره:

د تنوين په صورت کي د مصدر عمل د قياس سره زيات موافق دئ ځکه د ده عمل د فعل د مشابهت (¹) په وجه دئ او فعل نکره دئ نو په دې صورت کي دی هم نکره دئ او د اضافت په صورت کي د ده عامل واقع کېدل بنا بر کثرت او د الف لام په صورت د ده عامل واقع کېدل بنا بر اقليت دئ.

د مصدر مضاف حالتونه:

د مصدر مضاف دپاره پنځه حالتونه دي:

۱. اول حالت: مصدر کله و فاعل ته مضاف وي او د ده څخه وروسته مفعول به راغلی وي لکه: "وَلَوْلَا دَفْعُ اللهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ".

۲. دوهم حالت: کله د دې بر عکس وي يعني و مفعول ته مضاف وي او د هغه وروسته فاعل راغلي وي لکه: "اَعْجَبَنِيْ شُرْبُ الْعَسَلِ زَيْدٌ، وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا".

۳. دريم حالت: مصدر کله و فاعل ته مضاف وي لېکن مفعول به نه وي ذکر لکه: "وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ".

(¹) دلته پر مشابهت باندي دا سوال وارديږي چي تاويل د مصدر عمل د فعل د مشابهت په وجه دی حالانکه مصدر اصل دئ او فعل فرع دئ بعض حضراتو منعي جواب ور کړی دئ چي د مصدر عمل د فعل د مشابهت په وجه نه دئ او بعض حضراتو تسلمي جواب ور کړی دئ چي دلته مراد د فرع الحاق دئ د اصل سره په عمل کي، نه مشابهت.(حاشيه خضري جلد ۲ صفحه ۲۲)

۴. څلورم حالت: كله د دې بر عكس وي يعني و مفعول به ته مضاف وي او فاعل نه وي ذكر لكه: "لَا يَسْأَمُ الإِنْسَانُ مِنْ دُعَاءِ الخَيْرِ".

۵. پنځم حالت: كله مصدر مضاف وي و ظرف ته او د هغه څخه وروسته فاعل ته رفع او مفعول به ته نصب ور كوي لكه: "أَعْجَبَنِيْ اِنْتِظَارُ يَوْمِ الْجُمُعَةِ زَيْدٌ عَمْرًوا".

## اوومه خبره:

مصدر ميمي هم د خپل فعل عمل كوي لكه: "مُحْتَمَلُكَ الْمَصَائِبَ خَيْرٌ مِنْ مَرْكَبِكَ الْجَزَعَ" دلته "مُحْتَمَلُ" او "مَرْكَبُ" دواړه مصدر ميمي دي مضاف دي و خپل فاعل ته چي ضمير د مخاطب دئ او "اَلْمَصَائِبَ" و "اَلْجَزَعَ" يې مفعولونه دي او اسم مصدر هم عمل كوي لېكن عمل يې ډېر كم دئ لكه: "وَبَعْدَ عَطَائِكَ الْمِئَةَ الرِّتَاعَا" "إِذَا صَحَّ عَوْنُ الْخَالِقِ الْمَرْءَ" دلته "اَلْإِعْطَاءُ" اسم مصدر دئ په معنٰى د "اعْطَاءٌ" سره دئ او "عَوْنٌ" مصدر په معنى د "اَلْإِعَانَةُ" سره دئ او علم مصدر بالكل عمل نسي كولاى لكه: "يَسَارُ" عَلَم د "يُسْرَ" دئ او "فَخَارِ" علم د "فُخُوْرَ" دئ.

د مصدر او فعل په مينځ كي فرق:

د مصدر او فعل په مينځ كي فرق په درو طريقو سره كيږي:

۱. اول فرق: د فعل فاعل نسي حذف كېداى او د مصدر فاعل حذف كيږي.

۲. دوهم فرق: په فعل كي د فاعل ضمير مستتر كيږي او په مصدر كي ضمير نسي مستتر كېداى.

۳. دريم فرق: فعل مجهول و نائب فاعل ته رفع ور كوي او مصدر و نائب فاعل ته رفع نسي ور كولاى.

د مصدر د فاعل حذف جائز دئ بغير د تحمل د ضمير د فاعل لكه: "سُرَّنِيْ تَكْرِيْمُ الْعَامِلِيْنَ اَىْ تَكْرِيْمُكُمْ" يا "تَكْرِيْمُ النَّاسِ". او داغه رنګه د مفعول حذف يې هم جائز دئ لكه: "وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ إِلَّا عَنْ مَوْعِدَةٍ وَعَدَهَا إِيَّاهُ: اى اِسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ رَبَّهُ لِأَبِيهِ".

## جملے:

| عنوان | خبریہ انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ اور غیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | اسم تفضیل و عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَذِكْرُ اللّٰهِ أَكْبَرُ | خبریہ اسمیہ | أَكْبَرُ | ذِكْرُ اللّٰهِ | (وَ) عاطفہ (اَلَّام) ابتدائیہ للتاکید | + | (ذِكْرُ) اسم مضاف (أَكْبَرُ) اسم تفضیل | (ذِكْرُ) مبتداء (أَكْبَرُ) خبر، (هُوَ) فاعل | + | (اللّٰهِ) مضاف الیہ | (أَكْبَرُ) اسم تفضیل عامل فی ضمیرہ (هُوَ) فاعل اسم تفضیل |
| قُلْ هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِيْنَ أَعْمَالًا | انشائیہ طلبیہ | قُلْ | أَنْتَ | (هَلْ) حرف استفہام غیر عامل (بِ) جارہ عاملہ | (قُلْ، نُنَبِّئُ) فعل معلوم | (اَلْأَخْسَرِيْنَ) اسم تام | (أَنْتَ، نَحْنُ) فاعل (هُمْ) محلا فاعل | (كُمْ) محلا مفعول بہ (أَعْمَالًا) تمیز من ضمیر (الْأَخْسَرِيْنَ) | (اَلْأَخْسَرِيْنَ) مجرور متعلق (نُنَبِّئُكُمْ) | (اَلْأَخْسَرِيْنَ) اسم تام عامل فی ضمیرہ (هُمْ) وتمیزہ (أَعْمَالًا) |
| وَأَنْتَ أَرْحَمُ الرَّاحِمِيْنَ | خبریہ اسمیہ | أَرْحَمُ | أَنْتَ | (وَ) حالیہ یا عاطفہ | + | (اَلرَّاحِمِيْنَ) اسم فاعل (أَرْحَمُ) اسم تفضیل | (أَنْتَ) محلا مبتداء (هُمْ) فاعل (اَلرَّاحِمِيْنَ) | + | (اَلرَّاحِمِيْنَ) مضاف الیہ | (أَرْحَمُ) اسم تفضیل عامل فی ضمیرہ (أَنْتَ) |
| أَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ خَيْرٌ مَقَامًا وَأَحْسَنُ نَدِيًّا | انشائیہ اسمیہ | خَيْرٌ | أَيُّ الْفَرِيْقَيْنِ | (وَ) عاطفہ | + | (أَيُّ) اسم استفہام مضاف، (خَيْرٌ، أَحْسَنُ نَدِيًّا) بمعنی (نَادِيْ) اسم فاعل | (أَيُّ) ضمیر مبتداء (خَيْرٌ) خبر (هُوَ هُوَ) محلا (هُوَ) فاعل | (مَقَامًا نَدِيًّا) تمیز | (اَلْفَرِيْقَيْنِ) مضاف الیہ | (خَيْرٌ، أَحْسَنُ) اسم تفضیل تام عاملان فی فاعلہما (هُوَ) و تمیزہما (مَقَامًا نَدِيًّا) |
| هُوَ أَفْصَحُ مِنِّيْ لِسَانًا | خبریہ اسمیہ | (أَفْصَحُ) خبر | (هُوَ) مبتداء | (مِنْ) جارہ | + | (أَفْصَحُ) اسم تفضیل | (هُوَ) مبتداء (أَفْصَحُ) خبر (هُوَ) فاعل | (لِسَانًا) تمیز | (یْ) محلا مجرور متعلق (أَفْصَحُ) | (أَفْصَحُ) اسم تفضیل تام عامل فی فاعلہ (هُوَ) و تمیزہ (لِسَانًا) |
| وَنَحْنُ أَقْرَبُ إِلَيْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِيْدِ | خبریہ اسمیہ | (أَقْرَبُ) خبر | (نَحْنُ) مبتداء | (وَ) عاطفہ (إِلَى) (مِنْ) جارہ | + | (أَقْرَبُ) اسم تفضیل تام (حَبْلِ) مضاف (الْوَرِيْدِ) (فَعِيْل) بمعنی فاعل | (نَحْنُ) محلا مبتداء (أَقْرَبُ) خبر (نَحْنُ) فاعل | + | (ہ) مجرور متعلق (أَقْرَبُ) (حَبْلِ) مجرور متعلق (أَقْرَبُ) (الْوَرِيْدِ) مضاف الیہ | (أَقْرَبُ) اسم تفضیل عامل فی فاعلہ (نَحْنُ) |
| وَالْآخِرَةُ خَيْرٌ وَأَبْقَى | خبریہ اسمیہ | (خَيْرٌ وَأَبْقَى) خبر | (اَلْآخِرَةُ) مبتداء | (وَ) (وَ) عاطفہ | + | (خَيْرٌ وَأَبْقَى) اسم تفضیل | (اَلْآخِرَةُ) مبتداء (خَيْرٌ) خبر (أَبْقَى) معطوف علی (خَيْرٌ) (هُوَ، هُوَ) محلا فاعل | + | + | (خَيْرٌ وَأَبْقَى) اسم تفضیل عامل فی ضمیر (هُوَ) |
| وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا | انشائیہ اسمیہ | (أَظْلَمُ) خبر | (مَنْ) مبتداء | (وَ) استنافیہ (مِنْ) جارہ (عَلَى) جارہ | (افْتَرَى) فعل معلوم | (مَنْ) اسم استفہام (أَظْلَمُ) اسم تفضیل | (مَنْ) محلا مبتداء (أَظْلَمُ) اسم تفضیل خبر (هُوَ، هُوَ) محلا فاعل | (كَذِبًا) مفعول بہ | (مِمَّنْ) موصول مجرور متعلق (أَظْلَمُ) (افْتَرَى) محلا (اللّٰهِ) مجرور متعلق (افْتَرَى) | (أَظْلَمُ) اسم تفضیل عامل فی فاعلہ (هُوَ) |

| عنوان | خبریہ انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ و غیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | اسم تفضیل و عملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَاللّٰهُ أَشَدُّ بَأْسًا وَأَشَدُّ تَنْكِيلًا | خبریہ اسمیہ | (أَشَدُّ، أَشَدُّ) | أَللّٰهُ، هُوَ | (وَ) استانیہ (وَ) عاطفہ | + | ٢. (أَشَدُّ) اسم تفضیل (تَنْكِيلًا) مصدر | (أَللّٰهُ) مبتداء (أَشَدُّ) خبر (أَشَدُّ) معطوف علی (أَشَدُّ) (هُوَ هُوَ) محلا فاعل | (بَأْسًا تَنْكِيلًا) تمیز | + | (٢. أَشَدُّ) اسم تفضیل تام عامل فی ضمیرہ (هُوَ) و تمیزہ (بَأْسًا تَنْكِيلًا) |
| وَاللّٰهُ خَيْرُ الرَّازِقِينَ | خبریہ اسمیہ | (خَيْرُ) خبر | (أَللّٰهُ) مبتداء | (وَ) عاطفہ یا استانیہ | + | (خَيْرُ) اسم تفضیل (الرَّازِقِينَ) اسم فاعل | (أَللّٰهُ) مبتداء (خَيْرُ) خبر، (هُوَ، هُمْ) محلا فاعل | + | (أَلرَّازِقِينَ) مضاف الیہ | (خَيْرُ) اسم تفضیل عامل فی ضمیرہ (هُوَ) |
| هُوَ أَعْلَمُ بِمَنِ اتَّقَىٰ | خبریہ اسمیہ | (أَعْلَمُ) خبر | (هُوَ) مبتداء | (بِ) جارہ | (اِتَّقَىٰ) فعل معلوم | (أَعْلَمُ) اسم تفضیل مَنْ اسم موصول غیر عامل | (هُوَ) محلا مبتداء (أَعْلَمُ) خبر (هُوَ هُوَ) محلا فاعل | + | (مَنِ اتَّقَىٰ) محلا مجرور متعلق (أَعْلَمُ) | (أَعْلَمُ) اسم تفضیل عامل فی ضمیرہ (هُوَ) |
| وَالسَّاعَةُ أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ | خبریہ اسمیہ | (أَدْهَىٰ وَأَمَرُّ) خبر | (أَلسَّاعَةُ) مبتداء | (وَ) استانیہ (وَ) عاطفہ | + | (أَدْهَىٰ و أَمَرُّ) اسم تفضیل | (أَلسَّاعَةُ) مبتداء (أَدْهَىٰ) خبر (أَمَرُّ) معطوف (هُوَ، هُوَ) محلا فاعل | + | + | (أَدْهَىٰ، أَمَرُّ) اسم تفضیل عامل فی ضمیرہ (هُوَ) |
| لَا يَسْأَمُ الْإِنْسَانُ مِنْ دُعَاءِ الْخَيْرِ | خبریہ فعلیہ | (لَا يَسْأَمُ) فعل | (الْإِنْسَانُ) فاعل | (لَا) نافیہ (مِنْ) جارہ | (لَا يَسْأَمُ) فعل معلوم | (دُعَا) مصدر مضاف الی المفعول و فاعلہ محذوف ای من دعاءہ الخیر | (أَلْإِنْسَانُ) فاعل (هُ) فاعل محذوف | (أَلْخَيْرِ) محلا منصوب لِأَنَّهُ مفعول للمصدر | (أَلْخَيْرِ) لفظا مجرور مضاف الیہ (مِنْ دُعَاءِ) متعلق (يَسْأَمُ) | (دُعَاءِ) مصدر مضاف الی المفعول و فاعلہ محذوف ای من دعاءہ الخیر |
| وَلَا يَخَافُونَ لَوْمَةَ لَائِمٍ | خبریہ فعلیہ | (لَا يَخَافُونَ) فعل | (هُمْ) فاعل | (وَ) عاطفہ (لَا) نافیہ | (يَخَافُونَ) فعل معلوم | (لَوْمَةَ) مصدر مضاف (لَائِمٍ) اسم فاعل | (هُمْ) فاعل (لَائِمٍ) محلا مرفوع فاعل (لَوْمَةَ) مصدر | (لَوْمَةَ) مفعول بہ | (لَائِمٍ) مضاف الیہ | (لَوْمَةَ) مصدر (لَائِمٍ) فاعلہ و ہو عامل فی الفاعل |
| إِنَّ نَاشِئَةَ اللَّيْلِ هِيَ أَشَدُّ وَطْئًا وَأَقْوَمُ قِيلًا | خبریہ اسمیہ | هِيَ أَشَدُّ الخ أَشَدُّ وَأَقْوَمُ قِيلًا | نَاشِئَةَ هِيَ، هُوَ، هُوَ، هُوَ | (إِنَّ) مشبہ بالفعل (وَ) عاطفہ | + | (نَاشِئَةَ) مصدر (أَشَدُّ، أَقْوَمُ) اسم تفضیل تام (وَطْئًا) مصدر (قِيلًا) صفت مشبہ | (هِيَ، أَشَدُّ) فی محل الرفع خبر (إِنَّ) (هُوَ، هُوَ، هُوَ) فاعل (هِيَ) مبتداء (أَشَدُّ) خبر (أَقْوَمُ) معطوف | (نَاشِئَةَ) اسم (إِنَّ) (وَطْئًا قِيلًا) تمیز عن ضمیر (أَشَدُّ و أَقْوَمُ) | (أَللَّيْلِ) مضاف الیہ | (نَاشِئَةَ اللَّيْلِ) بمعنی (قِيَامُ اللَّيْلِ) مصدر مضاف الی المفعول و فاعلہ (أَلنَّفْسُ) مقدر |
| أَوْ إِطْعَامٌ فِي يَوْمٍ ذِي مَسْغَبَةٍ يَتِيمًا ذَا مَقْرَبَةٍ | خبریہ اسمیہ | (إِطْعَامٌ) خبر | (هِيَ) مبتداء | (أَوْ) عاطفہ (فِي) جارہ | + | (إِطْعَامٌ) مصدر (ذِي) اسم مضاف (ذَا) اسم مضاف (مَسْغَبَةٍ مَقْرَبَةٍ) مصدر غیر عامل | (هِيَ) مبتداء محذوف (إِطْعَامٌ) خبر | (يَتِيمًا) مفعول بہ للمصدر (ذَا) صفت | (فِي يَوْمٍ) متعلق (إِطْعَامٌ) (ذِي) صفت (الْيَوْمِ) (مَسْغَبَةٍ مَقْرَبَةٍ) مضاف الیہ | (إِطْعَامٌ) مصدر عامل فی المفعول وہو (يَتِيمًا) و فاعلہ محذوف |

## التمرين:

"إِنَّ أَكْرَمَكُم عِندَ اللهِ أَتْقَاكُمْ.. هُمْ أَحْسَنُ أَثَاثًا وَرِئْيًا. أَأَنْتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا.. لَمَقْتُ اللهِ أَكْبَرُ مِنْ مَقْتِكُمْ.. وَكَذٰلِكَ جَعلْنَا فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا.. أَلَيْسَ اللهُ بِأَحْكَمِ الْحَاكِمِينَ.. وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللهِ حَدِيثًا.. وَإِثْمُهُمَا أَكْبَرُ مِن نَفْعِهِمَا.. وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ.. وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِمَّنْ دَعَا إِلَى اللهِ.. تَخَافُونَهُمْ كَخِيفَتِكُمْ أَنْفُسَكُمْ.. وَمَا كَانَ اسْتِغْفَارُ إِبْرَاهِيمَ لِأَبِيهِ.. وَلَوْلَا دَفْعُ اللهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ".

نهم اسم مضاف الخ: ............ الی قوله بدانکه عوامل معنویه.

## ترجمه:

نهم قسم د اسماء عامله څخه اسم مضاف دئ چي مضاف اليه ته جر ور کوي لکه: "جَائَنِيْ غُلَامُ زَيْدٍ".

پوه سه! چي په دې ځای کي په حقيقت کي لام مقدر دئ ځکه د دې اصل عبارت "غُلَامٌ لِزَيْدٍ" وو.

لسم قسم اسم تام دئ چي و تميز ته نصب ور کوي او د اسم تام والی يا په تنوين سره وي لکه: "مَافِي السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ سَحَابًا". يا په تقدير د تنوين سره وي لکه: "عِنْدِيْ أَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا" او "زَيْدٌ أَكْثَرُ مِنْكَ مَالًا". يا په نون د تثنيه سره وي لکه: "عِنْدِيْ قَفِيْزَانِ بُرًّا". يا په نون د جمع سره لکه: "هَلْ نُنَبِّئُكُم بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا". يا په مشابه د نون د جمع سره وي لکه: "عِنْدِيْ عِشْرُوْنَ دِرْهَمًا" بيا تر "تِسْعُوْنَ" پوري. يا په اضافت سره وي لکه: "عِنْدِی مِلْؤُهُ عَسَلًا".

يوولسم قسم اسماء کنايات دي د عدد څخه هغه دوه لفظونه دي "كَمْ وَكَذَا". "كَمْ" پر دوه قسمه دئ استفهاميه و خبريه، کم استفهاميه تميز ته نصب ور کوي. او "كَذَا" هم لکه: "كَمْ رَجُلًا عِنْدَكَ، عِنْدِيْ كَذَا دِرْهَمًا" او کم خبريه تميز مجرور کوي لکه: "كَمْ مَالٍ أَنْفَقْتُ" او "كَمْ دَارٍ بَنَيْتُ" او کله کله "مِنْ" حرف جار د کم خبريه پر تميز باندي راځي لکه: د الله تعالی دا قول: "وَكَمْ مِنْ مَلَكٍ فِي السَّمَاوَاتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا".

## الدرس الثاني والثلاثون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

اسم مضاف:

نهم قسم د اسماء عامله څخه اسم مضاف دئ:

د اسم مضاف لغوي او اصطلاحي تعريف:

مضاف د اضافت څخه دئ اضافت په لغت کي نسبت ته وايي او په اصطلاح کي مضاف "كُلُّ اِسْمٍ نُسِبَ اِلَى اِسْمٍ آخَرَ بِوَاسِطَةِ حَرْفِ الْجَرِّ تَقْدِيْرًا" مضاف هر هغه اسم دئ چي د ده نسبت سوی وي و بل اسم ته په واسطه د حرف جر تقديري سره لکه: "غُلَامُ زَيْدٍ" په اصل کي "غُلَامٌ لِزَيْدٍ" (1) دئ.

د اضافت اقسام:

اضافت پر دوه قسمه دئ:

۱. اضافت لفظي.
۲. اضافت معنوي.

د اضافت لفظي تعريف:

اضافت لفظي هغه اضافت دئ چي صيغه د صفت مضاف وي و خپل معمول ته يعني په ده کي اجتماع د امرين وي يو امر په جانب د مضاف کي وي چي مضاف به صيغه د صفت وي او د صفت

---

(1) د حرف جر په مقدر کولو کي اختلاف دئ عند الجمهور حرف جر مقدر کيږي لېکن د حرف جر د تقدير دپاره دانه ده ضروري چي د حرف جر ښکاره کول به هم صحيح وي بلکه د لام حرف جر د تقدير دپاره دومره خبره کافي ده چي فائده د اختصاص چي د لام مدلول دئ هغه به حاصليږي لکه: په "كُلُّ رَجُلٍ" او "غُلَامُ زَيْدٍ" کي دا فائده حاصليږي لېکن. ابو حيان اندلسي او ابن درستويه په نزد باندي په اضافت کي حرف جر بالکل نه مقدر کيږي ځکه بيا په دې صورت کي د "غُلَامُ زَيْدٍ" منادی والی لازميږي د "غُلَامٌ لِزَيْدٍ" دپاره حالانکه دا غلط دئ ځکه اول معرفه دئ دوهم نکره دئ. "فَاَجَابَ عَنْهُ فِي الْمُطَوَّلَاتِ" "اِنْ شِئْتَ فَارْجِعْ اِلَيْهَا". (همع الهوامع)

او داغه رنګه د مضاف اليه په عامل کي اختلاف دئ د امام سبويه رحمة الله عليه او د جمهورو په نزد باندي د مضاف اليه عامل مضاف دئ ځکه د مضاف سره ضمير متصل کيږي لکه: "غُلَامُهُ" او قاعده دا ده چي ضمير صرف د خپل عامل سره متصل کيږي او د زجاج په نزد باندي د مضاف اليه عامل حرف جر مقدر دئ. (حاشيه خضري جلد ۲ صفحه ۳. همع الهوامع جلد ۲ صفحه ۴۱۲)

څخه مراد اسم فاعل، اسم مفعول، صفت مشبه دي په دې شرط چې په ده کې به زمانه د ماضي نه وي ورنه بيا اضافت معنوي دئ ځکه اسم فاعل، اسم مفعول په معنٰی د ماضي سره عمل نه کوي. او دوهم امر په جانب د مضاف اليه کې وي چې مضاف اليه به د ده خپل معمول وي د معمول څخه مراد فاعل، مفعول دي لکه: "ضَارِبُ زَيْدٍ".

د اضافت لفظي فائده:

اضافت لفظي صرف په لفظ کې تخفيف راولي چې د مضاف څخه تنوين يا نون د تثنيه يا نون د جمع غورځوي لکه: "ضَارِبُ زَيْدٍ، ضَارِبَا زَيْدٍ، مُسْلِمُوْا مِصْرٍ، ضَارِبُوْ زَيْدٍ".

## دوهمه خبره:

د اضافت معنوي تعريف:

اضافت معنوي هغه اضافت دئ چې غير د صيغه صفت څخه چې مضاف وي و خپل معمول ته دا بيا په څلورو شکلو سره راځي:

۱. اول شکل: چې مضاف صيغه د صفت نه وي لکه: "مِفْتَاحُ الدَّارِ".
۲. دوهم شکل: چې مضاف صيغه د صفت وي لېکن و خپل معمول ته نه وي مضاف لکه: "كَرِيْمُ الْبَلَدِ، مُصَارِعُ مِصْرٍ، كَاتِبُ الْقَاضِيْ".
۳. دريم شکل: چې مضاف نه صيغه د صفت وي او نه مضاف وي خپل معمول ته لکه: "غُلَامُ زَيْدٍ".
۴. څلورم شکل: چې مضاف صيغه د صفت وي او مضاف وي و خپل معمول ته لېکن زمانه ماضي مراد وي لکه: "رَبُّ الْعَالَمِيْنَ، ضَارِبُ زَيْدٍ اَمْسِ".

د اضافت معنوي فائده:

اضافت معنوي يا تعريف فائده کوي په مضاف کې که چيري اضافت و معرفه ته راغلی وو لکه: "غُلَامُ زَيْدٍ". يا تخصيص فائده کوي که چيري اضافت و نکره ته راغلی وو لکه: "هٰذَا كِتَابُ رَجُلٍ".

## دريمه خبره:

د اضافت معنوي اقسام:

اضافت معنوي پر څلور قسمه راځي:

۱. اضافت لامي.
۲. اضافت مني.
۳. اضافت فوي.
۴. اضافت تشبیهي.

اضافت لامي: چي په تقدیر د "لَامْ" سره وي او د ملکیت او اختصاص فائده ورکوي یعني مضاف الیه نه د مضاف د جنس څخه وي او نه د مضاف دپاره ظرف وي لکه: "غُلَامُ زَیْدٍ اَیْ غُلَامٌ لِزَیْدٍ".

اضافت مني: چي په تقدیر د "مِنْ" سره وي یعني مضاف الیه جنس وي د مضاف یعني مضاف بعض وي د مضاف الیه څخه او مضاف پر ده هم صادقیږي او د ده پر غیر باندي هم صادقیږي لکه: "خَاتَمُ فِضَّةٍ اَیْ خَاتَمٌ مِنْ فِضَّةٍ".

اضافت فوي چي په تقدیر د "فِيْ" سره وي یعني مضاف الیه ظرف وي د مضاف دپاره لکه: "صَلٰوۃُ اللَّیْلِ اَیْ فِيْ اللَّیْلِ".

اضافت تشبیهي: چي په تقدیر د "کاف تشبیه" سره وي یعني مشبه به مضاف وي و مشبه ته لکه: "اِنْتَثَرَ لُؤْلُؤُ الدَّمْعِ عَلٰی وَرْدِ الْخُدُوْدِ اَیْ اَلدَّمْعُ الَّذِيْ کَاللُّؤْلُؤِ عَلَی الْخُدُوْدِ الَّتِيْ کَالْوَرْدِ".

## څلورمه خبره:

د مضاف احکام:

د مضاف دپاره دري (۳) حکمونه دي:

۱. اول حکم یې دا دئ: چي مضاف به خالي وي د تنوین او د نون د تثنیه او نون د جمع مذکر سالمه څخه.
۲. دوهم حکم یې دا دئ: چي مضاف د الف لام څخه خالي وي په دې شرط که چیري اضافت معنوي وو او که چیري اضافت لفظي وو یا که چیري مضاف تثنیه وو لکه: "اَلْمُکْرِمَا سَلِیْمٍ" یا جمع مذکر سالمه وه لکه: "اَلْمُکْرِمُوْ عَلِيٍّ" یا مضاف وو و معرف باللام ته لکه: "اَلْکَاتِبُ الدَّرْسِ" یا و هغه اسم ته مضاف وي چي هغه مضاف وي و معرف باللام ته لکه:

"اَلْكَاتِبُ دَرْسِ النَّحْوِ" یا دی مضاف وي و هغه اسم ته چي هغه مضاف وي و ضمیر ته او ضمیر راجع وي و معرف باللام ته لکه: "اَلْوُدُّ اَنْتِ الْمُسْتَحِقَّةُ صَفْوِهِ" نو بیا په دې ټولو صورتو کي پر مضاف باندي الف لام راتلای سي:

۳. دریم حکم د مضاف او مضاف الیه مشترک دا دئ چي دوی په مینځ کي فصل نا جائز دئ مگر په ظرف او جار و مجرور او قسم سره جائز دئ.

## پنځمه خبره:

**د اضافت معنوي (۱) اقسام په اعتبار د نسبت سره:**

اضافت معنوي (۲) په اعتبار د نسبت سره چي د مضاف او مضاف الیه په مینځ کي مقدر کیږي پر دري قسمه دئ لیکن عقلا پنځه قسمه جوړیږي:

---

(۱) د بعض نحاتو په نزد باندي د اضافت معنوي صرف دوه قسمونه دي: (۱) لامي. (۲) مني. او اضافت فوي په معنی د لام سره یې و اضافت لامي ته رد کړی دئ ځکه د اضافت لامي مفاد چي اختصاص دئ هغه په اضافت فوي کي هم پیدا کیږي ځکه د "ضَرْبُ الْيَوْمِ" معنی ده "ضَرْبٌ لَهُ اِخْتِصَاصٌ بِالْيَوْمِ" ځکه "ضَرْب" په ورځ کي دنند واقع سوی دئ. (جمع الجوامع)

د جمهورو په نزد باندي هم د اضافت معنوي دوه اقسام دي: لامي. مني. هغه وایي: که چیري مضاف الیه د مضاف دپاره اصل وو او د مضاف و مضاف الیه په مینځ کي نسبت د عموم و خصوص من وجه وو نو دا اضافت مني دئ لکه: "خَاتَمُ فِضَّةٍ" لیکن د دې ځخه علاوه ټوله اضافتونه اضافت لامي دي لیکن د اکثر نحاتو په نزد باندي د اضافت معنوي دري اقسام دي: لامي، مني، فوي او داغه قول راجع دئ کله کله اضافت د عدد و معدود ته راسي لکه: "ثَلَاثَةُ رِجَالٍ" او کله کله اضافت د عدد و عدد ته راسي لکه: "ثَلَاثُ مِأَةٍ" او کله او کله اضافت د مقادیر و مقدورات ته راسي لکه: "رِطْلُ زَيْتٍ" دا اضافت مني دئ. (حاشیه خضري)

(۲) موږ په اضافت معنوي کي دا ویلي وه چي اضافت الی المعرفه د تعریف فائده ور کوي لیکن د دې ځخه بعض اسماء لکه: "غَيْر، مِثْل، شِبْه، نَظِيْر" و غیره مستثنی دي، ځکه د دغه الفاظ د توغل ابهام په وجه د اضافت الی المعرفه باوجوده نه معرفه کیږي که چیري د دوی ځخه مراد مطلق مماثلت و مغایرت وو بیا هم په دوی کي اضافت معنوي دئ ځکه د دوی اضافت و معرفه ته د تخصیص فائده ور کوي او دوی صفت د نکره جوړیږي لکه: "مَرَرْتُ بِرَجُلٍ مِثْلِكَ اَوْ غَيْرِكَ، شِبْهِكَ، او نَظِيْرِكَ" لیکن که چیري د دوی مضاف الیه داسي اسم وو چي د هغه فقط یو ضد وو چي د مضاف الیه په غیریت سره معلوم سي نو په دې صورت کي دوی په اضافت سره معرفه کیږي لکه: "عَلَيْكَ بِالْحَرَكَةِ غَيْرَ السُّكُوْنِ" او داغه رنګه که چیري د مضاف الیه یو داسي مثل وو چي په اشیاوو کي په یو شي کي د مضاف الیه سره په مماثلت او مشابهت کي مشهوره وي لکه: علم و شجاعت لکه: حضرت علي رضي الله عنه او د خالد بن ولید مماثلت په صفت د شجاعت کي مشهوره دئ او د امام ابو حنیفه او د امام ابو یوسف مماثلت په صفت د علم کي

۱. نسبت تباين.
۲. نسبت تساوي.
۳. نسبت اعم مطلق.
۴. نسبت اخص مطلق.
۵. نسبت عموم و خصوص من وجه.

نسبت تباين: که چيري مضاف اليه د مضاف مباين وو نو بيا دوه صورتونه دي يا به مضاف اليه د مضاف دپاره ظرف وي يا به نه وي که چيري مضاف اليه د مضاف دپاره ظرف وو نو بيا اضافت فوي دئ لکه: "صَلٰوةُ اللَّيْلِ" او که چيري مضاف اليه د مضاف دپاره ظرف نه وو نو بيا دا اضافت لامي دئ "غُلَامُ زَيْدٍ".

نسبت تساوي: که چيري مضاف اليه د مضاف مساوي وو لکه: "لَيْثُ اَسَدٍ".

نسبت اعم مطلق: که چيري مضاف اليه د مضاف څخه اعم مطلق وو لکه: "اَحَدُ الْيَوْمِ" نو بيا په دې دواړو صورتو کي اضافت منع دئ.

نسبت اخص مطلق: که چيري مضاف اليه د مضاف څخه اخص مطلق وو لکه: "يَوْمُ الْاَحَدِ. عِلْمُ الْفِقْهِ. شَجَرُ الْاِرَاکِ" نو بيا اضافت "لامي" دئ.

نسبت عموم و خصوص من وجه: که چيري مضاف اليه د مضاف څخه اخص من وجه وو نو بيا دوه صورتونه دي: يا به مضاف اليه د مضاف دپاره اصل و ماده وي يا به نه وي که چيري مضاف اليه د مضاف دپاره اصل و ماده وو نو بيا اضافت "مِنِّيْ" دئ لکه: "خَاتَمُ فِضَّةٍ" ځکه چي "فِضَّةٍ" د "خَاتَم" اصل و ماده ده او که چيري مضاف اليه د مضاف اصل و ماده نه وو نو بيا اضافت لامي دئ لکه: "فِضَّةُ خَاتَمِکَ خَيْرٌ مِنْ فِضَّةِ خَاتَمِيْ".

---

مشهور دئ که چيري امام ابو حنيفه رحمة الله عليه ته ووېل سي "جَاءَ مِثْلُکَ" او د لفظ د "مِثْلُ" څخه مراد هغه شخص سي چي د امام ابو حنيفه رحمة الله عليه سره په صفت د علم کي مماثل او مشابه وي چي امام ابو يوسف دئ نو بيا دی معرفه دئ. (شرح جامي)

او کله کله مضاف حذف کيږي او مضاف اليه پر خپل حالت باندي پاته کيږي لکه: "تُرِيْدُوْنَ عَرَضَ الدُّنْيَا وَاللهُ يُرِيْدُ الْاٰخِرَةَ اَیْ عَرَضَ الْاٰخِرَةِ" په دې شرط چي عطف به د محذوف پر مماثل يا پر مقابل باندي وي. (جمع الجوامع مع شرحه صفحه ۴۳۱)

## شپږمه خبره:

د اضافت احکام:

د اضافت دپاره اووه (۷) احکام دي:

۱. اول حکم یې دا دئ: چې مضاف کله کله د مضاف الیه څخه کسب د تذکیر و تانیث کوي لکه: "قُطِعَتْ بَعْضُ اَصَابِعِهٖ. شَمْسُ الْعَقْلِ مَكْسُوْفٌ بِطَوْعِ الْهَوٰى".

۲. دوهم حکم یې دا دئ: چې اسم و خپل مرادف ته نه مضاف کیږي لکه: "لَيْثُ اَسَدٍ" لیکن که چیري علمین وو بیا جائز دئ لکه: "مُحَمَّدُ خَالِدٍ" او نه موصوف و صفت ته مضاف کیږي لکه: "رَجُلُ فَاضِلٍ" په کمو ځایو کي چې سوی وي هلته یې تاویل کیږي لکه: "مَسْجِدُ الْجَامِعِ اَیْ مَسْجِدُ الْمَكَانِ الْجَامِعِ. صَلٰوةُ الْاُوْلٰى اَیْ صَلٰوةُ السَّاعَةِ الْاُوْلٰى" لیکن د صفت اضافت و موصوف ته جائز دئ په دې شرط چې تقدیر د "مِنْ" به صحیح کیږي لکه: "كِرَامُ النَّاسِ اَیْ اَلْكِرَامُ مِنَ النَّاسِ".

۳. دریم حکم یې دا دئ: چې اضافت د عام و خاص ته صحیح کیږي لکه: "يَوْمُ الْجُمُعَةِ" لیکن عکس یې نه دئ جائز.

۴. څلورم حکم یې دا دئ: چې کله کله یو شی و بل شي ته مضاف کیږي د ادنی ملابست په وجه لکه: "اِنْتَظِرْنِيْ مَكَانَكَ اَمْسِ" دلته "مَكَان" و "اَمْسِ" ته د ادنی ملابست په وجه مضاف سوی دئ چې هغه وجود د دې سړی دئ په دې مکان کي اتفاقا.

۵. پنځم حکم یې دا دئ: چې کله کله مضاف حذف کیږي او مضاف الیه یې پر ځای دریږي په هغه ځای کي چې التباس او ابهام نه وي لکه: "وَاسْئَلِ الْقَرْيَةَ الَّتِيْ اَیْ اَهْلَ الْقَرْيَةِ الَّتِيْ".

۶. شپږم حکم یې دا دئ: چې کله کله په کلام کي دوه مضاف الیه راسي نو بیا اول مضاف الیه حذف سي د دوهم مضاف الیه د استغناء په وجه لکه: "جَاءَ غُلَامُ وَ اَخُوْ عَلِيٍّ" په اصل کي "جَاءَ غُلَامُ عَلِيٍّ وَ اَخُوْهُ" وو.

۷. اووم حکم يې دا دئ: چي کله کله بيا په کلام کي دوه مضافه وي نو بيا مضاف ثاني حذف سي د اول مضاف د استغنا په وجه لکه: "مَا كُلُّ سَوداءَ تَمْرَةً وَلَا بَيْضَاءَ شَحْمَةً أَيْ وَلَا كُلُّ بَيْضَاءَ شَحْمَةً".

**اوومه خبره:**

اسم تام:

لسم قسم د اسماء عامله وو څخه اسم تام دئ:

د اسم تام تعريف:

اسم تام هغه اسم دئ چي دی په داسي کيفيت و حالت کي وي چي د هغه کيفيت په موجود والي کي دی و بل چاته نسي مضاف کېدای او دا کيفيت په ده کي هغه وخت راځي چي کله دی په يو د دا شپږو شيانو سره تام سوی وي.

د اسم تام والی په شپږو (٦) شيانو سره:

۱. اول: په تنوين ظاهره سره لکه: "مَا فِي السَّمَاءِ قَدْرُ رَاحَةٍ سَحَابًا".

۲. دوهم: په تنوين مقدره سره لکه: "عِنْدِيْ أَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا".

۳. دريم: په نون د تثنيه سره لکه: "عِنْدِيْ قَفِيْزَانِ بُرًّا".

۴. څلورم: په نون د جمع سره لکه: "هَلْ نُنَبِّئُكُمْ بِالْأَخْسَرِينَ أَعْمَالًا".

۵. پنځم: په مشابه د نون د جمع سره لکه: "عِنْدِيْ عِشْرُوْنَ دِرْهَمًا تَا تِسْعُوْنَ".

٦. شپږم: په اضافت سره لکه: "عِنْدِيْ مِلْؤُهُ عَسَلًا".

د اسم تام عمل:

اسم تام په خپله مميز وي او تميز ته نصب ور کوي ځکه د ده مشابهت د فعل سره دئ لکه: څنګه چي فعل په فاعل سره تاميږي مفعول به ته نصب ور کوي دا غه رنګه دغه اسم په دغه شيانو سره تاميږي شبه مفعول يعني تميز ته نصب ور کوي.

# جملے:

| عنوان | خبریہ انشائیہ | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ و غیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین اقسام اضافت |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تَشْتَرُوا بِآيَاتِ اللهِ ثَمَنًا قَلِيلًا | انشائیہ طلبیہ | (تَشْتَرُوا) فعل | (أَنْتُمْ) فاعل | (وَ) عاطفہ، (لَا) جازمہ (بِ) جارہ | (وَلَا تَشْتَرُوا) فعل معلوم | (آيَاتِ) اسم مضاف (قَلِيلًا) صفت مشبہ | (أَنْتُمْ) محلا فاعل (هُوَ) محلا فاعل | (ثَمَنًا) مفعول بہ (قَلِيلًا) صفت | (آيَاتِ) مجرور متعلق (تَشْتَرُوا) (اللهِ) مضاف الیہ | (آيَاتِ اللهِ) اضافت معنوی |
| رَبَّنَا هَبْ لَنَا مِنْ أَزْوَاجِنَا وَذُرِّيَّاتِنَا قُرَّةَ أَعْيُنٍ | انشائیہ طلبیہ | (أَدْعُوْ) فعل | (أَنَا) فاعل | (يَا) حرف ندا محذوف (وَ) عاطفہ، (مِنْ) جارہ (لِ) جارہ | (أَدْعُوْ، هَبْ) افعال معلومہ | (رَبَّ، أَزْوَاجِ، ذُرِّيَّاتِ، قُرَّةَ) کلہم اسم مضاف | (أَنَا، أَنْتَ) فاعل | (رَبَّنَا) منادی مضاف (قُرَّةَ) مفعول بہ | (نَا) مضاف الیہ (نَا) مجرور متعلق (هَبْ) (نَا) مضاف الیہ (أَزْوَاجِ) مجرور متعلق (هَبْ) (ذُرِّيَّاتِ) معطوف (نَا) مضاف الیہ (أَعْيُنٍ) مضاف الیہ | (رَبَّنَا، أَزْوَاجِنَا، ذُرِّيَّاتِنَا، قُرَّةَ أَعْيُنٍ) اضافت معنوی |
| وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ | انشائیہ طلبیہ | (قِ) فعل | (أَنْتَ) فاعل | (وَ) عاطفہ | (قِ) فعل معلوم | (عَذَابَ) اسم مضاف | (أَنْتَ) فاعل | (عَذَابَ) مفعول بہ | (النَّارِ) مضاف الیہ | (عَذَابَ النَّارِ) اضافت معنوی |
| وَمَنْ يَكْفُرْ بِآيَاتِ اللهِ فَإِنَّ اللهَ سَرِيعُ الْحِسَابِ | خبریہ اسمیہ | (يَكْفُرْ) خبر (سَرِيعُ الْحِسَابِ) خبر (إِنَّ) | (مَنْ) مبتداء (اللهَ) اسم (إِنَّ) | (وَ) عاطفہ او استئنافیہ، (فَ) جزائیہ، (إِنَّ) مشبہ بالفعل (بِ) جارہ | (يَكْفُرْ) فعل معلوم | (مَنْ) اسم شرط جازم، (آيَاتِ) اسم مضاف (سَرِيعُ) صفت مشبہ | (مَنْ) محلا مبتداء (هُوَ) محلا فاعل (سَرِيعُ) خبر (إِنَّ) | (اللهَ) اسم (إِنَّ) | (آيَاتِ) مجرور متعلق (يَكْفُرْ) (اللهِ الْحِسَابِ) مضاف الیہ | (آيَاتِ اللهِ) اضافت معنوی (سَرِيعُ الْحِسَابِ) اضافت لفظی |
| إِنَّ اللهَ يَرْزُقُ مَنْ يَشَاءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ | خبریہ اسمیہ | (يَرْزُقُ) خبر (إِنَّ) | (اللهَ) اسم (إِنَّ) | (إِنَّ) مشبہ بالفعل (بِ) جارہ | (يَرْزُقُ، يَشَاءُ) افعال معلومہ | (غَيْرِ) اسم مضاف | (اللهَ) محلا فی محل مبتداء، (هُوَ، هُوَ) فاعلان | (اللهَ) لفظا اسم (إِنَّ)، (مَنْ يَشَاءُ) محلا مفعول بہ | (غَيْرِ) مجرور متعلق (يَشَاءُ) (حِسَابٍ) مضاف الیہ | (غَيْرِ حِسَابٍ) اضافت معنوی |
| ذٰلِكَ مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ نُوحِيهِ إِلَيْكَ | خبریہ اسمیہ | (مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ) باعتبار متعلق خبر | (ذٰلِكَ) مبتداء | (لِ) للبعد (كَ) حرف خطاب، (مِنْ) جارہ، (إِلَى) جارہ | (نُوحِي) فعل معلوم | (أَنْبَاءِ) اسم مضاف | (ذٰلِكَ) مبتداء (مِنْ أَنْبَاءِ الْغَيْبِ) محلا خبر، (نَحْنُ) محلا فاعل (نُوحِي) خبر ثانی | (هٖ) مفعول بہ | (أَنْبَاءِ) مجرور متعلق بمحذوف (الْغَيْبِ) مضاف الیہ (كَ) محلا مجرور متعلق (نُوحِي) | (أَنْبَاءِ الْغَيْبِ) اضافت معنوی |
| تَنْزِيلُ الْكِتَابِ مِنَ اللهِ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ | خبریہ اسمیہ | (مِنَ اللهِ) خبر | (تَنْزِيلُ الْكِتَابِ) مبتداء | (مِنْ) جارہ | ۔ | (تَنْزِيلُ) مصدر (الْعَزِيزِ، الْعَلِيمِ) لفظا صفت مشبہ | (تَنْزِيلُ) مبتداء، (هُوَ، هُوَ) محلا فاعلان | ۔ | (الْكِتَابِ) مضاف الیہ (اللهِ) مجرور متعلق بمحذوف (الْعَزِيزِ، الْعَلِيمِ) صفات | (تَنْزِيلُ الْكِتَابِ) اضافت معنوی |
| غَافِرِ الذَّنْبِ وَقَابِلِ التَّوْبِ شَدِيدِ الْعِقَابِ | خبریہ اسمیہ | غَافِرِ، قَابِلِ، شَدِيدِ | (هُوَ) قاطع | (وَ) عاطفہ | ۔ | (غَافِرِ، قَابِلِ) اسم فاعل (شَدِيدِ) صفت مشبہ | (هُوَ، هُوَ، هُوَ) محلا کلہم فاعل | ۔ | (غَافِرِ، قَابِلِ) صفت لفظ (اللهِ) (الذَّنْبِ، التَّوْبِ، الْعِقَابِ) مضاف الیہ (شَدِيدِ) بدل من لفظ (اللهِ) | (غَافِرِ الذَّنْبِ، قَابِلِ التَّوْبِ، شَدِيدِ) [illegible] اضافت لفظی |

| عنوان | خبریه انشائیه | مسند | مسندالیه | تعیین حروف عامله وغیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین اقسام اضافات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ | خبریه اسمیه | (أَكْبَرُ) خبر | (خَلْقُ السَّمٰوٰتِ) مبتدا | (لَ) للابتداء، (وَ) عاطفه، (مِنْ) جاره | • | (خَلْقُ) خلق اسم مضاف (أَكْبَرُ) اسم تفضیل | (خَلْقُ) مبتدا، (أَكْبَرُ) خبر، (هُوَ) فاعل | • | (السَّمٰوٰتِ) مضاف الیه (الْأَرْضِ) معطوف (خَلْقِ) مجرور حقیقی (أَكْبَرُ) (النَّاسِ) مضاف الیه | (خَلْقُ السَّمٰوٰتِ، فیهما خَلْقِ النَّاسِ) فیهما اضافت معنویه |
| وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ | خبریه اسمیه | (لَا يَشْكُرُوْنَ) خبر (لٰكِنَّ) | (أَكْثَرَ النَّاسِ) اسم (لٰكِنَّ) | (وَ) عاطفه، (لَا) نافیه | (يَشْكُرُوْنَ) فعل معلوم | (أَكْثَرَ) اسم تفضیل | (أَكْثَرَ النَّاسِ) في محل المبتدء (يَشْكُرُوْنَ) خبر (لٰكِنَّ) (هُمْ) فاعل | (أَكْثَرَ) لفظا اسم (لٰكِنَّ) | (النَّاسِ) مضاف الیه | (أَكْثَرَ النَّاسِ) اضافت معنوی |
| نَحْنُ أَوْلِيَاؤُكُمْ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِي الْآخِرَةِ | خبریه اسمیه | (أَوْلِيَاؤُكُمْ) خبر | (نَحْنُ) مبتدا | (فِي) جاره، (وَ) عاطفه | • | (أَوْلِيَاؤُ) اسم مضاف | (نَحْنُ) مبتدا، (أَوْلِيَاؤُ) خبر | • | (كُمْ) مضاف الیه (الْحَيٰوةِ) مجرور حقیقی (أَوْلِيَاؤُ) (الدُّنْيَا) [illegible] معطوف (الْآخِرَةِ) [illegible] | (أَوْلِيَاؤُكُمْ) اضافت معنوی |
| إِنَّ ذٰلِكَ لَمُحْيِ الْمَوْتٰى | خبریه اسمیه | (لَمُحْيِ الْمَوْتٰى) خبر (إِنَّ) | (ذٰلِكَ) اسم (إِنَّ) | (إِنَّ) مشبه بالفعل، (لَام) [illegible] | • | (مُحْيِ) اسم فاعل | (ذٰلِكَ) في محل المبتدء (مُحْيِ) خبر (إِنَّ) (هُوَ) فاعل (الْمَوْتٰى) مفعول به لاسم الفاعل | (ذٰلِكَ) منصوب اسم (إِنَّ) | (الْمَوْتٰى) لفظا مضاف الیه | (مُحْيِ الْمَوْتٰى) اضافت لفظی |

## التمرین:

"وَجَاءَ أَهْلُ الْمَدِينَةِ يَسْتَبْشِرُونَ،، وَعَلَى اللهِ قَصْدُ السَّبِيلِ وَمِنْهَا جَائِرٌ،، لِيَحْمِلُوا أَوْزَارَهُمْ كَامِلَةً يَوْمَ الْقِيَامَةِ،، وَلَدَارُ الْآخِرَةِ خَيْرٌ وَلَنِعْمَ دَارُ الْمُتَّقِينَ،، رَبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمْ،، إِنَّ الْمُبَذِّرِينَ كَانُوا إِخْوَانَ الشَّيَاطِينِ،، وَمَنْ قُتِلَ مَظْلُومًا فَقَدْ جَعَلْنَا لِوَلِيِّهِ سُلْطَانًا. أَقِمِ الصَّلَاةَ لِدُلُوكِ الشَّمْسِ إِلَى غَسَقِ اللَّيْلِ،، يَا أُخْتَ هَارُونَ مَا كَانَ أَبُوكِ امْرَأَ سَوْءٍ وَمَا كَانَتْ أُمُّكِ بَغِيًّا،، تِلْكَ الْجَنَّةُ الَّتِي نُورِثُ مِنْ عِبَادِنَا مَنْ كَانَ تَقِيًّا"

## الدرس الثالث والثلاثون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د اسماء([1]) عدد تمیز:

([1]) عدد په لغت کې شمارلو ته ویل کیږي او په اصطلاح کې د عدد دوه تعریفونه کیږي:

اسماء عدد په اعتبار د تميز سره پر درې قسمه دئ:

اول: عدد [۱] اقل چي د درو (۳) څخه بيا تر لسو (۱۰) پوري يعني د "ثَلَاثَةٌ" څخه بيا تر "عَشَرَةٌ" پوري.

د عدد اقل حکم په اعتبار د تميز سره:

د عدد اقل تميز همېشه جمع مجروره راځي او خلاف قياس يعني خلاف عقل راځي يعني که چيري تميز مذکر وو نو عدد به مؤنث راوړل کيږي او که چيري تميز مؤنث وو نو عدد به مذکر ور سره راوړل کيږي په دې شرط چي تميز به خودي د "مِأَةٌ" لفظ نه وي ورنه بيا مفرد مجروره راځي لکه: "ثَلٰثُ مِأَةٍ" د عدد اقل مثال لکه: "ثَلٰثَةُ رِجَالٍ، ثَلٰثُ نِسْوَةٍ".

**فائده:**

"وَاحِدٌ" او "اِثْنَانِ" د تميز محتاجه نه وي ځکه د يوه او د دوو معنٰى خودي د مميز څخه معلوميږي لکه: "رَجُلٌ" يو سړى "رَجُلَانِ" دوه سړيان د يوه او د دو معنٰى په خپله د "رَجُلٌ" او د "رَجُلَانِ" څخه معلوميږي.

---

۱. اول تعريف: "اَلْعَدَدُ مَا يَعُدُّ بِهٖ" چي په ده سره يو شى شمارل کيږي د دې حضراتو په نزد باندي عدد د يوه څخه شروع کيږي.

۲. دوهم تعريف: "اَلْعَدَدُ نِصْفُ مَجْمُوْعِ الْحَاشِيَتَيْنِ" د دوو حاشيو د مجموعه نيمى مثلا د دوه (۲) عدد دئ د دوو حاشيو د مجموعه نيمي دئ ځکه د ر دوه (۲) لاندي حاشيه د يوه (۱) عدد وي او لوړ د دريو (۳) عدد دئ نو دغه د يوه (۱) عدد او د دريو (۳) عدد چي سره جمع کړې نو مجموعه يې څلور (۴) راځي او د څلور (۴) د مجموع نيمي دوه (۲) دي نو د دې حضراتو په نزد باندي عدد د دوه څخه شروع کيږي ځکه د يوه عدد لوړه حاشيه سته چي د دوو عدد دئ لاندي يې حاشيه نسته ځکه لاندي يې صفر دئ. (العلامات النحوية)

(۱) د عدد اقل تميز هلته خلاف قياس راځي چي کله معدود د عدد څخه وروسته ذکر سي که چيري معدود را مقدم سي موصوف سي او اسم عدد د ده صفت جوړ سي نو بيا د عدد تذکير و تانيث دواړه جائز دي لکه: "رِجَالٌ ثَلٰثٌ يا رِجَالٌ ثَلٰثَةٌ". (حاشيه خضري صفحه ۱۳۷)

د عدد اقل قرآني مثالونه لکه: "ثَلَاثَةَ قُرُوْءٍ.. أَرْبَعَةَ أَشْهُرٍ.. بِثَلَاثَةِ آلَافٍ مِنَ الْمَلَائِكَةِ مُنْزَلِيْنَ.. فِي سِتَّةِ أَيَّامٍ ثُمَّ اسْتَوٰى عَلَى الْعَرْشِ.. سَبْعَ لَيَالٍ وَثَمَانِيَةَ أَيَّامٍ.. تِسْعَةُ رَهْطٍ.. إِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسَاكِيْنَ". (العلامات النحوية)

**دوهمه خبره:**

د عدد اقل يعني د درو (٣) څخه بيا تر لسو (١٠) پوري يعني د "ثَلَاثَةٌ" څخه بيا تر "عَشَرَةٌ" پوري د دې تميز جمع مجروره راځي او د جمع په اقسام کي اکثره جمع قلت راځي او په قلت کي اکثره جمع مکسره راځي لېکن کله کله د ضرورت په خاطر جمع سالم هم راځي لکه: "سَبْعَ سَمٰوَاتٍ" او داغه رنګه که چيري د يو اسم دپاره جمع قلته نه وه نو بيا جمع کثرت راځي لکه: "ثَلٰثَةَ قُرُوْءٍ".

دوهم: عدد اوسط: د يوولس (١١) څخه بيا تر نه نوي (٩٩) پوري يعني د "أَحَدَ عَشَرَ" (١) څخه بيا در "تِسْعٌ وَتِسْعُوْنَ" (٢) پوري يعني:

| | | | | | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ١١-١٢ | ٢١-٢٢ | ٣١-٣٢ | ٤١-٤٢ | ٥١-٥٢ | ٦١-٦٢ | ٧١-٧٢ | ٨١-٨٢ | ٩١-٩٢ |

د عدد اوسط حکم په اعتبار د تميز سره:

د عدد اوسط تميز همېشه مفرد منصوب راځي او موافق قياس يعني موافق العقل راځي يعني که چيري تميز مذکر وو نو د عدد دواړه جزئونه به مذکر راځي او که چيري تميز مؤنث وو نو د عدد دواړه جزئونه به مؤنث راځي لکه: "أَحَدَ عَشَرَ رَجُلًا". "إِحْدٰى عَشَرَةَ إِمْرَءَةً" إِثْنَا (٣) عَشَرَ رَجُلًا. إِثْنَتَا عَشَرَةَ إِمْرَءَةً. أَحَدٌ وَعِشْرُوْنَ رَجُلًا. إِحْدٰى وَعِشْرُوْنَ إِمْرَئَةً" لېکن د "١٣" څخه بيا تر "١٩" پوري. د "٢٣" څخه بيا تر "٢٩" پوري. د "٣٣" څخه بيا تر "٣٩" پوري. د "٤٣" څخه بيا تر "٤٩" پوري. د "٥٣" څخه بيا تر "٥٩" پوري. د "٦٣" څخه بيا تر "٦٩" پوري. د "٧٣" څخه بيا تر "٧٩" پوري. د "٨٣" څخه بيا تر "٨٩" پوري. د "٩٣" څخه بيا تر "٩٩" پوري. د دغه ټولو عددو تميز

---

(١) لفظ د "عَشَرَ" که چيري مرکب وو نو د قياس مطابق راوړل کيږي يعني د مذکر سره مذکر او د مؤنث سره مؤنث لکه: "أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا. فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ اثْنَتَا عَشَرَةَ عَيْنًا" او که چيري غير مرکب وو بيا يې حکم د "ثَلٰثَةٌ" په شان دئ يعني خلا ف القياس راځي. (شرح شذور الذهب)

(٢) د عدد اوسط قرآني مثالونه: "أَحَدَ عَشَرَ رجلا.. رَأَيْتُ أَحَدَ عَشَرَ كَوْكَبًا.. إِنَّ عِدَّةَ الشُّهُورِ عِنْدَ اللهِ اثْنَا عَشَرَ شَهْرًا.. وَوَاعَدْنَا مُوسَىٰ ثَلَاثِينَ لَيْلَةً وَأَتْمَمْنَاهَا بِعَشْرٍ فَتَمَّ مِيقَاتُ رَبِّهِ أَرْبَعِينَ لَيْلَةً.. إِنَّ هَٰذَا أَخِي لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً". (العلامات النحوية)

(٣) د "اِثْنَانِ" څخه بيا تر "عَشَرَةٌ" پوري د دې عدد څخه اسم فاعل جوړول هم صحيح کيږي لکه: څنګه چي د فعل څخه جوړيږي لکه: "ثَانِيْ. ثَالِثٌ. رَابِعٌ. إِلَى الْعَاشِرِ" او دی د قياس مطابق راوړل کيږي يعني د مذکر دپاره مذکر او د مؤنث دپاره مؤنث او داغه رنګه د لفظ د "وَاحِدٌ" او "وَاحِدَةٌ" لکه: "إِلٰهٌ وَاحِدٌ. نَفْسٌ وَاحِدَةٌ". (همع الهوامع)

مخالف قياس يعني خلاف العقل راځي يعني که چيري تميز مؤنث وو نو بيا د عدد د دوارو جزئو څخه به اول جزء مذکر وي او که چيري تميز مذکر وو نو د عدد اول جزء به مؤنث وي لکه: "ثَلٰثَةَ عَشَرَ رَجُلًا. ثَلٰثَ عَشَرَةَ اِمْرَءَةً ثَلٰثَةٌ وَّ عِشْرُوْنَ رَجُلًا. ثَلٰثٌ وَّ عِشْرُوْنَ اِمْرَءَةً".

## فائده:

اته (۸) عقود همېشه پر يوه حال استعماليږي خواه که يکړه وي او که د بل عدد سره مرکب وي، خو تميز يې مذکر وي او که مؤنث وي هغه اته (۸) عقود "عِشْرُوْنَ. ثَلَاثُوْنَ. اَرْبَعُوْنَ. خَمْسُوْنَ. سِتُّوْنَ. سَبْعُوْنَ. ثَمَانُوْنَ. تِسْعُوْنَ" دي لکه: "عِشْرُوْنَ رَجُلًا. عِشْرُوْنَ اِمْرَءَةً".
عدد اعلى صرف پنځه عدده دي په مقام د تميز کي: "مِأَةٌ. مِئَتَانِ. اَلْفٌ. اَلْفَانِ. آلَافٌ".
د عدد اعلى حکم په اعتبار د تميز سره: د عدد اعلى تميز همېشه مفرد مجروره راځي لکه: "مِأَةُ رَجُلٍ مِأَةُ عَامٍ اَلْفَ سَنَةٍ مِئَتَیْ دِرْهَمٍ".

## دريمه خبره:

اسماء کنايه:
يوولسم (۱۱) قسم د اسماء عامله وو څخه اسماء کنايه دي.
د اسماء کنايه تعريف:
اسماء کنايه هغه مبهم الفاظ دي چي په هغو سره کنايه د مبهم عدد څخه کيږي يا د حديث او يا د فعل څخه.
د اسماء کنايه تعداد:

اسماء کيانه پنځه (۵) الفاظ دا دي: "کَمْ. کَذَا. کَاَیِّنْ. کَیْتَ. ذَیْتَ".
د "کَمْ" اقسام:
"کَمْ" پر دوه قسمه دي:
۱. "کَمْ" استفهاميه.
۲. "کَمْ" خبريه.

**د "کَمْ" استفهامیه تعریف:**

"کَمْ" استفهامیه چي په ده سره کنایه د عدد مبهم څخه کیږي او د هغه څخه مراد تعین د هغه عدد وي لکه: "کَمْ کِتَابًا عِنْدَکَ".

په اسماء کنایاتو کي هغه اسماء چي کنایه د عدد څخه کوي هغه عامل دي او هغه اسماء چي کنایه د قول څخه کوي هغه غیر عامل دي په اسماء کنایه عامله وو کي اول "کَمْ" استفهامیه دئ.

**د "کَمْ" استفهامیه عمل:**

د "کَمْ" استفهامیه (۱) تمیز مفرد منصوب راځي یعني دی و مفرد تمیز ته (۲) نصب ور کوي لکه: "کَمْ رَجُلًا عِنْدَکَ" او بل عمل یې د حروف جاره وو دئ یعني و تمیز ته جر ور کوي کله چي پر ده باندي حرف جر داخل سي لکه: "بِکَمْ دِرْهَمٍ اِشْتَرَیْتَ" لیکن نصب فصیح دئ.

**د "کَمْ" خبریه تعریف:**

"کَمْ" خبریه چي په ده سره کنایه د عدد کثیر څخه کیږي په طریقه د اخبار سره لکه: "کَمْ کِتَابٍ عِنْدِيْ اَیْ عِنْدِيْ کُتُبٌ کَثِیْرَةٌ".

**د "کَمْ" خبریه عمل:**

---

(۱) د "کَمْ" استفهامیه تمیز د کم خبریه پر تمیز باندي حمل کول او بیا جر ور کول جائز دي او که نه دي جائز؟ په دې کي درې مذهبونه دي:

۱ [illegible]ول مذهب: مطلقا ناجائز دئ.

۲ [illegible]وهم مذهب: مطلقا جائز دئ.

۳ د[illegible]یم مذهب: مشروط بالشرط جائز دي.

په دې تولو کي شرط دا دئ: چي پر "کَمْ" استفهامیه باندي به حرف جر داخل سوی وي او بیا چي د کم جا په نزد باندي جائز دي بیا د هغو په مینځ کي اختلاف دئ د خلیل او سبویه په نزد باندي دغه جر د "مِنْ" مقدره په وجه سره دئ او دی عوض دئ د هغه حرف جر چي پر "کَمْ" باندي داخل سوی دئ لکه: "بِکَمْ دِرْهَمٍ اِشْتَرَیْتَ" تقدیر د عبارت په دې شکل دئ: "بِکَمْ مِنْ دِرْهَمٍ [illegible]" [illegible]ر د زجاج په نزد باندي دلته جر د کم د اضافت په وجه سره دئ لیکن دا قول ضعیف دئ ورنه بیا به د حرف جر د تقدیم [illegible] د حر[illegible]اتلل جائز سي. (همع الهوامع جلد ۲ صفحه ۲۷۵)

(۲) د [illegible] منفي کېدل نه په استفهامیه کي جائز دي او نه په خبریه کي نو لهذا "کَمْ لَا رَجُلًا عِنْدَکَ" ویل غلط دي. (کتاب سبویه [illegible] ۲ صفحه ۱۶۸)

د "كَمْ" خبريه تميز (۱) د اضافت په وجه مفرد مجروره راځي لکه: "كَمْ مَالٍ اَنْفَقْتُهُ" او کله جمع مجروره راځي لکه: "كَمْ رِجَالٍ لَقِيْتُهُ" افصح او اکثر افراد دي عند البصريين د ده جر د اضافت په وجه دئ او عند الكوفيين د ده جر د "مِنْ" مقدره په وجه دئ. که چيري د "كَمْ" خبريه او تميز په مينځ کي فاصله راسي نو بيا دی پر "كَمْ" استفهاميه حمل کيږي تميز ته نصب ور کوي.

## څلورمه خبره:

"كَمْ" استفهاميه ته د عدد اوسط درجه ور کول سوي ده لکه: څنګه چي د عدد اوسط تميز مفرد منصوبُ راځي داغه رنګه د "كَمْ" استفهاميه تميز هم مفرد منصوب راځي او پاته سو "كَمْ" خبريه او د عدد دوې درجې نو د دواړو لحاظ يې ساتلی دئ د "كَمْ" خبريه په تميز کي لکه: څنګه چي د عدد اقل تميز جمع مجرور راځي داغه رنګه د "كَمْ" خبريه تميز هم کله جمع مجرور راځي لکه: څنګه چي د عدد اعلی تميز مفرد مجروره راځي داغه رنګه د "كَمْ" خبريه تميز هم کله مفرد مجرور راځي، مثالونه يې تېر سول.

د "كَمْ" خبريه او د "كَمْ" استفهاميه په پنځو (۵) شيانو کي اشتراک:

"كَمْ" استفهاميه و "كَمْ" خبريه په پنځو شيانو کي سره مشترک دي:

۱. دواړه کنايه د عدد مبهم څخه کوي خواه که جنس وي او که مقدار وي.
۲. په اسميت کي سره شريکان دي.
۳. په بناء على السکون کي.
۴. په لزوم د تصدير کي يعني په صدارت د کلام کي.

---

(۱) که چيري قرينه موجوده وي نو بيا د "كَمْ" استفهاميه او "كَمْ" خبريه تميز حذف کول جائز دي د "كَمْ" استفهاميه مثال لکه: "كَمْ مَالُكَ" دلته "دِرْهَمًا" تميز حذف سوی دئ اصل عبارت دا دئ "كَمْ دِيْنَارًا مَالُكَ" دلته قرينه دا ده چي "كَمْ" پر معرفه باندي داخل سوی حالانکه "كَمْ" پر نکره باندي داخليږي نو دا د دې خبري دليل دئ چي دلته تميز حذف سوی دئ د "كَمْ" خبريه مثال لکه: "كَمْ ضَرَبْتُ" دلته "ضَرْبَةٍ" تميز حذف سوی دئ اصل عبارت دا دئ "كَمْ ضَرْبَةٍ ضَرَبْتُ" قرينه دا ده چي دلته "كَمْ" پر فعل داخل سوی دئ حالانکه "كَمْ" پر اسم باندي داخليږي نو د دې څخه دا معلومه سوه چي دلته تميز حذف سوی دئ. (همع الهوامع و جامع الدروس العربية)

۵. په احتياج د تميز کي.

د "کَمْ" استفهاميه و خبريه په پنځو (۵) شيانو کي افتراق:

"کَمْ" استفهاميه و "کَمْ" خبريه په پنځو شيانو کي سره جلا دي.

۱. د "کَمْ" استفهاميه تميز مفرد منصوبه راځي او د "کَمْ" خبريه تميز مفرد مجرور او جمع مجرور دواړه راځي.

۲. "کَمْ" خبريه په ماضي پوري خاص دي لکه: "کَمْ غِلْمَانٍ اِشْتَرَيْتُ" او "کَمْ" استفهاميه په ماضي پوري نه وي خاص لکه: "کَمْ غُلَامًا سَتَشْتَرِيْ".

۳. په "کَمْ" خبريه کي احتمال د صدق و کذب سته بخلاف د "کَمْ" استفهاميه.

۴. په "کَمْ" خبريه کي جواب د مخاطب څخه نه وي مطلوب او په "کَمْ" استفهاميه کي جواب مطلوب وي.

۵. د "کَمْ" خبريه پر مبدل منه باندي همزه استفهام راوړل جائز نه دني لکه: "کَمْ رِجَالٍ فِي الدَّارِ اَعِشْرُوْنَ اَمْ ثَلَاثُوْنَ" او په "کَمْ" استفهاميه کي همزه استفهام راوړل جائز دي لکه: "کَمْ مَالُکَ ءَاَرْبَعُوْنَ اَمْ ثَلَاثُوْنَ".

د "کَمْ" استفهاميه او خبريه د معرفت او پېژندلو طريقه:

که چيري د "کَمْ" څخه وروسته د مخاطب صيغه وه نو بيا "کَمْ" استفهاميه دئ او که چيري د ده څخه وروسته د متکلم صيغه وه نو بيا "کَمْ" خبريه دئ.

## پنځمه خبره:

د "کَمْ" د لفظ اعراب او په ترکيب کي د ده محلا مرفوع يا منصوب يا مجرور واقع کېدل:

منصوب محلا د "کَمْ" څخه وروسته چي کم فعل راځي که چيري په هغه کي استعداد د عمل موجود وو نو بيا به "کَمْ" همېشه منصوب محلا راځي او په ده کي نصب په درو صورتو کي راځي:

۱. اول صورت: که چيري تميز ظرف وو نو بيا به دی مفعول فيه راځي لکه: "کَمْ يَوْمًا سِرْتَ". وَ کَمْ يَوْمٍ صُمْتُ".

۲. دوهم صورت: که چیري تمیز مصدر وو نو بیا به دی مفعول مطلق راځي لکه: "كَمْ ضَرْبَةً ضَرَبْتَ. كَمْ ضَرْبَةٍ ضَرَبْتُ".

۳. دریم صورت: که چیري تمیز نه ظرف او نه مصدر وو نو بیا دی مفعول به راځي لکه: "كَمْ رَجُلًا ضَرَبْتَ. كَمْ غُلَامٍ مَلَكْتُ".

مجرور محلا:

"كَمْ" کله مجروره راځي کله چي د ده څخه مخکي مضاف وي یا حرف جر وي لکه: "بِكَمْ رَجُلًا مَرَرْتَ وَعَلٰى كَمْ رَجُلٍ حَكَمْتُ" د مضاف مثال لکه: "غُلَامُ كَمْ رَجُلًا ضَرَبْتَ" او "غُلَامُ كَمْ رَجُلٍ سَلَبْتُ".

مرفوع محلا:

"كَمْ" چي کله مرفوع محلا واقع کیږي د هغه دپاره قاعده دا ده چي د مخکني دوه امرو څخه یو امر لا نه وي موجود یعني نه به د مابعد په فعل کي د عمل استعداد وي او نه به پر ده باندي حرف جر او مضاف داخل سوی وي نو په دې وخت کي به دی محلا مرفوع وي، او د ده مرفوع والی په دوو شکلو سره راځي:

۱. یو په شکل کي د مبتداء.

۲. او بل په شکل د خبر کي.

او د ده دار مدار پر تمیز باندي دئ که چیري تمیز ظرف نه وو نو بیا به دی مرفوع محلا مبتداء وي لکه: "كَمْ رَجُلًا اَخُوْكَ. كَمْ رِجَالٍ ضَرَبْتُهُمْ" او که چیري تمیز ظرف وو نو بیا به دی مرفوع محلا خبر مقدم وي لکه: "كَمْ يَوْمًا سَفَرُكَ وَكَمْ شَهْرٍ صَوْمِيْ".

## شپږمه خبره:

د "كَمْ" استفهامیه او "كَمْ" خبریه پر تمیز باندي "مِنْ" داخلول هم جائز دي استفهامیه لکه: "كَمْ مِنْ رَجُلٍ لَقِيْتَهُ". (تا د څو خلګو سره ملاقات وکړئ). خبریه لکه: "كَمْ مِنْ مَالٍ اَنْفَقْتُهُ" (ما ډېر مال خرڅ کړئ) نو په دې صورت کي به د دواړو په مینځ کي فرق په قرینه سره کیږي. لیکن که چیري د "كَمْ" او د ده د تمیز په مینځ کي د فعل متعدي فاصله راغله نو بیا د "كَمْ" پر تمیز باندي "مِنْ" داخلول واجب دئ چي بیا د اسم تمیز التباس د فعل متعدي د مفعول سره رانسي.

بحث "كَذَا":

بل اسم د اسماء کنایاتو څخه "كَذَا" دئ.

"كَذَا" د "كَ" او د "ذَا" اسم اشاره څخه مرکب دئ.

د "كَذَا" عمل: "كَذَا" و تمیز ته نصب ور کوي او د ده تمیز مفرد منصوب راځي لکه: "قَبَضْتُ كَذَا وَ كَذَا دِرْهَمًا".

د "كَمْ" و "كَذَا" په څلورو (۴) شیانو کي موافقت:

۱. په ابهام کي.
۲. په بناء کي.
۳. په احتیاج کي.
۴. په افاده د تکثیر کي.

## اوومه خبره:

بحث "كَأَيِّنْ":

بل اسم د اسماء کنایه څخه "كَأَيِّنْ" دئ.

"كَأَيِّنْ" د "کاف" او د "أَيٌّ" منون څخه مرکب دئ.

د "كَأَيِّنْ" عمل:

د "كَأَيِّنْ" تمیز اکثره د "مِنْ" [1] ظاهره او زائده په وجه مجرور راځي لکه: "وَكَأَيِّنْ مِّنْ دَابَّةٍ لَا تَحْمِلُ رِزْقَهَا".

او کله کله منصوب هم راځي لکه: "كَأَيِّنْ لَنَا فَضْلًا".

---

(۱) ابو حیان اندلسي ویلي دي چي د سبویه د کلام څخه دا معلومیږي چي "مِنْ" زائده دئ د تاکید د بیان دپاره راغلی دئ او عند البعض د "كَأَيِّنْ" پر تمیز باندي جر د "مِنْ" مقدر په وجه جائز دئ لېکن د ابن کیسان په نزد باندي دلته جر د اضافت په وجه راغلی دئ لېکن دا خبره غلطه ده ځکه د "كَأَيِّنْ" په آخر کي تنوین راغلی دئ چي مانع عن الاضافت دئ. (کتاب سبویه جلد ۲ صفحه ۱۷۲)

د "كَمْ وَكَأَيِّنْ" اشتراک په پنځو (۵) شیانو کې.

۱. په ابهام کې.

۲. په احتیاج الی التمیز کې.

۳. په مبني والي کې.

۴. په صدارت د کلام کې.

۵. په معنٰی د تکثیر کې.

د "كَمْ وَكَأَيِّنْ" افتراق په څلورو (۴) شیانو کې:

۱. "كَأَيِّنْ" مرکب دئ او "كَمْ" بسیط دئ.

۲. او داغه رنګه د "كَأَيِّنْ" تمیز مجروره راځي او پر ده باندي عام طور "مِنْ" داخلیږي بخلاف د "كَمْ".

۳. "كَأَيِّنْ" د استفهام په معنٰی کي نه استعمالیږي مګر عند البعض استعمالیږي بخلاف د "كَمْ".

۴. د "كَأَيِّنْ" خبر همېشه جمله وي مفرد نسي راتلای بخلاف د "كَمْ".

## جملي:

| عنوان | خبريه انشائيه | مسند | مسند اليه | تعيين حروف عامله و غير عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعيين مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعيين اسماء عدد و اقسام كنايات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَكَمْ مِنْ قَرْيَةٍ أَهْلَكْنَاهَا فَجَاءَهَا بَأْسُنَا بَيَاتًا | خبريه اسميه | أَهْلَكْنَاهَا خبر | (كَمْ مِنْ قَرْيَةٍ) مبتدا | (وَ) استئنافيه (مِنْ) جاره (فَ) | (أَهْلَكْنَا، جَاءَ) فعل معلوم | (كَمْ) اسم كنايه (بَأْسُ) اسم مضاف | (كَمْ) في محل الرفع على مبتدا (أَهْلَكْنَاهَا) محلا خبر (بَأْسُ) فاعل | (قَرْيَةٍ) محلا تمیز منصوب (هَا) (هَا) محلا مفعول به (بَيَاتًا) في تاويل مشتق حال من (بَأْسُ) | (قَرْيَةٍ) لفظا مجرور بحرف الجر زائد (نَا) مضاف اليه | (كَمْ) خبريه حاصل في التميز وهو (قَرْيَةٍ) |
| وَكَأَيِّنْ مِنْ آيَةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ يَمُرُّونَ عَلَيْهَا | خبريه اسميه | (يَمُرُّونَ) خبر | (كَأَيِّنْ مِنْ آيَةٍ الخ) مبتدا | (وَ) استئنافيه (مِنْ) جاره زائده (فِي) جاره (وَ) عاطفه (عَلَى) جاره | (يَمُرُّونَ) فعل معلوم | (كَأَيِّنْ) اسم كنايه | (وَكَأَيِّنْ) في محل الرفع مبتدا (يَمُرُّونَ) خبر (هُمْ) فاعل | (آيَةٍ) محلا منصوب تميز | (آيَةٍ) لفظا مجرور بحرف الجر زائد (السَّمَاوَاتِ) مجرور حقيقي بحرف جاره صفه (آيَةٍ) (الْأَرْضِ) معطوف على السماوات (ها) محلا مجرور حقيقي يَمُرُّونَ | (كَأَيِّنْ) اسم كنايه عن العدد حاصل في التميز وهو (آيَةٍ) |

| عنوان | خبریہ یا انشائیہ | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ و غیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین اسماء عدد و اسماء کنایات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| عِنْدَكَ مِلْؤُهُ عَسَلًا | خبریہ ظرفیہ | (عِنْدَكَ) خبر مقدم | (مِلْؤُهُ عَسَلًا) مبتدا مؤخر | + | + | (عِنْدَ) ظرف مضاف (مِلْءُ) اسم تام | (عِنْدَكَ) محلا مرفوع خبر (مِلْؤُ) مبتدا | (عَسَلًا) تمیز | (كَ) محلا (هُ) محلا مضاف الیہ | (مِلْؤُهُ) اسم تام بالاضافۃ عامل فی التمیز (عَسَلًا) |
| وَوَاعَدْنَا مُوسَى ثَلَاثِينَ لَيْلَةً | خبریہ فعلیہ | (وَاعَدَ) فعل | (نَا) فاعل | (وَ) استنافیہ | (وَاعَدْنَا) فعل معلوم | (ثَلَاثِينَ) اسم عدد | (نَا) فاعل | (مُوسَى) مفعول بہ اول (ثَلَاثِينَ) مفعول بہ ثانی (لَيْلَةً) تمیز | + | (ثَلَاثِينَ) عدد ہو من العقود الثمانیۃ عامل فی التمیز وہو (لَيْلَةً) |
| قَالَ قَائِلٌ مِنْهُمْ كَمْ لَبِثْتُمْ | خبریہ فعلیہ | (قَالَ) فعل | (قَائِلٌ) فاعل | (مِنْ) جارہ | (قَالَ) (لَبِثْتُمْ) فعل معلوم | (كَمْ) اسم کنایہ، تمیز مقدر ہو (يَوْمًا) (قَائِلٌ) اسم فاعل (يَوْمًا) | (قَائِلٌ) (تُمْ) فاعل | (كَمْ لَبِثْتُمْ) فی محل النصب (مقولہ) (يَوْمًا) تمیز مقدر | (هُمْ) مجرور متعلق محذوف نعت (القَائِلُ) | (كَمْ) استفہامیہ عامل فی (يَوْمًا) مقدر |
| لَيْسَ عِنْدِي قَدْرُ حَلْقَةٍ حِلْيَةً | خبریہ ظرفیہ | (عِنْدِي) خبر مقدم | (قَدْرُ حَلْقَةٍ) اسم مؤخر | + | (لَيْسَ) فعل ناقص | (عِنْدِ، قَدْرُ) اسم مضاف | (قَدْرُ) اسم للفعل الناقص | (حِلْيَةً) تمیز (عِنْدِي) فی محل النصب خبر (لَيْسَ) | (ی) محلا مضاف الیہ (حَلْقَةٍ) مضاف الیہ | (قَدْرُ حَلْقَةٍ) اسم تام عامل فی التمیز (حِلْيَةً) |
| عِنْدِي كَذَا وَكَذَا | خبریہ ظرفیہ | (عِنْدِي) خبر مقدم | (كَذَا وَكَذَا) مع تمیز المحذوف مبتدا مؤخر | (وَ) عاطفہ | + | (عِنْدِ) ظرف مضاف | (عِنْدِي) محلا خبر مقدم (كَذَا وَكَذَا) محلا مبتدا مؤخر | (دِرْهَمًا) تمیز محذوف | (ی) محلا مضاف الیہ | (كَذَا وَكَذَا) اسم کنایہ عامل فی التمیز (دِرْهَمًا) محذوف |
| دَرَسْتَ كَيْتَ وَذَيْتَ عِلْمًا | خبریہ فعلیہ | (دَرَسَ) فعل | (تَ) فاعل | (وَ) عاطفہ | (دَرَسَ) فعل معلوم | (كَيْتَ وَذَيْتَ) اسم کنایہ | (تَ) محلا فاعل | (عِلْمًا) تمیز (كَيْتَ وَذَيْتَ) محلا مفعول بہ | + | (كَيْتَ وَذَيْتَ) اسم کنایہ عامل فی التمیز (عِلْمًا) |
| وَكَأَيِّنْ مِنْ نَبِيٍّ قَاتَلَ مَعَهُ رِبِّيُّونَ كَثِيرٌ | خبریہ اسمیہ | (قَاتَلَ مَعَهُ) الخ خبر | (كَأَيِّنْ) مبتدا | (وَ) استنافیہ (مِنْ) جارہ زائدہ | (قَاتَلَ) فعل معلوم | (كَأَيِّنْ) اسم کنایہ (مع) ظرف مضاف (كَثِيرٌ) صفت مشبہ | (كَأَيِّنْ) مبتدا (رِبِّيُّونَ) فاعل (كَثِيرٌ) صفت لہ (هُوَ) محلا فاعل | (نَبِيٍّ) محلا تمیز | (نَبِيٍّ) لفظا مجرور (هُ) محلا مضاف الیہ | (كَأَيِّنْ) اسم کنایہ عامل فی التمیز (نَبِيٍّ) |
| أَلَنْ يَكْفِيَكُمْ أَنْ يُمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلَاثَةِ آلَافٍ | انشائیہ فعلیہ | (يَكْفِيَ) فعل | (أَنْ يُمِدَّكُمْ) بتاویل مصدر فاعل | (ہمزہ) استفہام انکاری (أَنْ) ناصب مصدریہ (لَنْ) ناصب (بِ) جارہ | (يَكْفِيَ، يُمِدَّ) فعل معلوم | (رَبُّ) اسم مضاف (ثَلَاثَةِ) اسم عدد | (أَنْ يُمِدَّكُمْ) محلا فاعل (رَبُّ) فاعل | (يَكْفِيَ) منصوب بلن (كُمْ) مفعول بہ (يُمِدَّ) منصوب بہ ان ناصب مصدریہ (كُمْ) مفعول بہ محلا | (ثَلَاثَةِ) مجرور متعلق (يُمِدَّكُمْ) (آلَافٍ) (كُمْ) مضاف الیہ | (ثَلَاثَةِ آلَافٍ) عدد و اصل تمیزہ محذوف (مَلَكٍ) |
| قُلْ نَارُ جَهَنَّمَ أَشَدُّ حَرًّا | انشائیہ فعلیہ | (قُلْ) فعل | (أَنْتَ) فاعل | + | (قُلْ) فعل معلوم | (نَارُ) اسم مضاف (أَشَدُّ) اسم تام | (أَنْتَ) فاعل، (نَارُ) مبتدا (أَشَدُّ) خبر (هُوَ) فاعل | (حَرًّا) تمیز | (نَارُ جَهَنَّمَ) غیر منصرف فی محل النصب مقولہ قول | (أَشَدُّ) اسم تام عامل فی تمیزہ (حَرًّا) |

| عنوان | خبر او انشاء | مسند | مسند الیه | تعین حروف عامله و غیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعین اسماء عدد و اقسام کنایات |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنْ تَسْتَغْفِرْ لَهُمْ سَبْعِيْنَ مَرَّةً فَلَنْ يَغْفِرَ اللهُ لَهُمْ | خبریه فعلیه | (تَسْتَغْفِرْ . يَغْفِرَ) فعل معلوم | (أَنْتَ . اللهُ) فاعل | (إِنْ) حرف شرط جازم (لأمر) جاره (فَ) جزائیه (لَنْ) ناصب (لأمر) جاره | (تَسْتَغْفِرْ . يَغْفِرَ) فعل معلوم | + | (أَنْتَ . اللهُ) فاعلان | (سَبْعِيْنَ) مفعول به (مَرَّةً) تمیز | (هُمْ) مجرور متعلق (تَسْتَغْفِرْ) هُمْ محلا مجرور متعلق (يَغْفِرَ) | (سَبْعِيْنَ مَرَّةً) عدد اوسط (مَرَّةً) تمیز |

## التمرین:

"كَمْ مُصَلٍّ عَنْ صَلَاتِهِ غَافِلٌ،، كَمْ رَكْعَةً صَلَّيْتَ،، هُمْ أَكْثَرُوْنَ مِنْكَ مَالًا، كَمْ مِنْ فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ فِئَةً كَثِيرَةً بِإِذْنِ اللهِ،، كَمْ أَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِنَ الْقُرُوْنِ،، فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا،، وَكَمْ مِنْ مَلَكٍ فِي السَّمَاوَاتِ لَا تُغْنِي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا،، كَمْ صَائِمٍ لَيْسَ لَهُ مِنْ صِيَامِهِ نَصِيبٌ،، كَمْ يَوْمًا غِبْتَ عَنِّي،، كَانَ مِنَ الْأَمْرِ ذَيْتَ وَذَيْتَ".

فصل بدانکه عوامل معنویه الخ:............................................ الی قوله دوم تاکید.

## ترجمه:

دوهم قسم عوامل معنویه دي. پوه سه! چي عامل معنوي پر دوه قسم دي اول ابتداء يعني د اسم خالي والی د عوامل لفظيه څخه او دا خلو ومبتداء ته رفع ور کوي لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ" نو دلته ويل کيږي "زَيْدٌ" مبتداء ده مرفوع ده د ابتداء په وجه سره او "قَائِمٌ" خبر د مبتداء دي او مرفوع دي د ابتداء په وجه دلته دوه مذهبونه نور هم دي يو دا دئ چي ابتداء عامله ده په مبتداء کي او مبتداء عامله ده په خبر کي دوهم مذهب دا دئ چي هر يو د مبتداء و خبر څخه يو په بل کي عامل دئ دوهم خُلُوّ يعني فعل مضارع چي خالي وي د نواصب و جوازم څخه هغه فعل مضارع ته رفع ور کوي لکه: "يَضْرِبُ زَيْدٌ" دلته "يَضْرِبُ" مرفوع ده ځکه د نواصب و جوازمو څخه خالي ده اوس د نحو ټول عوامل ختم سو د الله تعالی په توفيق سره.

## الدرس الرابع والثلاثون:

د نن د سبقْ خلاصه اووه (۷) خبري دي:

**اوله خبره:**

مصنف رحمة الله علیه د عوامل لفظیه د بیان څخه فارغ سو نو اوس یې شروع و کړه په بیان کي د عوامل معنویه:

د عوامل معنویه اقسام:

عوامل معنوي (1) پر دوه قسمه دي:

۱. ابتداء.

۲. خُلُوٌّ.

د ابتداء تعریف:

د یو اسم د عوامل لفظیه څخه خالي کېدل لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ".

د ابتداء عمل:

ابتداء په مبتداء او خبر کي عمل د رفع کوي دواړو ته رفع ور کوي لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ".

د خُلُوٌّ تعریف:

خُلُوٌّ یعني د فعل مضارع د حروف نواصب و جوازم څخه خالي کېدل.

د خُلُوٌّ عمل:

خُلُوٌّ فعل مضارع ته رفع ور کوي لکه: "يَضْرِبُ".

د مبتداء تعریف:

"هُوَ اِسْمٌ اَوْ بِمَنْزِلَتِهِ مُجَرَّدٌ عَنِ الْعَوَامِلِ اللَّفْظِيَّةِ اَوْ وَصْفٌ رَافِعٌ لِاِسْمٍ ظَاهِرٍ" لکه: "اَللّٰهُ رَبُّنَا، وَأَنْ تَصُوْمُوا خَيْرٌ لَّكُمْ".

---

(1) د مبتداء او خبر د عامل په باره کي اختلاف دئ عند البعض د مبتداء عامل ابتداء ده یعني عامل معنوي دئ او د خبر عامل مبتداء او ابتداء دواړه دي یعني لفظي و معنوي دواړه دي. د امام سبویه رحمة الله علیه په نزد باندي د مبتداء عامل معنوي دئ یعني ابتداء ده او د خبر عامل لفظي دئ چي مبتداده. او د کوفیین په نزد باندي مبتداء عامله ده په خبر کي او خبر عامل دئ په مبتداء کي یعني د دواړو عامل لفظي دئ او د علامه جارالله زمخشري په نزد باندي د دواړو عامل معنوي دئ او د امام کسائي رحمة الله علیه په نزد باندي د فعل مضارع عامل لفظي دئ په حالت رفعي کي حروف اتین دي او په نزد د کوفیین باندي د فعل مضارع عامل معنوي دئ یعني خلو د نواصب د جوازم څخه او د بصریین په نزد باندي د فعل مضارع عامل د دې واقع کېدل پر ځای د اسم باندي یعني دې قائمقام والی پر ځای د اسم باندي په دې کي عامل دئ. (نصر الخبیر)

## دوهمه خبره:

د مبتداء احكام:

د مبتداء دپاره پنځه (۵) حکمونه دي:

۱. اول حکم يې دا دئ: وجوب الرفع يعني پر ده باندې رفع ويل واجب دي لېکن کله کله د "مِنْ" او "بَا" زائده او د "رُبَّ" حرف جر په وجه مجروره سي لکه: "بِحَسْبِکَ اللهُ. هَلْ مِنْ خَالِقٍ غَيْرُ اللهِ يَرْزُقُكُمْ. يَا رُبَّ كَاسِيَةٍ فِي الدُّنْيَا عَارِيَةٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ".

۲. دوهم حکم يې دا دئ: "وُجُوْبُ كَوْنِهٖ مَعْرِفَةً" يعني د ده معرفتوب واجب دئ لکه: "مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللهِ" يا نکره مفيده [1] وي لکه: "مَجْلِسُ عِلْمٍ يُنْتَفَعُ بِهٖ خَيْرٌ مِنْ عِبَادَةِ سَبْعِيْنَ سَنَةً".

---

[1] نکره چي مفيده يا مخصصه ګرځي په څوارلسو (۱۴) مقامو (ځايو) کي ګرځي:

۱. اول مقام: چي لفظا په اضافت سره لکه: "خَمْسُ صَلَوَاتٍ كَتَبَهُنَّ اللهُ" يا معنًا په اضافت سره لکه: "قُلْ كُلٌّ يَعْمَلُ عَلٰى شَاكِلَتِهٖ اَیْ كُلُّ اَحَدٍ".

۲. دوهم مقام: په وصف لفظي سره لکه: "وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ" يا په وصف تقديري سره لکه: "شَرٌّ اَهَرَّ ذَانَابٍ اَیْ شَرٌّ عَظِيْمٌ" يا په وصف معنوي سره لکه: "رُجَيْلٌ عِنْدَنَا اَیْ رَجُلٌ حَقِيْرٌ" ځکه په تصغير کي معنى د وصف وي.

۳. دريم مقام: يا کله چي د مبتداء خبر ظرف راسي يا جار و مجرور مقدم راسي لکه: "وَفَوْقَ كُلِّ ذِيْ عِلْمٍ عَلِيْمٌ. لِكُلِّ اَجَلٍ كِتَابٌ".

۴. څلورم مقام: چي مبتداء نکره وروسته تر نفي راسي لکه: "مَا اَحَدٌ عِنْدَنَا" يا تر استفهام وروسته لکه: "اَاِلٰهٌ مَعَ اللهِ" يا تر "لَوْلَا" وروسته راسي لکه: شعر: "لَوْلَا اصْطِبَارٌ لَاَوْدٰى كُلُّ ذِیْ مِقَةٍ" يا تر "اِذَا" مفاجاتيه وروسته راسي لکه: "خَرَجْتُ فَاِذَا اَسَدٌ رَابِضٌ".

۵. پنځم مقام: کله چي مبتداء نکره عامله وي په معمول کي لکه: "اِعْطَاءٌ قِرْشًا فِي سَبِيْلِ الْعِلْمِ يَنْهَضُ بِالْاُمَّةِ. اَمْرٌ بِمَعْرُوْفٍ صَدَقَةٌ وَنَهْيٌ عَنْ مُنْكَرٍ صَدَقَةٌ" دلته "اِعْطَاءٌ" مصدر عمل د نصب کرئ دئ په "قِرْشًا" کي او په امر و نهي پوري جار و مجرور تعلق نسي چي د دوی دپاره مفعول غير صريحي دئ.

۶. شپږم مقام: کله چي مبتداء نکره مبهمه واقع سي لکه: اسماء شرط مثال لکه: "مَنْ يَّجْتَهِدْ يُفْلِحْ" يا استفهام وي لکه: "مَنْ مُجْتَهِدٌ، وَكَمْ عِلْمًا فِيْ صَدْرِكَ" يا "مَا" تعجبيه وي لکه: "مَا اَحْسَنَ الْعِلْمَ" يا "كَمْ" خبريه وي لکه: "كَمْ مَاْثِرَةٍ لَكَ".

۷. اووم مقام: کله چي نکره فائده د دعاء ورکوي خواه که د خير دعاء وي لکه: "سَلَامٌ عَلَيْكُمْ" يا د شر دعاء وي لکه: "وَيْلٌ لِلْمُطَفِّفِيْنَ".

۳. دریم حکم یې دا دئ: "جَوَازُ حَذْفِهِ اِنْ دَلَّ عَلَيْهِ دَلِيْلٌ" یعني مبتداء حذف کول جائز دي که چیرې یو دلیل موجود وو لکه: څوک سوال و کړي چې "كَيْفَ سَعِيْدٌ" د ده په جواب کې وویل سي "مُجْتَهِدٌ اَیْ هُوَ مُجْتَهِدٌ".

۴. څلورم حکم یې دا دئ: "وُجُوْبُ حَذْفِهِ" یعني د مبتداء حذف کول په څلورو ځایو کې وجوبًا:

۱. اول ځای: که چیرې پر مبتداء باندې جواب د قسم دلالت کاوئ لکه: "فِيْ ذِمَّتِيْ لَاَفْعَلَنَّ كَذَا اَیْ فِيْ ذِمَّتِيْ عَهْدٌ لَاَفْعَلَنَّ كَذَا".

۲. دوهم ځای: که چیرې خبر د مبتداء مصدر وو او نائب وو د خپل فعل څخه لکه: "صَبْرٌ جَمِيْلٌ اَیْ صَبْرِيْ صَبْرٌ جَمِيْلٌ: وَ سَمْعٌ وَ طَاعَةٌ: اَیْ وَ اَمْرِيْ سَمْعٌ وَ طَاعَةٌ".

---

۸. اتم مقام: کله چې نکره صفت د موصوف پر ځای ودرېږي لکه: "عَالِمٌ خَيْرٌ مِنْ جَاهِلٍ اَیْ رَجُلٌ عَالِمٌ".

۹. نهم مقام: کله چې نکره صدر د جملې حالیه واقع سي خواه که هغه جمله مرتبه په واو سره وي او که بغیر د واو وي د واو مثال لکه: "سَرَيْنَا وَ نَجْمٌ قَدْ اَضَاءَ" او د بدون واو مثال لکه: "كُلَّ يَوْمٍ تَرَانِيْ مُدْيَةٌ بِيَدِيْ".

۱۰. لسم مقام: کله چې نکره عطف سي پر معرفه باندې یا معرفه عطف سي پر نکره باندې د اول مثال لکه: "خَالِدٌ وَ رَجُلٌ يَتَعَلَّمَانِ النَّحْوَ". د دوهم مثال لکه: "رَجُلٌ وَ خَالِدٌ يَتَعَلَّمَانِ الصَّرْفَ".

۱۱. یوولسم مقام: کله چې د نکره عطف پر نکره موصوفه وسي یا د نکره موصوفه عطف پر نکره وسي د اول مثال لکه: "قَوْلٌ مَعْرُوْفٌ وَمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِنْ صَدَقَةٍ يَتْبَعُهَا اَذًى" د دوهم مثال لکه: "طَاعَةٌ وَ قَوْلٌ مَعْرُوْفٌ".

۱۲. دوولسم مقام: کله چې د نکره څخه مراد حقیقت جنس وي نه فرد واحد لکه: "تَمْرَةٌ خَيْرٌ مِنْ جَرَادَةٍ" "رَجُلٌ اَقْوٰى مِنْ اِمْرَءَةٍ".

۱۳. دیارلسم مقام: کله چې نکره جواب واقع سي لکه: "رَجُلٌ" په جواب د هغه چا کې ویل چې هغه وایي: "مَنْ عِنْدَكَ". د امام سبویه او د متقدین په نزد باندې کله چې نکره مفیده وي بیا یې مطلقًا ابتدائیت جائز دئ لېکن که چیرې نکره موصوفه غیر مفیده وه بیا یې هم ابتدائیت جائز نه دئ لکه: "رَجُلٌ مِنَ النَّاسِ عِنْدَنَا" او دغه رنګه کله چې د نکره خبر ظرف یا جار و مجرور راغلی وي او پر دی باندې مقدم وي لکه: "عِنْدَ رَجُلٍ مَالٌ. لِاِنْسَانٍ ثَوْبٌ" و غیره ځکه په دې کې څه فائده نسته.

۱۴. څوارلسم مقام: چې کله نکره دلالت پر تنویع یعني پر تفصیل و تقسیم باندې کوي لکه: "فَاَقْبَلْتُ زَحْفًا عَلَى الرُّكْبَتَيْنِ فَثَوْبٌ لَبِسْتُ وَ ثَوْبٌ اَجُرُّ". (جامع الدروس العربیة جلد ۲ صفحه ۱۸۰)

۳. دريم ځای: كه چيري خبر مخصوص بالمدح يا بالذم راغلی وو وروسته تر "نِعْمَ" او تر "بِئْسَ" لكه: "نِعْمَ الرَّجُلُ اَبُوْ طَالِبٍ اَیْ هُوَ. وَ بِئْسَ الرَّجُلُ اَبُوْ لَهَبٍ اَیْ هُوَ".

۴. څلورم ځای: كه چيري خبر په اصل كي نعت وو بيا وروسته د نعتيت څخه قطع سوی وو او په معرض د مدح او ذم يا ترحم كي راغلی وو لكه: "خُذْ بِيَدِ زُهَيْرٍ اَلْكَرِيْمُ اَیْ هُوَ الْكَرِيْمُ. دَعْ مَجَالِسَةَ فُلَانٍ اللَّئِيْمُ اَیْ هُوَ اللَّئِيْمُ. وَ اَحْسِنْ اِلَی فُلَانٍ الْمِسْكِيْنُ اَیْ هُوَ الْمِسْكِيْنُ".

۵. پنځم حكم يې دا دئ. چي دا به پر خبر باندي مقدمه وي او د خبر تقديم كله پر دې باندي جائز وي او كله واجب وي، اُنْظُرْ فِي الْحَاشِيَةِ الْآتِيَةِ.

## دريمه خبره:

اقسام د مبتداء:

مبتداء پر درې (۳) قسمه راځي:

۱. اول قسم: مبتداء كله اسم صريحي وي لكه: "اَلْكَرِيْمُ مَحْبُوْبٌ".

۲. او كله ضمير منفصل وي لكه: "اَنْتَ مُجْتَهِدٌ".

۳. او كله مؤل په مصدر سره وي لكه: "وَأَنْ تَصُوْمُوا خَيْرٌ لَكُمْ اَیْ صَوْمُكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ" دلته فعل په تاويل د مصدر مرفوع سره دئ "سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنْذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ: اَیْ اِنْذَارُكَ وَ عَدَمُ اِنْذَارِكَ سَوَاءٌ" دلته همزه تسويه په تاويل د مصدر مرفوع سره دئ، "تَسْمَعُ بِالْمُعَيْدِيِّ خَيْرٌ مِنْ اَنْ تَرَاهُ اَیْ سِمَاعُكَ بِالْمُعَيْدِيِّ خَيْرٌ مِنْ رُؤْيَتِكَ اِيَّاهُ" دلته "تَسْمَعُ" مؤل دئ په مصدر مرفوع سره "خَيْرٌ" يې خبر دئ.

## څلورمه خبره:

د مبتداء قسم ثاني:

مبتداء (١) به يا ذات وي او يا به صفت وي. د ذات بحث په اوله خبره کي تېر سو که چيري مبتداء صيغه صفت واقع سوه د هغه دپاره دوه (٢) شرطونه دي:

١. اول شرط يې دا دئ: چي صفت به اعتماد پر نفي کړی وي خواه که نفي بالحرف وي لکه: "مَا نَاجِحُ الْكَسُوْلَانِ" يا نفي په فعل ناقص سره وي لکه: "لَيْسَ كَسُوْلٍ وَلَدَاكَ" يا په لفظ د "غَيْرُ" سره وي لکه: "غَيْرُ كَسُوْلُ اَبْنَاءُكَ" خواه که نفي لفظي وي او که معنوي وي لکه: "اِنَّمَا مُجْتَهِدٌ وَلَدَاكَ" د دې تاويل "مَا مُجْتَهِدٌ اِلَّا وَلَدَاكَ".

٢. دوهم شرط يې دا دئ: چي صفت به اعتماد پر استفهام کړی وي خواه که استفهام بالحرف وي لکه: "هَلْ مُحْبُوْبٌ اَلْمُجْتَهِدُوْنَ" يا بغير الحرف وي لکه: "كَيْفَ سَائِرٌ اَخَوَاكَ".

---

(١) په شپږو ځايو کي تقديم د مبتداء پر خبر باندي واجب دئ:

١. اول ځای: مبتداء چي کله داسي اسم واقع سي چي هغه صدارت د کلام غواړي هغه يا اسماء الشرط وي لکه: "وَمَنْ يَتَّقِ اللّٰهَ يُكَفِّرْ" يا اسماء استفهام وي لکه: "مَنْ جَاءَ" يا "مَا" تعجبيه وي لکه: "مَا اَحْسَنَ الْفَضِيْلَةَ" يا "كَمْ" خبريه وي لکه: "كَمْ كِتَابٍ عِنْدِيْ".

٢. دوهم ځای: مبتداء چي کله مشابه وي د اسم شرط سره لکه: "اَلَّذِيْ يَجْتَهِدُ فَلَهُ جَائِزَةٌ. وَكُلُّ تِلْمِيْذٍ يَجْتَهِدُ فَهُوَ عَلٰى هُدًى"؛ تقدير د عبارت "مَنْ يَجْتَهِدْ فَلَهُ جَائِزَةٌ اَیُّ تِلْمِيْذٍ يَجْتَهِدْ فَهُوَ عَلٰى هُدًى".

٣. دريم ځای: مبتداء چي کله مضافه وي و هغه اسم ته چي هغه صدارت د کلام غواړي لکه: "غُلَامُ مَنْ مُجْتَهِدٌ وَزِمَامُ كَمْ اَمْرٍ فِيْ يَدِكَ".

۴. څلورم ځای: مبتداء چي کله مقترنه وي په لام تاکيد سره يعني په لام ابتداء سره لکه: "وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ".

۵. پنځم ځای: چي مبتداء و خبر دواړه معرفه وي يا نکره وي او هلته تعين د قرينه هم نه وي نو بيا په هغه صورت کي تقديم د مبتداء پر خبر باندي واجب دئ د وجه د التباس د مبتداء د خبر سره لکه: "اَخُوْكَ عَلِيٌّ" کله چي ته اخبار د "اخ" ښخه کوي يا "عَلِيٌّ اَخُوْكَ" کله چي ته اخبار د "عَلِيٌّ" ښخه کوي لېکن که چيري د مبتداء او د خبر په مينځ کي د فرق کولو قرينه موجوده وي بيا د مبتداء تقديم و تاخير دواړه جائز دي لکه: "رَجُلٌ صَالِحٌ حَاضِرٌ. وَحَاضِرٌ رَجُلٌ صَالِحٌ".

٦. شپږم ځای: مبتداء چي کله په خبر کي حصر وي يعني خبر مقرون په "اِلَّا" سره وي لکه: "وَمَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ" يا په معنی د "اِلَّا" سره وي لکه: "اِنَّمَا اَنْتَ نَذِيْرٌ" ځکه "محمد" حصر دئ په "رسالت" کي. (جامع الدروس العربية جلد ٢ صفحه ١٨٨)

**فائده:**

صيغه د صفت چي کله اعتماد و کړي پر نفي يا پر استفهام باندي نو بيا دا په منزله د فعل سره سي نو ځکه دا نه تثنيه کيږي او نه جمع کيږي نه د چا دپاره صفت واقع کيږي او نه تصغير واقع کيږي، او نه "مُعَرَّفْ" واقع کيږي نو په دې صورت کي صيغه د صفت مبتداء ده مابعد يې فاعل يا نائب فاعل قائم مقام د خبر وي يعني کله چي د دې مابعد د دې څخه مخالف وي په تثنيت او جمعيت کي.

او صيغه د صفت عامه ده خواه که مشتقه وي لکه: په تېر سوو مثالو کي يا اسم جامد وي لېکن معنی د صفت په کښي وي لکه: "هَلْ صَخْرٌ هَذَانِ الْمُعَانِدَانِ، وَمَا وَحْشِيٌّ اَخْلَاقُکَ" ځکه دلته "صَخْرٌ" په معنی د "صُلْبٌ" (سخت) سره دئ او "وَحْشِيٌّ" اسم منسوب په معنی د اسم مفعول سره دئ. لېکن که چيري صيغه د صفت وروسته تر نفي يا تر استفهام نه وه راغلې بيا مطابقت لازم دئ نو ځکه "مُجْتَهِدٌ غُلَامَاکَ" ويل جائز نه دي بلکه: "مُجْتَهِدَانِ غُلَامَاکَ" ويل کيږي او په دې صورت کي صيغه د صفت خبر مقدم جوړيږي او که چيري صيغه د صفت د خپل خبر سره په افراد کي مطابق راغلې وو، نو بيا "جَاءَ الْاَمْرَانِ" لکه: "هَلْ مُسَافِرٌ اَخُوکَ" نو په دې صورت کي صيغه د صفت مبتداء هم جوړېدای سي او خبر مقدم هم جوړېدای سي.

د صفت د صيغه عمل:

مبتداء چي کله صيغه د صفت واقع سي نو بيا دا کله په اسم ظاهر کي عمل کوي او اسم ظاهر ته رفع ور کوي لکه: "اَقَاطِنٌ قَوْمُ سَلْمٰی". يا ضمير منفصل ته رفع ور کوي لکه: "مَاوَافٍ بِعَهْدِیَ اَنْتُمَا".

او که چيري صيغه د صفت په ضمير مستتر کي عمل د رفع کاوئ لکه: "زُهَيْرٌ لَا کَسُوْلٌ وَلَا بَطِيٌّ" نو په دې صورت کي دا د ماقبل دپاره خبر جوړيږي.

**پنځمه خبره:**

د مبتداء د قسم ثاني مختصره او دلنشين خلاصه:

صيغه د صفت چي کم وخت تر نفي او استفهام وروسته واقع سي او د دې وروسته چي کم اسم ظاهر راځي د هغه دپاره درې (۳) صورتونه جوړيږي:

۱. اول صورت: چي صيغه د صفت د اسم ظاهر سره مطابق نه وي په افراد وتثنيت و جمعيت کي لکه: "مَا قَائِمُ الزَّيْدَانِ، مَا قَائِمُ الزَّيْدُوْنَ" نو د دې صورت حکم دا دئ چي صيغه د صفت به وجوبًا مبتداء وي "لِرَفْعِ الظَّاهِرِ".

۲. دوهم صورت: چي صيغه د صفت د اسم ظاهر سره صرف په افراد کي مطابق وي لکه: "اَقَائِمٌ زَيْدٌ، مَا قَائِمٌ زَيْدٌ"، نو د دې صورت حکم دا دئ: چي دواړه صورتونه جائز دي که چيري په اسم ظاهر کي د رفع ور کولو لحاظ وساتل سي نو صيغه د صفت به مبتداء جوړه سي او که چيرې په ضمير کي د رفع لحاظ و ساتل سي نو صيغه د صفت به خبر مقدم جوړه سي.

۳. دريم صورت: چي صيغه د صفت د اسم ظاهر سره په تثنيت و جمعيت کي مطابق وي نو د دې صورت حکم دا دئ چي صيغه د صفت به وجوبًا خبر وي او وروسته اسم به همېشه مبتداء وي لکه: "اَقَائِمَانِ الزَّيْدَانِ، مَا قَائِمُوْنَ الزَّيْدُوْنَ"، ځکه موږ دا شرط لګولی وو چي صيغه د صفت به و اسم ظاهر ته رفع ور کوي او دلته و اسم ظاهر ته رفع نه ور کوي ځکه که چيري و اسم ظاهر ته رفع ور کړې وای نو بيا به صيغه د صفت واحد راوړل سوې وای لکه: په فعل کي "اِذَا كَانَ الْفَاعِلُ اِسْمًا ظَاهِرًا وُحِّدَ الْفِعْلُ اَبَدًا".

## شپږمه خبره:

د خبر احکام:

د خبر اووه (۷) حکمونه دي:

۱. اول حکم يې دا دئ: چي دی به وجوبًا مرفوع وي.

۲. دوهم حکم يې دا دئ: چي خبر به اصلًا نکره مشتقه وي او کله خبر جامد هم راځي لکه: "هٰذَا حَجَرٌ".

۳. دریم حکم یې دا دئ: چې دی به د مبتداء مطابق [1] وي وجوبًا په افراد و تثنیت او جمعیت تذکیر و تانیث کې په لسو (۱۰) شرطو سره "وَقَدْ مَرَّ ذِكْرُهُ فِي أَوَّلِ الْكِتَابِ فِيْ بَحْثِ الْجُمْلَةِ الْاِسْمِيَّةِ".

۴. څلورم حکم یې دا دئ: چې دی کله کله جوازًا حذف کیږي د قرینه د وجود په وخت کې لکه: "خَرَجْتُ فَاِذَا الْاَسَدُ: اَیْ فَاِذَا الْاَسَدُ وَاقِفٌ".

## اوومه خبره:

۵. پنځم حکم یې دا دئ: چې دی کله کله وجوبًا حذف کیږي په یو څو ځایو کې:

اول ځای: چې خبر کله په حیز د جواب د قسم کې راسي بیا دی حذف کیږي لکه: "لَعَمْرُکَ لَاَفْعَلَنَّ كَذَا اَیْ لَعَمْرُکَ قَسَمِيْ اَیْ: حَيَاتُکَ هِيَ قَسَمِيْ".

دوهم ځای: د "لَوْلَا، لَوْمَا" څخه وروسته خبر حذف کیږي لکه: "لَوْلَا عَلِيٌّ لَهَلَکَ عُمَرُ اَیْ لَوْلَا عَلِيٌّ مَوْجُوْدٌ".

دریم ځای: د "لَا" نفي جنس څخه وروسته عام طور خبر حذف کیږي لکه: "لَاشَکَّ اَیْ لَاشَکَّ فِیْهِ".

څلورم ځای: د "واو" څخه وروسته خبر حذف کیږي هغه "واو" چې په معنی د "مَعَ" سره وي لکه: "اَنْتَ وَ شَانُکَ اَیْ اَنْتَ مَعَ شَانِکَ مَتْرُوْکًا".

پنځم ځای: خبر چې ظرف وي یا جار و مجرور وي نو بیا هم حذف کیږي لکه: "زَیْدٌ فِي الدَّارِ اَیْ ثَابِتٌ فِي الدَّارِ".

---

[1] که وخت چې په خبر کې ضمیر وي راجع وي و مبتداء ته نو بیا یې مطابقت د مبتداء سره په تذکیر و تانیث افراد، تثنیه، و جمع کې لازم دی لکه: "عَلِيٌّ مُجْتَهِدٌ. فَاطِمَةُ مُجْتَهِدَةٌ. اَلتِّلْمِیْذَانِ مُجْتَهِدَانِ. اَلتِّلْمِیْذَتَانِ مُجْتَهِدَتَانِ. اَلتَّلَامِیْذُ مُجْتَهِدُوْنَ. اَلتِّلْمِیْذَاتُ مُجْتَهِدَاتٌ" او که چیرې خبر د مبتداء ضمیر لره متضمن نه وو نو بیا مطابقت او عدم مطابقت دواړه جائز دي، د مطابقت مثال لکه: "اَلشَّمْسُ وَالْقَمَرُ آیَتَانِ مِنْ آیَاتِ اللّٰهِ" او د عدم مطابقت مثال لکه: "اَلنَّاسُ قِسْمَانِ: عَالِمٌ وَ مُتَعَلِّمٌ وَلَا خَیْرَ فِیْمَا بَیْنَهُمَا".

شپږم ځای: چي مبتداء مصدر وي يا اسم تفضيل وي مضاف وي و مصدر ته او وروسته تر دوی حال راغلی وي نو په دې صورت کي هم خبر حذف کيږي لکه: "تَأْدِيبِي الْغُلَامَ مُسِيئًا أَيْ تَأْدِيبِي الْغُلَامَ حَاصِلٌ عِنْدَ إِسَائَتِهِ"، دوهم لکه: "أَفْضَلُ صَلَاتِكَ خَالِيًا مِمَّا يَشْغَلُكَ".

٦. شپږم حکم يې دا دئ: چي دی متعدد هم راتلاي سي لېکن مبتداء واحده وي لکه: "خَلِيلٌ كَاتِبٌ. شَاعِرٌ. عَالِمٌ".

٧. اووم حکم يې دا دئ: چي اصل په خبر کي تاخير دئ لېکن کله کله دی وجوبًا (١) يا جوازا مقدم کيږي، والتفصيل في الحاشية.

## جملي:

| عنوان | خبريه انشاء | مسند | مسند اليه | تعيين حروف عامله وغير عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعيين مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعيين عوامل معنويه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَالْوَالِدَاتُ يُرْضِعْنَ أَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ | خبريه اسميه | (يُرْضِعْنَ) خبر | (وَالْوَالِدَاتُ) مبتداء | (وَ) استنافيه | (يُرْضِعْنَ) فعل معلوم | (أَوْلَادَ) اسم مضاف (كَامِلَيْنِ) اسم فاعل | (وَالْوَالِدَاتُ) مبتداء (يُرْضِعْنَ) محلا فعل مضارع خبر (هُنَّ) فاعل | (أَوْلَادَ) مفعول به (حَوْلَيْنِ) حال (كَامِلَيْنِ) صفت | (هُنَّ) محلا مضاف اليه | (الْوَالِدَاتُ) (يُرْضِعْنَ) لپاره عامل معنوي على المذهب الاصح |

---

(١) خبر په څلورو ځايو کي وجوبًا مقدم کيږي:

١. اول ځای: کله چي مبتداء نکره غير مفيده وي او د دې خبر ظرف او يا جار و مجرور راغلی وي نو بيا تقديم د خبر واجب دئ لکه: "فِي الدَّارِ رَجُلٌ. عِنْدَكَ ضَيْفٌ. وَلَدَيْنَا مَزِيدٌ. وَعَلَى أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ".

٢. دوهم ځای: که چيري خبر اسم استفهام وو لکه: "كَيْفَ حَالُكَ" يا مضاف وو و اسم استفهام ته لکه: "اِبْنُ مَنْ أَنْتَ" نو بيا تقديم د خبر واجب دئ.

٣. دريم ځای: کله چي په مبتداء پوري يو ضمير متصل سي او راجع وي د خبر د شيانو څخه و يو شي ته لکه: "فِي الدَّارِ صَاحِبُهَا. أَمْ عَلَى قُلُوبٍ أَقْفَالُهَا"، نو دلته هم خبر مقدم کيږي وجوبًا.

۴. څلورم ځای: چي کله خبر محصور وي په مبتداء کي او مبتداء مقترنه وي په "إِلَّا" سره لفظا لکه: "مَا خَالِقٌ إِلَّا اللهُ" يا معنًا په "إِلَّا" پوري متصله وي لکه: "إِنَّمَا مَحْمُودٌ مَنْ يَجْتَهِدُ" دلته هم خبر وجوبا مقدم کيږي. (تخليص الشواهد و جامع الدروس العربية)

| عنوان | خبریہ انشائیہ | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین عوامل معنویہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيَذَرُونَ أَزْوَاجًا يَتَرَبَّصْنَ بِأَنْفُسِهِنَّ | خبریہ فعلیہ | (يَذَرُونَ، يَتَرَبَّصْنَ) فعل | (هُمْ، هُنَّ) فاعل | (وَ) عاطفہ (بِ) جارہ | (يَذَرُونَ، يَتَرَبَّصْنَ) فعل معلوم | (أَنْفُسِ) اسم مضاف | (يَذَرُونَ، هُمْ) فاعل (يَتَرَبَّصْنَ) خبر المبتداء محذوف وہو (أَزْوَاجُهُمْ) (هُنَّ) فاعل | (أَزْوَاجًا) مفعول بہ | (أَنْفُسِ) مجرور متعلق (يَتَرَبَّصْنَ) (هِنَّ) مضاف الیہ | (يَذَرُونَ) (يَتَرَبَّصْنَ) لہما عامل معنوی وہو (الخلو) |
| وَاللهُ يَقْبِضُ وَيَبْسُطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ | خبریہ اسمیہ | (يَقْبِضُ، يَبْسُطُ) فعل | (اللهُ، هُوَ) فاعل | (وَ) استئنافیہ، (وَ) عاطفہ، (وَ) عاطفہ (إِلَى) جارہ | (يَقْبِضُ، يَبْسُطُ) فعل معلوم (تُرْجَعُونَ) فعل مجہول | + | (اللهُ) مبتداء (يَقْبِضُ) خبر (هُوَ، هُوَ) فاعلہا (يَبْسُطُ، تُرْجَعُونَ) فعل مضارع مرفوع (أَنْتُمْ) [illegible] | + | (هِ) محلاً مجرور متعلق (تُرْجَعُونَ) | (اللهُ) لہ عامل معنوی وہو (الابتداء) (يَقْبِضُ، يَبْسُطُ، تُرْجَعُونَ) عاملہم (الخلو) |
| وَهِيَ خَاوِيَةٌ عَلَى عُرُوشِهَا | خبریہ اسمیہ | (خَاوِيَةٌ) خبر | (هِيَ) مبتداء | (وَ) حالیہ (عَلَى) جارہ | + | (خَاوِيَةٌ) اسم فاعل (عُرُوشِ) اسم مضاف | (هِيَ) محلاً مبتداء (خَاوِيَةٌ) خبر (هِيَ) فاعل | (وَهِيَ خَاوِيَةٌ) فی محل النصب حال من (قَرْيَةٍ) | (عُرُوشِ) مجرور متعلق (خَاوِيَةٌ) (هَا) مضاف الیہ | (هِيَ، خَاوِيَةٌ) لہما عامل معنوی وہو (الابتداء) |
| مَثَلُ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ أَمْوَالَهُمْ فِي سَبِيلِ اللهِ كَمَثَلِ حَبَّةٍ | خبریہ اسمیہ | (كَمَثَلِ حَبَّةٍ) خبر باعتبار متعلق | (مَثَلُ الَّذِينَ الخ) مبتداء | (فِي) جارہ (كَ) جارہ | (يُنْفِقُونَ) فعل معلوم | (مَثَلُ، أَمْوَالَ، سَبِيلِ، مَثَلِ) اسم مضاف | (مَثَلُ الخ) مبتداء (يُنْفِقُونَ) فعل مضارع مرفوع (هُمْ) فاعل (كَمَثَلِ) محلاً باعتبار متعلق خبر | (أَمْوَالَ) اسم مضاف مفعول بہ | (الَّذِينَ، (هُمْ)) محلاً مضاف الیہ (سَبِيلِ) مجرور متعلق (يُنْفِقُونَ) صلہ موصول (اللهِ) مضاف الیہ (مَثَلِ) مجرور متعلق بمحذوف (حَبَّةٍ) مضاف الیہ | (مَثَلُ الَّذِينَ الخ) (كَمَثَلِ الخ) لہما عامل معنوی وہو (الابتداء) (يُنْفِقُونَ) عاملہ (الخلو) |
| أُولَئِكَ أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ | خبریہ اسمیہ | (أَصْحَابُ الْمَيْمَنَةِ) خبر | (أُولَئِكَ) مبتداء | + | + | (أَصْحَابُ) اسم مضاف | (أُولَئِكَ) محلاً مبتداء (أَصْحَابُ) خبر | + | (الْمَيْمَنَةِ) مضاف الیہ | (أُولَئِكَ، أَصْحَابُ، الْمَيْمَنَةِ) لہما عامل معنوی وہو (الابتداء) |
| وُجُوهٌ يَوْمَئِذٍ خَاشِعَةٌ عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ | خبریہ اسمیہ | (تَصْلَى) فی الآیۃ (الآتیۃ) خبر | (وُجُوهٌ الخ) مبتداء | + | + | (يَوْمَ) اسم مضاف (خَاشِعَةٌ عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ) اسم فاعل | (وُجُوهٌ) مبتداء (خَاشِعَةٌ عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ) صفات (لِلْوُجُوهِ) (هِيَ، هِيَ، هِيَ) فاعل | (يَوْمَ) متعلق (خَاشِعَةٌ) مؤخر | (إِذٍ) مضاف الیہ | (وُجُوهٌ خَاشِعَةٌ عَامِلَةٌ نَاصِبَةٌ) عاملہ معنوی وہو (الابتداء) |
| تَصْلَى نَارًا حَامِيَةً | خبریہ فعلیہ | (تَصْلَى) فعل | (هِيَ) فاعل | + | (تَصْلَى) فعل معلوم | (حَامِيَةً) اسم فاعل | (تَصْلَى) مضارع (هِيَ، هِيَ) فاعل | (نَارًا) مفعول بہ (حَامِيَةً) صفۃ (نَارًا) | + | (تَصْلَى) عاملہ معنوی وہو (الخلو) |
| وَيْلٌ لِكُلِّ هُمَزَةٍ لُمَزَةٍ | خبریہ اسمیہ | (لِكُلِّ) باعتبار متعلق خبر | (وَيْلٌ) مبتداء | (لَامُ) جارہ | + | (كُلِّ) اسم مضاف | (وَيْلٌ) مبتداء (لِكُلِّ) باعتبار متعلق خبر | + | (كُلِّ) مجرور متعلق بمحذوف (هُمَزَةٍ) مضاف الیہ (لُمَزَةٍ) صفۃ | (وَيْلٌ، لِكُلِّ) باعتبار متعلق لہما عامل معنوی وہو (الابتداء) |

| عنوان | خبر و انشاء | مسند | مسند اليه | تعيين حروف عامله وغير عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعيين مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعيين عوامل معنويه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| سَرَابِيلُهُمْ مِنْ قَطِرَانٍ | خبريه اسميه | (مِنْ قَطِرَانٍ) باظهار متعلق خبر | (سَرَابِيلُهُمْ) مبتدا | (مِنْ) جاره | + | (سَرَابِيلُ) اسم مضاف | (سَرَابِيلُ) مبتدا (مِنْ قَطِرَانٍ) باظهار متعلق خبر | + | (هُمْ) محلا مضاف اليه (قَطِرَانٍ) مجرور متعلق محذوف | (سَرَابِيلُهُمْ مِنْ قَطِرَانٍ) عامل معنوي دي هو (الابتداء) |
| وَتَغْشَى وُجُوهَهُمُ النَّارُ | خبريه فعليه | (تَغْشَى) فعل | (النَّارُ) فاعل | (وَ) عاطفه | (تَغْشَى) فعل معلوم | (وُجُوهَ) اسم مضاف | (النَّارُ) فاعل | (وُجُوهَ) مفعول به | (هُمْ) محلا مضاف اليه | (تَغْشَى) مرفوع تقديرا بعامل معنوي دي هو (الخلو) |
| اللَّهُ يَعْلَمُ مَا تَحْمِلُ كُلُّ أُنْثَى وَمَا تَغِيضُ الْأَرْحَامُ وَمَا تَزْدَادُ | خبريه اسميه | (يَعْلَمُ) خبر | (اللَّهُ) مبتدا | (وَ) عاطفه (وَ) عاطفه | (يَعْلَمُ، تَحْمِلُ، تَغِيضُ، تَزْدَادُ) فعل معلوم | (٣) (مَا) اسم موصول (كُلُّ) اسم مضاف | (اللَّهُ) مبتدا (يَعْلَمُ) خبر (هُوَ) فاعل (كُلُّ) فاعل (تَحْمِلُ، تَغِيضُ، تَزْدَادُ) مضارع مرفوع (الْأَرْحَامُ) فاعل (هي) فاعل | (مَا تَحْمِلُ) الخ جمله في محل نصب مفعول به (وَ) ما دوه معطوف مفعول به والجمله معطوف عليه | (أُنْثَى) مضاف اليه | (اللَّهُ، يَعْلَمُ) عامل معنوي دي هو مبتدا (تَغِيضُ، تَحْمِلُ، تَزْدَادُ) عامل معنوي دي هو (الخلو) |

## التمرين:

"هُوَ الَّذِي يُرِيكُمُ الْبَرْقَ خَوْفًا وَطَمَعًا،، وَيُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ،، أُولَئِكَ أَصْحَابُ الْجَنَّةِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ،، إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ،، وَمَا تُغْنِي الْآيَاتُ وَالنُّذُرُ عَنْ قَوْمٍ لَا يُؤْمِنُونَ،، ذَلِكُمْ خَيْرٌ لَكُمْ إِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُونَ،، وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِمَا يُوعُونَ،، سَنُقْرِئُكَ فَلَا تَنْسَى،، وَمِنْهُمْ أُمِّيُّونَ لَا يَعْلَمُونَ الْكِتَابَ،، أَوَلَا يَعْلَمُونَ أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ".

خاتمه در فوائد متفرقه كه دانستن آن واجب است وآن بر سه فصل است.

## ترجمه:

خاتمه د متفرقه فوائدو په بيان كي ده چي پېژندل د هغه ضروري دي د دې درې فصلونه دي اول فصل د توابع په بيان كي دئ.

پوه سه! چي تابع هغه لفظ ته ويل كيږي چي د مخكني لفظ څخه پر دوهم نمبر باندي وي او د اولي كلمه په اعراب سره موصوفه وي او وجه د اعراب هم يوه وي و اول لفظ ته متبوع ويل كيږي د تابع حكم دا دئ چي دى به همېشه په اعراب كي د متبوع موافق وي تابع پر پنځه قسمه دئ اول صفت دئ صفت د هغه تابع نوم دئ چي پر هغه وصف باندي دلالت كوي چي په متبوع كي وي لكه: "جَائَنِيْ

رَجُلٌ عَالِمٌ" يا پر هغه صفت باندي دلالت کوي چي د متبوع په متعلق وي لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ حَسَنٌ غُلَامُهُ" يا "اَبُوْهُ" مثلا قسم اول د متبوع سره په لسو شيانو کي موافقت غواړي په معرفت کي په نکارت کي په تذکير کي په تانيث کي په وحدت کي په تثنيت کي په جمعيت کي او په اعراب کي يعني په رفع نصب و جر کي لکه: "عِنْدِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ وَ رَجُلَانِ عَالِمَانِ وَ رِجَالٌ عَالِمُوْنَ. وَ اِمْرَاَةٌ عَالِمَةٌ، وَ اِمْرَاَتَانِ عَالِمَتَانِ، اَوْ نِسْوَةٌ عَالِمَاتٌ" پاته سو دوهم قسم په پنځو شيانو کي د متبوع سره مطابقت غواړي په معرفت کي په نکارت کي په اعراب کي يعني په رفع، نصب، جر کي لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ اَبُوْهُ". پوه سه چي د نکره صفت جمله خبريه راتلای سي لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ اَبُوْهُ عَالِمٌ" او په دې جمله کي يو ضمير وي چي و نکره موصوفه ته راجع وي.

## الدرس الخامس والثلاثون:

د نن سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

فصل در توابع (١):

د تابع تعريف:

"وَهُوَ كُلُّ ثَانٍ مُعْرَبٍ بِإِعْرَابِ سَابِقِهِ مِنْ جِهَةٍ وَاحِدَةٍ".

توابع جمع د تابع ده تابع هغه لفظ دئ چي دی تر يو لفظ وروسته راسي د ده او د اول لفظ اعراب او جهت د اعراب يو وي اول ته متبوع او دوهم ته تابع وايي.

د تابع حکم:

تابع په اعراب کي همېشه د متبوع تابع وي که چيري متبوع مرفوع وو دَی به هم مرفوع وي او که هغه منصوب وو دی به هم منصوب وي او که چيري هغه مجروره وو نو دی به هم مجرور وي لکه:

---

(١) معمول پر دوه قسمه دئ: (١) معمول اصلي (٢) معمول فرعي. معمول اصلي هغه معمول دئ چي د دا دوويشت (٢٢) معمولاتو څخه وي هغه دوويشت (٢٢) معمولات اته (٨) دانې مرفوعات، دوولس (١٢) منصوبات دوه (٢) مجرورات. معمول فرعي چي د دا دوويشت معمولاتو څخه نه وي بلکه په دې کي د يوه تابع وي هغه پنځه دانې دي (١) صفت، (٢) بدل. (٣) تاکيد. (۴) عطف بالحرف. (۵) عطف بيان. (ضوابط نحوية)

"جَاءَنِيْ رَجُلٌ عَالِمٌ، وَ رَأَيْتُ رَجُلًا عَالِمًا، وَ مَرَرْتُ بِرَجُلٍ عَالِمٍ" د تابع او متبوع عامل يو وي مګر په متبوع کي آوّلًا و بالذات عمل کوي او په تابع کي ثانيًا و بالتبع عمل کوي.

د توابع انواع:

توابع پر پنځه (١) قسمه دي:

١. اول: صفت دئ.
٢. دوهم: تاکيد.
٣. دريم: بدل.
٤. څلورم عطف بحرف.
٥. پنځم: عطف بيان.

**دوهمه خبره:**

د تابع او متبوع په مينځ کي فاصله د غير اجنبي جائز ده هغه فاصله پر دوولس (١٢) قسمه راځي:

١. اول: د خبر فاصله لکه: "زَيْدٌ قَائِمٌ الْعَالِمُ".
٢. دوهم: د جواب قسم فاصله لکه: "بَلٰى وَرَبِّيْ لَتَأْتِيَنَّكُمْ عَالِمِ الْغَيْبِ".
٣. دريم: د جمله معترضه فاصله لکه: "وَإِنَّهُ لَقَسَمٌ لَوْ تَعْلَمُوْنَ عَظِيْمٌ".
٤. څلورم: د استثناء فاصله لکه: "مَا جَاءَنِيْ أَحَدٌ إِلَّا زَيْدًا خَيْرٌ مِنْكَ".

---

(١) د توابع په پنځو انواع کي وجه د حصر تابع د دوو حالو څخه خالي نه دئ يا به "مُقَرِّيْ" د حکم وي يا به نه وي که چيري "مُقَرِّيْ" د حکم وو هغه تاکيد دئ او که چيري نه وو بيا به د دوو حالو څخه خالي نه وي يا به "مُبَيِّنْ" وي يا به نه وي که چيري "مُبَيِّنْ" وو بيا به د دوو حالو څخه خالي نه وي يا به مشتق وي يا به نه وي که چيري مشتق وو هغه صفت دئ که چيري مشتق نه وو هغه عطف بيان دئ او که چيري مبين نه وو بيا به د دوو حالو څخه خالي نه وي يا به د دوی په مينځ کي حرف عطف وي يا به نه وي که چيري حرف عطف وو هغه عطف بالحرف دئ او که چيري حرف عطف نه وو هغه بدل دئ.(ضوابط نحويه)

د توابع په انواع کي اختلاف دئ عند البعض توابع څلور (٤) دي ځکه هغه وايي: چي صفت و عطف بيان يو قسم دئ لېکن عند البعض شپږ (٦) دي ځکه هغو تاکيد معنوي و تاکيد لفظي علحيده قسمونه شمار کړي دي د تابع په عامل کي صحيح او معتمد مذهب د جمهورو دئ هغه وايي: چي د تابع عامل هغه د متبوع عامل دئ لېکن په متبوع کي بالذات اولًا عمل کوي او په تابع کي بالواسطه ثانيًا عمل کوي. و فيه مذاهب مختلفه.(تنوير)

۵. پنځم: د مفسر فاصله لکه: "إِنِ امْرُؤٌ هَلَكَ لَيْسَ لَهُ وَلَدٌ".

٦. شپږم: د صفت د معمول فاصله لکه: "ذَلِكَ حَشْرٌ عَلَيْنَا يَسِيرٌ".

۷. اووم: د موصوف د معمول فاصله لکه: "سُبْحَانَ اللهِ عَمَّا يَصِفُونَ عَالِمِ الْغَيْبِ".

۸. اتم: یا د موصوف د عامل فاصله لکه: "أَزَيْدٌ ضَرَبْتَ الْقَائِمَ".

۹. نهم: د هغه مبتداء فاصله چي د هغه خبر د موصوف متعلق وي لکه: "أَفِي اللهِ شَكٌّ فَاطِرِ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ".

۱۰. لسم: کله په مؤکد و تاکید کي فاصله وي لکه: "وَلَا يَحْزَنَّ وَيَرْضَيْنَ بِمَا آتَيْتَهُنَّ كُلُّهُنَّ".

۱۱. یوولسم: کله د معطوف او معطوف علیه په مینځ کي فاصله وي لکه: "وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ".

۱۲. دوولسم: کله د مبدل او مبدل منه په مینځ کي فاصله وي لکه: "قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا. نِصْفَهُ أَوِ انْقُصْ مِنْهُ قَلِيلًا".

لیکن د تابع او متبوع په مینځ کي فاصله په اجنبي سره کُلِيَّةً ممتنع ده هیڅکله جائز نه ده.

## دریمه خبره:

اول قسم صفت دئ:

د صفت تعریف:

صفت هغه تابع دئ چي دی دُلالت کوي پر داسي معنی چي هغه خودي په متبوع کي موجوده وي لکه: "رَجُلٌ عَالِمٌ" یا په متعلق د متبوع کي موجود وي لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ حَسَنٌ غُلَامُهُ".

د صفت اقسام:

صفت پر دوه قسمه دئ:

۱. اول: صفت بحال الموصوف.

۲. دوهم: صفت بحال متعلق الموصوف.

د صفت بحال الموصوف تعریف:

"مايُبَيِّنُ صِفَةً مِنْ صِفَاتِ مَتْبُوْعِهِ" لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ عَالِمٌ" و ده ته صفت حقیقي هم وايي.

د صفت بحال الموصوف حکم:

صفت بحال الموصوف د خپله موصوف سره په لسو (۱۰) شیانو کي مطابقت غواړي په هر ترکیب کي په یوه وخت کي د څلورو شیانو موجودېدل ضروري دي هغه لس شیان دا دي: تعریف، تنکیر، تذکیر، تانیث، افراد، تثنیه، جمع، رفع، نصب، جر.

د صفت بحال متعلق الموصوف تعریف:

"مَا يُبَيِّنُ صِفَةً مِنْ صِفَاتِ مَالَهُ تَعَلُّقٌ بِمَتْبُوْعِهِ" لکه: "جَاءَ الرَّجُلُ الْحَسَنُ خُلُقُهُ" و ده ته صفت سببي هم ویل کیږي.

د صفت بحال متعلق الموصوف حکم:

صفت بحال متعلق الموصوف د خپله موصوف سره په پنځو شیانو کي مطابقت غواړي او په هر ترکیب کي به یک وخت دوه دانې موجوده وي، هغه پنځه شیان دا دي: اعراب، یعني رفع، نصب، جر، تعریف، تنکیر، او په دا نورو پنځو شیانو کي دَی په منزله[1] د فعل سره دئ.

---

([1]) صفت بحال متعلق الموصوف په افراد، تثنیه، جمع، او په تذکیر و تانیث کي په منزله د فعل سره دي یعني د فعل فاعل چي کله اسم ظاهر راسي "وَحِّدِ الْفِعْلَ اَبَدًا". او چي کله اسم ضمیر راسي: "وَحِّدْ لِلْوَاحِدِ، ثَنِّ لِلْمُثَنّٰى، جْمَعْ لِلْجَمْعِ" او داغه رنګه د فاعل چي کم صورتونه د جواز د وجوب د تذکیر او تانیث د فعل سره راځي هغه ټوله صورتونه دلته هم جاري کیږي "اِنْ شِئْتَ فَارْجِعْ اِلَى الْمُطَوَّلَاتِ" لیکن یوه خبره یاد ساتل ضروري دي هغه دا چي دلته د خودي صفت مطابقت د موصوف سره په اعراب او تعریف و تنکیر کي ضروري دئ لیکن دلته د فعل او فاعل قاعده چي جاري کیږي هغه د صفت او د ده د مابعد اسم په مینځ کي جاري کیږي نه د موصوف او صفت په مینځ کي یعني د صفت مطابقت په رفع، نصب، و جر، تعریف، و تنکیر کي په اعتبار د ماقبل سره دئ او په افراد، تثنیه، جمع، تذکیر، او تانیث کي په اعتبار د ما بعد سره دئ "وَالْفَرْقُ بَيْنَهُمَا وَاضِحٌ". (از مرتب عفي عنه)

لیکن د مطابقت د قاعده څخه یو څو صفات مستثنی دي:

۱. اول: هغه صفات چي پر وزن د "فَعُوْلٌ" راځي او "فَعُوْلٌ" بمعنی "فَاعِلٌ" وي لکه: "صَبُوْرٌ، غَيُوْرٌ، فَخُوْرٌ، شَكُوْرٌ" یا پر وزن د "فَعِيْلٌ" راځي په معنی د "مَفْعُوْلٌ" وي لکه: "جَرِيْحٌ، قَتِيْلٌ" یا پر وزن د "مِفْعَالٌ" راځي لکه: "مِكْسَالٌ، مِبْسَامٌ" یا پر وزن د "مِفْعِيْلٌ" راځي لکه: "مِسْكِيْنٌ"، مِعْطِيْرٌ" یا پر وزن د "مَفْعَلٌ" وي لکه: "مَغْشَمٌ"، مَدْعَسٌ"، په دې ټولو وزنو کي تذکیر و تانیث علی السویه وي لکه: "رَجُلٌ جَرِيْحٌ. اِمْرَءَةٌ جَرِيْحٌ".

۲. دوهم: مصدر چي په ده کي تذکیر، تانیث، افراد، تثنیه، جمع ټوله برابر دي لکه: "رَجُلٌ عَدْلٌ. اِمْرَاَةٌ عَدْلٌ. رَجُلَانِ عَدْلٌ. رِجَالٌ عَدْلٌ. نِسَاءٌ عَدْلٌ".

۳. دریم: چي صفت د جمع غیر ذوی العقول راسي نو د هغه صفت جمع مؤنث او مفرد مؤنث دواړه راوړل جائز دي لکه: "خُيُوْلٌ سَابِقَاتٌ. خُيُوْلٌ سَابِقَةٌ".

## څلورمه خبره:

د صفت اقسام:

کم شیان چې صفت جوړیږي هغه پر څلور قسمه راځي:

اول قسم: اسماء مشتقه هغه اسماء چې هغه پر ذات مع الوصف باندي دلالت کوي لکه: "ضَارِبٌ، مَضْرُوْبٌ، حَسَنٌ، اَفْضَلُ".

دوهم قسم: اسماء جوامد چې په معنی کي د اسماء مشتقه سره مشابه وي هغه یو څو دانې دي.

۱. اول: اسم اشاره لکه: "مَرَرْتُ بِزَيْدٍ هٰذَا اَیْ اَلْمُشَارُ اِلَيْهِ".

۲. دوهم: "مَا" هغه "مَا" چې نکره وي او د ده څخه مراد ابهام وي، لکه: "اَكْرِمْ رَجُلًا مَّا اَیْ رَجُلًا مُطْلَقًا غَيْرَ مُقَيَّدٍ بِصِفَةٍ مَّا".

۳. دریم: او بل "ذُوْ" چې په معنی د صاحب سره راسي لکه: "جَاءَ رَجُلٌ ذُوْ عِلْمٍ اَیْ صَاحِبُ عِلْمٍ".

۴. څلورم: اسم موصول لکه: "جَاءَ الرَّجُلُ الَّذِيْ اِجْتَهَدَ اَیْ مُجْتَهِدٌ".

۵. پنځم: اسم منسوب لکه: "رَاَيْتُ رَجُلًا دِمَشْقِيًّا اَیْ مَنْسُوْبٌ اِلَى دِمَشْقَ".

۶. شپږم: اسم عدد لکه: "جَاءَ رِجَالٌ اَرْبَعَةٌ اَیْ مَعْدُوْدُوْنَ بِهٰذَا الْعَدَدِ".

۷. اووم: هغه اسم چې پر تشبیه باندي دلالت کوي لکه: "رَاَيْتُ رَجُلًا اَسَدًا اَیْ شُجَاعًا".

۸. اتم: لفظ د "كُلُّ" او د "اَیُّ" دئ لکه: "اَنْتَ الرَّجُلُ كُلُّ الرَّجُلِ اَیْ اَلْكَامِلُ فِي الرُّجُوْلِيَّةِ، جَاءَ رَجُلٌ اَیُّ رَجُلٍ اَیْ كَامِلٌ فِي الرُّجُوْلِيَّةِ". او کله کله د "اَیُّ" سره "مَا" هم اضافه کیږي لکه: "اَيُّمَا رَجُلٍ" او لفظ د "كُلُّ" چې کله صفت جوړیږي، د هغه دپاره شرط دا دئ چې موصوف به

---

۴. څلورم: کله چې صفت اسم جمع راسي نو په هغه کي هم افراد و جمعیت دواړه جائز دي لکه: "قَوْمٌ صَالِحٌ، قَوْمٌ صَالِحُوْنَ".

۵. پنځم: اسم تفضیل چې مستعمل په "مِنْ" سره وي نو په دې صورت کي اسم تفضیل مفرد مذکر راوړل واجب دي د موصوف مطابقت نه دئ جائز لکه: "مَرَرْتُ بِرِجَالٍ اَفْضَلُ مِنْ زَيْدٍ، مَرَرْتُ بِرِجَالٍ اَفْضَلُ اَشْخَاصٍ". (جامع الدروس العربیة جلد ۳ صفحه ۱۷۲)

معرفه وي او د لفظ د "اَیٌّ" دپاره شرط دا دئ چي موصوف به نکره وي او دوی دواړه چي کله صفت واقع سي نو دوی په معنی د "اَلْکَامِلُ یَاکَامِلٌ" سره راځي.

**پنځمه خبره:**

دريم قسم: جمله هم صفت جوړيږي ليکن د هغه دپاره دري (۳) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي موصوف به نکره محضه ([1]) وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي په جمله خبريه کي به يو ضمير وي چي راجع به وي و موصوف ته.

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي دغه ضمير به د موصوف سره به په افراد، تثنيه، جمع، تذکير، تانيث کي موافق وي لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ اَبُوْهُ عَالِمٌ".

څلورم قسم: مصدر کله کله صفت واقع کيږي ليکن د مصدر دپاره دوه (۲) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې ذا دئ: چي مصدر به نکره صريحي وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي دلالت به کوي پر طلب باندي لکه: ابن مالک چي په دې شعر کي فرمايلي دي: "وَ نَعَتُوْ بِمَصْدَرٍ کَثِيْرًا: فَالْتَزَمُوْا الْاِفْرَادَ وَ التَّذْکِيْرَا": لکه: "هُوَ رَجُلٌ ثِقَةٌ اَیْ مَوْثُوْقٌ بِهِ. اَنْتَ رَجُلٌ عَدْلٌ اَیْ عَادِلٌ".

**ضابطه:**

موصوف که چيري جمع مکسر د غير ذوالعقول وو نو بيا صفت واحد مؤنث او جمع مؤنث دواړه راوړل جائز دي لکه: "اَیَّامٌ مَعْدُوْدَاتٌ. اَیَّامٌ مَعْدُوْدَةٌ".

**شپږمه خبره:**

د اسماء اقسام په اعتبار د صفت او موصوف سره:

---

([1]) نکره محضه هغه نکره ده چي يو اسم د الف لام جنسي او د هر هغه شي څخه خالي وي چي هغه تخصيص يا تقليل شيوع فائده کوي لکه: اضافت و نعت وقيودات ليکن که چيري نکره غير محضه وه بيا هلته د صفت او حال دواړو احتمال سته لکه: "لَقَدْ اَمُرُّ عَلَی اللَّئِيْمِ يَسُبُّنِيْ. فَمَضَيْتُ ثَمَّةَ قُلْتُ لَا يَعْنِيْنِيْ". (ضوابط نحوية)

اسم پر څلور (۴) قسمه راځي:

۱. اول: بعض هغه اسماء دي چي صفت و موصوف دواړه واقع کېدای سي لکه: اسم اشاره مثال يې لکه: "مَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَ بِهٰذَا الْعَالِمِ. مَرَرْتُ بِزَيْدٍ هٰذَا". لېکن که چيري د اسم اشاره صفت جامد معرف باللام وو نو بيا د هغه عطف بيان جوړول راجح دي لکه: "مَرَرْتُ بِهٰذَا الرَّجُلِ".

۲. دوهم: بعض هغه اسماء دي چي صرف موصوف جوړېږي صفت نه جوړېږي هغه لکه: أعلام، "زَيْدٌ، عَمْرٌو، وَبَكْرٌ".

۳. دريم: بعض هغه اسماء دي چي هغه صرف صفت جوړېږي موصوف نه جوړېږي هغه لکه: لفظ د "اَيٌّ" کماليه لکه: "مَرَرْتُ بِرَجُلٍ اَيِّ رَجُلٍ اَیْ کَامِلٌ فِي الرُّجُوْلِيَّةِ".

۴. څلورم: بعض هغه اسماء دي چي نه صفت جوړېږي او نه موصوف هغه لکه: ضمائر (۱) او اسماء منقوله في البناء لکه: اسماء شرط، استفهام، "کَمْ" خبريه، "قَبْلُ، بَعْدُ".

د وصف استعمال مجازًا د نورو معناګانو دپاره:

په اصل کي وصف د وضاحت او تخصيص دپاره استعمالېږي لېکن مجازًا کله کله د نورو معناګانو دپاره هم استعمالېږي.

۱. اول د مدح دپاره لکه: "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ".

۲. دوهم د ذم دپاره لکه: "اَعُوْذُ بِاللّٰهِ مِنَ الشَّيْطَانِ الرَّجِيْمِ".

۳. دريم د ترحم دپاره لکه: "اَنَا عَبْدُکَ الْمِسْكِيْنُ".

۴. څلورم د تاکيد دپاره لکه: "لَا تَتَّخِذُوا اِلٰهَيْنِ اثْنَيْنِ".

---

(۱) ضمير نه موصوف واقع کېږي او نه صفت موصوف خو ځکه نه واقع کېږي چي صفت راځي دپاره د وضاحت يا د تخصيص حالانکه ضمير اعرف د معارفو دئ وضاحت و تخصيص ته ضرورت نه لري او ضمير صفت ځکه نه واقع کېږي چي دی اعرف المعارف دئ حالانکه د جمهورو په نزد باندي د صفت دپاره دا خبره ضروري ده چي دی به اعرف نه وي لېکن د امام کسائي رحمه الله په نزد باندي د غائب د ضمير موصوف واقع کېدل جائز دي د مدح يا د ذم يا د ترحم دپاره لکه: د الله تعالیٰ دا قول: "قُلْ اِنَّ رَبِّي يَقْذِفُ بِالْحَقِّ عَلَّامُ الْغُيُوْبِ". او د عربو دا مقوله "اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلَيْهِ الرَّؤُوْفُ الرَّحِيْمُ" لېکن د نورو نحاتو په نزد باندي دا بدل دئ. (تنوير)

۵. پنځم د ابهام دپاره لکه: "تَصَدَّقْ بِصَدَقَةٍ كَثِيْرَةٍ اَوْ قَلِيْلَةٍ".
٦. شپږم د تفصيل دپاره لکه: "اَنْ يُّحْشَرَ النَّاسُ الْاَوَّلِيْنَ وَ الْآخِرِيْنَ".
۷. اووم د تعميم دپاره لکه: "اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ عِبَادَهُ الطَّائِعِيْنَ وَ الْعَاصِيْنَ".

## اوومه خبره:

د جمهورو نحاتو په نزد باندي موصوف (۱) به د صفت څخه اخص وي يا به مساوي وي يعني موصوف به تر صفت ادون يعني کم نه وي لکه: "مَرَرْتُ بِزَيْدِنِ الْفَاضِلِ، مَرَرْتُ بِرَجُلٍ فَاضِلٍ". او داغه رنګه که چيري موصوف بغير د صفت څخه معلوم وو نو بيا په صفت کي درې (۳) وجي ويل جائز دي:

۱. اوله وجه: اتباع د موصوف يعني د موصوف تابع کول لکه: "بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ".
۲. دوهمه وجه: قطع د صفت د موصوف څخه په رفع سره يعني مبتداء مقدره رائستل لکه: "اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الْعَظِيْمُ اَیْ هُوَ الْعَظِيْمُ".
۳. دريمه وجه: قطع د صفت د موصوف څخه په نصب سره يعني د "اَعْنِي" يا "اَخُصُّ" فعل مقدر ور سره رائستل لېکن که چيري په هغه ځای کي مدح يا ذم يا ترحم مراد وو بيا د "اَذُمُّ، اَمْدَحُ" يا "اَرْحَمُ" فعل ور سره راوزي لکه: "وَامْرَأَتُهُ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ اَیْ اَذُمُّ حَمَّالَةَ الْحَطَبِ".

---

(۱) د تثنيه او جمع صفتونه که چيري په معنی کي سره مختلف وو نو بيا به دوی په "واو" سره راوړل کيږي لکه: "مَرَرْتُ بِرَجُلَيْنِ كَرِيْمٍ وَ بَخِيْلٍ" او که چيري دغه صفتونه په معنی کي سره متفق وو نو بيا بغيره د "واو" څخه راوړل کيږي او دوی سره جمع کيږي نو په دې صورت کي غلبه د تذکير او د ذوی العقول واجب ده لکه: "مَرَرْتُ بِزَيْدٍ وَ هِنْدٍ نِ الصَّالِحَيْنِ" "اِشْتَرَيْتُ عَبْدَيْنِ وَ فَرَسَيْنِ مُخْتَارَيْنِ" (شرح التصريح).

فائده: که چيري د موصوف صفت مفرد و ظرف و مجرور وجمله ټوله راغلي وه نو بيا په دوی کي جمله تر ټولو آخر ايښول او ظرف په مينځ کي او مفرد د مخه ايښول اولی دي لکه: "وَقَالَ رَجُلٌ مُؤْمِنٌ مِنْ آلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ إِيمَانَهُ.. كِتَابٌ اَنْزَلْنَاهُ اِلَيْكَ مُبَارَكٌ.. فَسَوْفَ يَأْتِي اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُحِبُّهُمْ وَيُحِبُّونَهُ أَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ أَعِزَّةٍ عَلَى الْكَافِرِينَ" (شرح التصريح).

فائده: که چيري موصوف معلوم وو بيا يې حذف جائز دئ لکه: "اَنِ اعْمَلْ سَابِغَاتٍ اَیْ دُرُوْعًا سَابِغَاتٍ" او که چيري صفت معلوم وو نو د صفت حذف هم جائز دئ لکه: "يَأْخُذُ كُلَّ سَفِيْنَةٍ غَصْبًا اَیْ كُلَّ سَفِيْنَةٍ صَالِحَةٍ". (جامع الدروس العربية)

اَحْسَنْتُ اِلَى فُلَانِ الْمِسْكِيْنَ اَیْ اَرْحَمُ الْمِسْكِيْنَ. اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الْعَظِيْمَ اَیْ اَمْدَحُ الْعَظِيْمَ. مَرَرْتُ بِخَالِدٍ النَّجَارَ اَعْنِي النَّجَارَ".

## ضابطه:

كه چيري د اسم مفرد معرفه څخه وروسته جمله راغله نو هغه عام طور حال جوړيږي صفت نسي جوړيدای ځکه بيا موصوف معرفه وي او جمله من حيث الجمله د نکرۀ په حکم کي ده لېکن که چيري د اسم مفرد نکره څخه وروسته جمله راغله بيا هغه صفت جوړيدای سي ځکه بيا مطابقت موجود دئ.

## جملي:

| عنوان | خبره انشاء | مسند | مسند اليه | حروف عامله وغير عامله | افعال عامله | اسماء عامله | مرفوعات | منصوبات | مجرورات | اقسام صفت |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَيُنْشِئُ السَّحَابَ الثِّقَالَ | خبريه فعليه | (يُنْشِئُ) فعل معلوم | (هُوَ) فاعل | (وَ) عاطفه | (يُنْشِئُ) فعل معلوم | + | (يُنْشِئُ)، مضارع (هُوَ) فاعل | السَّحَابَ الثِّقَالَ مفعول به | + | (السَّحَابَ) موصوف (الثِّقَالَ) صفت حقيقي |
| هٰذَا كِتَابٌ اَنْزَلْنَاهُ اِلَيْكَ مُبَارَكٌ | خبريه اسميه | (كِتَابٌ) خبراول (مُبَارَكٌ) خبرثاني | (هٰذَا) مبتدا | (اِلَى) جاره | اَنْزَلْنَا فعل معلوم | مُبَارَكٌ اسم مفعول | (هٰذَا) محلا مبتدا (كِتَابٌ اَنْزَلْنَاهُ) محلا خبراول (نَا) فاعل (مُبَارَكٌ) خبرثاني | (هُ) محلا مفعول به | (كَ) محلا مجرور متعلق (اَنْزَلْنَا) | (كِتَابٌ) موصوف (اَنْزَلْنَاهُ) صفت حقيقي |
| رَبَّنَا اَخْرِجْنَا مِنْ هٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ اَهْلُهَا | انشائيه فعليه | (اَدْعُوْ) فعل | (اَنَا) فاعل | (مِنْ) جاره | (اَخْرِجْ اَدْعُوْ) فعل معلوم | (رَبَّ، اَهْل) اسم مضاف (الظَّالِم) اسم فاعل | (اَنَا اَنْتَ، اَهْلُ) فاعل | (رَبَّ) منادى مضاف، (نَا) مفعول به | (هٰذِهِ) مجرور متعلق (اَخْرِجْنَا) (نَا) مضاف اليه (الْقَرْيَةِ) بدل من (هٰذِهِ) (الظَّالِمِ) صفة (هَا) مضاف اليه | (الْقَرْيَةِ) موصوف (الظَّالِمِ اَهْلُهَا) صفت سببي |
| اِلَيْهِ يَصْعَدُ الْكَلِمُ الطَّيِّبُ | خبريه فعليه | (يَصْعَدُ) فعل | (الْكَلِمُ الطَّيِّبُ) فاعل | (اِلَى) جاره | (يَصْعَدُ) فعل معلوم | الطَّيِّبُ صفت مشبه | (يَصْعَدُ) مضارع (الْكَلِمُ الطَّيِّبُ) فاعل (هُوَ) فاعل | + | (هِ) محلا مجرور متعلق (يَصْعَدُ) | (الْكَلِمُ) موصوف (الطَّيِّبُ) صفت حقيقي |
| وَالْعَمَلُ الصَّالِحُ يَرْفَعُهُ | خبريه اسميه | (يَرْفَعُ) فعل | (الْعَمَلُ الصَّالِحُ) فاعل | (وَ) عاطفه | (يَرْفَعُ) فعل معلوم | (الصَّالِحُ) اسم فاعل | (الْعَمَلُ الصَّالِحُ) فاعل (يَرْفَعُ) مضارع (هُوَ، هُوَ) فاعل | (هُ) مفعول به | + | (الْعَمَلُ) موصوف (الصَّالِحُ) صفت حقيقي |

| عنوان | خبریہ انشاء | مسند | مسند الیہ | حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | مرفوعات | منصوبات | مجرورات | اقسام صفت |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هٰذَا عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ | خبریہ اسمیہ | (عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ شَرَابُهُ) | (هٰذَا) مبتدا | + | + | (سَائِغٌ) اسم فاعل (شَرَابُ) اسم مضاف | (هٰذَا) مبتدا (عَذْبٌ فُرَاتٌ سَائِغٌ) اخبار (شَرَابُ) فاعل | + | (هُ) محلا مضاف الیہ | (فُرَاتٌ) موصوف (سَائِغٌ شَرَابُهُ) صفت سببی |
| فَأَخْرَجْنَا بِهِ ثَمَرَاتٍ مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا | خبریہ فعلیہ | (أَخْرَجَ) فعل | (نَا) فاعل | (فَ) عاطفہ (بِ) جارہ | (أَخْرَجَ) فعل معلوم | (مُخْتَلِفًا) اسم فاعل (أَلْوَانُ) اسم مضاف | (نَا، أَلْوَانُ) فاعلان | (ثَمَرَاتٍ) مفعول بہ (مُخْتَلِفًا) صفۃ | (ہِ) مجرور متعلق (أَخْرَجَ) (هَا) محلا مضاف الیہ | (ثَمَرَاتٍ) موصوف (مُخْتَلِفًا أَلْوَانُهَا) صفت سببی |
| فِيهِمَا عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ | خبریہ ظرفیہ | فِيهِمَا باعتبار متعلق | عَيْنَانِ تَجْرِيَانِ | (فِي) جارہ | (تَجْرِيَانِ) فعل معلوم | + | (فِيهِمَا) خبر (عَيْنَانِ) مبتدا (تَجْرِيَانِ) صفۃ (ہِيَ) فاعل | + | (هِمَا) مجرور متعلق محذوف | (عَيْنَانِ) موصوف (تَجْرِيَانِ) صفت حقیقی |
| إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ فَاقِعٌ لَوْنُهَا تَسُرُّ النَّاظِرِينَ | خبریہ اسمیہ | بَقَرَةٌ صَفْرَاءُ الخ خبر (ان) | (هَا) اسم (إِنَّ) | (إِنَّ) مشبہ بالفعل | (تَسُرُّ) فعل معلوم | (فَاقِعٌ) اسم فاعل (لَوْنُ) اسم مضاف (النَّاظِرِينَ) اسم فاعل (صَفْرَاءُ) صفۃ مشبہ | (بَقَرَةٌ) خبر إن (صَفْرَاءُ فَاقِعٌ تَسُرُّ) صفت بقرۃ (لَوْنُ) فاعل (فَاقِعٌ) (ہِيَ) فاعل (تَسُرُّ) | (هَا) محلا اسم (إِنَّ) (النَّاظِرِينَ) مفعول بہ | (هَا) محلا مضاف الیہ | (بَقَرَةٌ) موصوف (صَفْرَاءُ) صفت حقیقی (فَاقِعٌ) صفت سببی (تَسُرُّ النَّاظِرِينَ) صفت حقیقی |
| يَطُوفُ عَلَيْهِمْ وِلْدَانٌ مُخَلَّدُونَ | خبریہ فعلیہ | (يَطُوفُ) فعل | (وِلْدَانٌ) فاعل | (عَلَى) جارہ | (يَطُوفُ) فعل معلوم | (مُخَلَّدُونَ) اسم مفعول | (يَطُوفُ) مضارع (وِلْدَانٌ) فاعل يطوف (مُخَلَّدُونَ) صفۃ (هُمْ) فاعلہ | + | (هِمْ) محلا مجرور متعلق يطوف | (وِلْدَانٌ) موصوف (مُخَلَّدُونَ) صفت حقیقی |
| هُوَ اللّٰهُ الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ لَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَىٰ | خبریہ اسمیہ | (اللّٰهُ الْخَالِقُ الخ) خبر | (هُوَ) مبتدا | (لَامٌ) جارہ | + | (الْخَالِقُ الْبَارِئُ الْمُصَوِّرُ) اسم فاعل (الْحُسْنَىٰ) اسم تفضیل | (هُوَ) مبتدا (اللّٰهُ) خبر (الْخَالِقُ، الْبَارِئُ، الْمُصَوِّرُ، الْأَسْمَاءُ، الْحُسْنَىٰ) صفت اللہ (هُوَ، هِيَ) فاعل صیغہ الصفت (لَهُ) باعتبار متعلق خبر مقدم | + | (هُ) محلا مجرور متعلق (ثَابِتٌ) | (اللّٰهُ) موصوف (الْخَالِقُ، الْبَارِئُ، الْمُصَوِّرُ) صفات حقیقیہ (الْأَسْمَاءُ) موصوف (الْحُسْنَىٰ) صفت |
| وَمِنَ الْجِبَالِ جُدَدٌ بِيضٌ وَحُمْرٌ مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهَا | خبریہ اسمیہ | (مِنَ الْجِبَالِ) باعتبار متعلق خبر مقدم | (جُدَدٌ) مبتدا | (وَ) عاطفہ، (وَ) عاطفہ (مِنْ) جارہ | + | (بِيضٌ، أَلْوَانُ، حُمْرٌ) صیغ صفت (مُخْتَلِفٌ) اسم فاعل | (مِنَ الْجِبَالِ) محلا باعتبار متعلق خبر مقدم (جُدَدٌ) مبتدا (بِيضٌ وَحُمْرٌ مُخْتَلِفٌ) صفاتہ (أَلْوَانُ) فاعل (مُخْتَلِفٌ) | + | (هَا) محلا مضاف الیہ (الْجِبَالِ) مجرور متعلق محذوف | (جُدَدٌ) موصوف (بِيضٌ حُمْرٌ) صفت حقیقی (مُخْتَلِفٌ أَلْوَانُهُ) صفت سببی |

## التمرين:

"اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ،، اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ،، فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَى،، أَنَا رَبُّكُمُ الْأَعْلَى،، إِنَّا فَتَحْنَا لَكَ فَتْحًا مُبِينًا،، أُولَئِكَ هُمُ الْكَفَرَةُ الْفَجَرَةُ،، إِذَا جَاءَتِ الطَّامَّةُ الْكُبْرَى،، إِنَّهُ عَمَلٌ غَيْرُ صَالِحٍ،، ذَلِكَ وَعْدٌ غَيْرُ مَكْذُوبٍ،، فَإِذَا نُفِخَ فِي الصُّورِ نَفْخَةٌ وَاحِدَةٌ".

دوم تاکید الخ:........................الی قوله فصل دوم غیر منصرف.

## ترجمه:

دوهم تابع تاکید دئ تاکید هغه تابع دئ چي د متبوع حالت ثابته وي د نسبت په اعتبار سره یا د شمول په اعتبار سره دپاره د دې چي اوریدونکي ته شک نسي پاته تاکید پر دوه قسمه دئ لفظي و معنوي تاکید لفظي په تکرار د لفظ سره حاصلیږي لکه: "زَيْدٌ زَيْدٌ قَائِمٌ. ضَرَبَ ضَرَبَ زَيْدٌ. إِنَّ إِنَّ زَيْدًا قَائِمٌ". د تاکید معنوي دپاره اته (۸) لفظونه مقرر دي: "نَفْسٌ. عَيْنٌ. كِلَا. كِلْتَا. كُلٌّ. اَجْمَعُ. اَكْتَعُ. اَبْتَعُ. اَبْصَعُ" لکه: "جَاءَنِي زَيْدٌ نَفْسُهُ. جَاءَنِي الزَّيْدَانِ اَنْفُسُهُمَا. جَاءَنِي الزَّيْدُوْنَ اَنْفُسُهُمْ" لفظ د "عَيْنٌ" پر لفظ د "نَفْسٌ" باندي قیاس کړه "جَاءَنِي الزَّيْدَانِ كِلَاهُمَا وَالْهِنْدَانِ كِلْتَاهُمَا". او "كِلَا" و "كِلْتَا" په تثنیه پوري خاص دي. "جَاءَنِي الْقَوْمُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ اَكْتَعُوْنَ اَبْتَعُوْنَ اَبْصَعُوْنَ".

پوه سه! چي "اَكْتَعُ. اَبْتَعُ. اَبْصَعُ" د "اَجْمَعُ" تابع دي نه بغیر د "اَجْمَعُ" څخه استعمالیدای سي او نه پر "اَجْمَعُ" باندي مقدم کیدای سي.

دریم قسم بدل دئ: بدل هغه تابع دئ چي مقصود بالنسبت دی وي بدل پر څلور (۴) قسمه دئ بدل کل، بدل اشتمال، بدل غلط، بدل بعض، بدل کل هغه دئ چي د ده مدلول د مبدل منه کل وي لکه: "جَاءَنِي زَيْدٌ اَخُوْكَ" او بدل بعض هغه دئ چي د ده مدلول د مبدل منه جزء وي لکه: "ضُرِبَ زَيْدٌ رَاْسُهُ". بدل اشتمال هغه دئ چي د ده مدلول د مبدل منه متعلق وي لکه: "سُلِبَ زَيْدٌ ثَوْبُهُ" او بدل غلط هغه بدل دئ چي د غلطی څخه وروسته په بل لفظ سره بیان سي لکه: "مَرَرْتُ بِرَجُلٍ حِمَارٍ". څلورم قسم عطف بحرف دئ دا هغه تابع دئ چي دی د خپل متبوع سره مقصود بالنسبت وي د حروف عطف څخه وروسته وي لکه: "جَاءَنِي زَيْدٌ وَعَمْرٌو" او حروف عاطفه لس (۱۰) داني دي په

دريم فصل كي به انشاء الله تعالى بيان سي او وده ته عطف نسق هم ويل كيږي. پنځم قسم عطف بيان دئ دا هغه تابع دئ غير صفت چي متبوع روښانه كوي لكه: "اَقْسَمَ بِاللّٰهِ اَبُوْ حَفْصٍ عُمَرُ" دا هغه وخت چي په علم سره زيات مشهوره وي او "جَائَنِيْ زَيْدٌ اَبُوْ عَمْرٍ" دا هغه وخت وايي چي كله "زَيْد" په كنيت سره زيات مشهوره وي.

## الدرس السادس والثلاثون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

دوهم قسم د توابع څخه تاكيد دئ.

د تاكيد تعريف:

تاكيد: "تَابِعٌ يَدُلُّ عَلٰى اَنَّ مَتْبُوْعَهٗ حَقِيْقِيٌّ لَا دَخْلَ فِيْهِ لِلْمُبَالَغَةِ وَلَا لِلْمَجَازِ وَلَا لِلسَّهْوِ وَلَا لِلنِّسْيَانِ".

تاكيد هغه تابع دئ چي د متبوع حالت نور زيات ټينګه وي چي د معنى غير مراد مرادېدل يا د مجاز يا د سهو يا د نسيان احتمال باقي پاته نسي لكه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ زَيْدٌ".

د تاكيد صورتونه:

د تاكيد دپاره دوه (۲) صورتونه دي:

۱. اول تاكيد په نسبت كي وي يعني دا ښكاره كول چي په واقع كي منسوب اليه صرف متبوع دئ نه بل څوک لكه: په "جَائَنِيْ زَيْدٌ زَيْدٌ" كي "زَيْدٌ".

۲. دوهم تاكيد په اعتبار د شمول سره وي يعني يو داسي لفظ راوړل چي د هغه څخه دا معلوم سي چي متبوع خپلو ټولو افرادو لره شامل دئ يو فرد هم نه دئ خارج لكه: "حَضَرَ الْقَوْمُ كُلُّهُمْ".

### دوهمه خبره:

د تاكيد اقسام:

تاكيد پر دوه (۲) قسمه دئ:

۱. تاکید لفظي.
۲. تاکید معنوي.

د تاکید لفظي تعریف:

تاکید لفظي "مَا يَكُوْنُ بِإِعَادَةِ الْمُؤَكَّدِ بِلَفْظِهِ اَوْ بِمُرَادِفِهِ سَوَاءٌ كَانَ اِسْمًا ظَاهِرًا (۱) اَمْ ضَمِيْرًا اَمْ فِعْلًا اَمْ حَرْفًا اَمْ جُمْلَةً".

یعني اول لفظ یا د ده مرادف دوباره ذکر کول او تاکید لفظي په اسم و فعل و حرف او په مفرد و مرکب او په مضاف و جمله او په معرفه (۲) و نکره او په ظاهر او ضمیر ټولو کي راتلای سي لېکن تاکید معنوي صرف په اسم کي راځي او تاکید چي کله په جمله سره راسي نو بیا اکثره حرف عطف راوړل کیږي لکه: "كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ ثُمَّ كَلَّا سَيَعْلَمُوْنَ،، أَوْلٰى لَكَ فَأَوْلٰى ثُمَّ أَوْلٰى لَكَ فَأَوْلٰى".

او کله کله بغیر حرفِ عطف هم راوړل کیږي لکه: د نبي کریمﷺفرمان مبارک دئ "لَاَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا،، لَاَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا،، لَاَغْزُوَنَّ قُرَيْشًا". لېکن که چیري د حرف عطف څخه د تعدد وهم او بېره وه نو بیا د حرف عطف ترک واجب دئ لکه: "ضَرَبْتُ زَيْدًا، ضَرَبْتُ زَيْدًا". دلته که چیري حرف عطف ذکر سوی وای نو بیا دا وهم کېدئ چي شاید دلته مراد د دوهم وار وهل دي.

د تاکید لفظي فائده:

د تاکید لفظي فائده دا ده چي دلته مؤکد په نفس د سامع کي ټېنګ سي او د ده په زړه کي قرار ونسي چي د کمي شبه خوف و بېره یې هغه شبه ختم سي.

---

(۱) د اسم ظاهر مثال لکه: "جَاءَ عَلِيٌّ عَلِيٌّ" د ضمیر مثال لکه: "جِئْتَ اَنْتَ وَ قُمْنَا نَحْنُ" او د الله تعالی دا قول: "يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ". د فعل مثال لکه: "جَاءَ جَاءَ عَلِيٌّ". د حرف مثال لکه: "لَا. لَا اَبُوْحُ بِالسِّرِّ" د جمله مثال لکه: "جَاءَ عَلِيٌّ" "جَاءَ عَلِيٌّ" "عَلِيٌّ مُجْتَهِدٌ" "عَلِيٌّ مُجْتَهِدٌ" د مرادف مثال لکه: "اَتٰى جَاءَ عَلِيٌّ". (جامع الدروس العربية)

(۲) د بصرین په نزد باندي د نکره تاکید جائز نه دئ. (ضوابط نحوية)

**ضابطه:**

که چیري (۱) د ضمیر متصل تاکید لفظي راوړل مقصود وي نو بیا د دې دپاره اعاده د عامل یا د ده تاکید په منفصل سره راوړل ضروري دي د اعاده د عامل مثال لکه: "عَجِبْتُ مِنْکَ مِنْکَ" یا "قُمْتُ قُمْتُ" او د منفصل مثال لکه: "ضَرَبْتُ اَنَا، ضَرَبْتَ اَنْتَ نَفْسَکَ، مَرَرْتُ بِکَ اَنْتَ".

**دریمه خبره:**

تاکید معنوي:

دوهم قسم د تاکید څخه تاکید معنوي دئ.

د تاکید معنوي تعریف:

---

۱ که چیري د حروف غیر جوابیه تاکید راوړل سوی وو نو بیا په هغه کي دوه شیان لازمي دي:

۱. اول: یو دا چه د مؤکد و تاکید په مینځ کي به فصل وي.

۲. دوهم: دا چي د دې حروف سره د هغه اسم اعاده او راګرځول ضروري دي کم چي د مؤکد متصل دي یا د هغه اسم د ضمیر اعاده ضروري ده د اسم د اعاده مثال لکه: "اِنَّ زَیْدًا اِنَّ زَیْدًا فَاضِلٌ" د ضمیر د اعاده مثال لکه: "اِنَّ زَیْدًا اِنَّهٗ قَائِمٌ" او د ضمیر راجع کول اولی دئ لکه: په قرآن کریم کي راغلي دي: "فَفِي رَحْمَةِ اللّٰهِ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ". لیکن که چیري د فعل یا د "حرف جواب" تاکید راوړل مقصود وو نو بیا بلا شرط صرف د فعل یا "حرف جواب" اعادہ کیږي لکه: "قَامَ قَامَ زَیْدٌ. بَلٰی بَلٰی جَاءَ زَیْدٌ".

که چیري د اسم ظاهر یا د ضمیر منصوب متصل تاکید راوړل مقصود وو نو د دوی تاکید هم بلا څه شرط صرف په اعاده د مؤکد سره راوړل کیږي د اسم ظاهر مثال لکه: په حدیث شریف کي راځي: "أَيُّمَا امْرَأَةٍ نَكَحَتْ بِغَيْرِ إِذْنِ وَلِيِّهَا فَنِكَاحُهَا بَاطِلٌ، بَاطِلٌ، بَاطِلٌ". د منصوب متصل مثال لکه: "اَکْرَمْتُکَ اَنْتَ" او ضمیر مرفوع منفصل دا د هر ضمیر متصل خواه که مرفوع وي او که منصوب وي او که مجرور وي تاکید واقع کیدای سي د مرفوع متصل مثال لکه: "قُمْتَ اَنْتَ" د منصوب متصل مثال لکه: "اَکْرَمْتُکَ اَنْتَ" د مجرور متصل مثال لکه: "مَرَرْتُ بِکَ اَنْتَ" لیکن په تکلم او افراد او تذکیر او اضداد و غیره کي مطابقت ساتل ضروري دي.(تشویر)

که چیري د تاکید الفاظ متعدد وي نو بیا دا ټول د یوې متبوع دپاره تاکید وڼه جوړیږي لیکن د تاکید دپاره تاکید هیڅکله نسي جوړیدای.(ضوابط نحویه)

د تاکید په لفظ کي درې وجهي ویل جائز دي:

۱. اوله وجه: تاکید په الف سره لکه: تاکید.

۲. دوهمه وجه: تاکید په همزه سره لکه: تأکید.

۳. دریمه وجه: تاکید په واو سره لکه توکید لیکن مشهوره په الف سره دئ.(ضوابط نحویة)

تاکید معنوي هغه تاکید دئ چي دی په یو څو مخصوصه الفاظو باندي راځي دپاره د دې چي د متبوع معنی مضبوطه کي لکه: "فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُوْنَ".

د تاکید معنوي (۱) الفاظ:

په کلام عربي کي تاکید معنوي په اتو (۸) الفاظو باندي راځي هغه اته (۸) الفاظ دا دي: "نَفْسٌ، عَيْنٌ، كِلَا، كِلْتَا، كُلٌّ، اَجْمَعُ، جَمِيْعٌ، عَامَّةٌ، اَكْتَعُ، اَبْتَعُ، اَبْصَعُ".

د تاکید معنوي د الفاظو مختصره تشریح:

اول "نَفْسٌ (۲) وَ عَيْنٌ" دي په "نَفْسٌ وَ عَيْنٌ" سره د شپږو (۶) قسمو تاکید راوړل کیږي: واحد، تثنیه، جمع، مذکر او مؤنث لیکن کله چي په دوی سره تاکید بیانیږي نو دوی د مؤکد موافق د مؤکد و ضمیر ته مضاف کیږي، او د دوی او د مؤکد د ضمیر په مینځ کي مطابقت واجب دئ په افراد، و جمعیت کي لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ نَفْسُهُ وَ عَيْنُهُ، جَائَنِي الزَّيْدُوْنَ اَنْفُسُهُمْ وَ اَعْيُنُهُمْ". لیکن په تثنیه کي درې (۳) صورتونه جائز دي:

۱. اول صورت: دوی مفرد راوړل لکه: "جَائَنِي الزَّيْدَانِ نَفْسُهُمَا وَ عَيْنُهُمَا".

۲. دوهم صورت: دوی تثنیه راوړل لکه: "جَائَنِي الزَّيْدَانِ نَفْسَاهُمَا وَ عَيْنَاهُمَا".

۳. دریم صورت: دوی جمع راوړل لکه: "جَائَنِي الزَّيْدَانِ اَنْفُسُهُمَا وَ اَعْيُنُهُمَا".

لیکن مفرد راوړل حسن دي او جمع راوړل احسن دي او تثنیه راوړل ضعیف دي ځکه اضافت د تثنیه و خپل ضمیر ته راځي.



---

(۱) د تاکید معنوي ټول الفاظ معرفه دي ځکه الفاظ اصلیه د اضافت الی الضمیر په وجه لکه: "نَفْسٌ، عَيْنٌ، كِلَا وَ كِلْتَا، كُلٌّ، عَامٌّ" او کم چي ملحقه دي لکه: "اَجْمَعُ، اَكْتَعُ، اَبْتَعُ، اَبْصَعُ" دا هم معرفه دي عند الجمهور دوی د علم په حکم دي ځکه دوی علم جنس دي د تاکید دپاره اعلام دئ نو ځکه دوی غیر منصرف دي او دوی حال هم نسي واقع کېدای لیکن د امام سبویه او د ابن مالک په نزد باندي په دوی کي نسبت د اضافت موجود دئ ځکه "اَجْمَعُوْنَ" په معنی د "اَجْمَعُهُمْ" سره دئ او "جُمَعُ" په معنی "جَمِيْعُهُنَّ" سره دئ داغه وجه ده چي دوی د نکره دپاره تاکید نه واقع کیږي خلافا للکوفیین ځکه دوی دلیل د حضرت عائشه رضي الله عنها دا حدیث پېشوي هغه وایي: "مَارَاَيْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ صَامَ شَهْرًا كُلَّهُ إِلَّا رَمَضَانَ". لیکن د هغه جواب دا دئ چي دا قسم مثالونه پر نعتیت یا بر بدلیت یا پر ضرورت باندي محمول دي. (تشویر)

(۲) لفظ د "نَفْسٌ" او د "عَيْنٌ" په باء زائده سره مجروره کول هم جائز دي لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ بِنَفْسِهِ، بِعَيْنِهِ".

## څلورمه خبره:

دوهم "كِلَا (١) وَكِلْتَا":

"كِلَا وَكِلْتَا" هم د تثنيه د تاكيد دپاره راځي او دوی د مؤكد موافق د مؤكد و ضمير ته مضاف كيږي او د دوی د ذكر كولو څخه مقصد د انسان د سهو امكان ختم كول دي يعني چي د لفظ د "بعض" د مقدر كولو امكان ختم سي لكه: "جَائَنِي الزَّيْدَانِ كِلَاهُمَا" لېكن كه چيرې د لفظ د "بعض" د مقدر كولو امكان نه وو نو بيا هلته په "كِلَا وَكِلْتَا" سره تاكيد راوړل غلط دي لكه: ته وايې: "اِخْتَصَمَ الرَّجُلَانِ كِلَاهُمَا" يا "تَعَاهَدَ مُسْلِمٌ وَخَالِدٌ كِلَاهُمَا" ځكه دلته د مخاصمه او د معاهده فعل صرف د دوو څخه حاصليږي نو ځكه دلته د تاكيد ضرورت نسته.

دريم لفظ د "كُلٌّ" دئ (٢) د ذو اجزاء د تاكيد دپاره راځي او د ده د تاكيد جوړېدلو دپاره هغه شرط دئ كم چي په "كِلَا وَكِلْتَا" كي وو يعني تقدير به د لفظ د "بعض" هلته صحيح كيږي لكه: "جَائَنِي الْقَوْمُ كُلُّهُمْ. اِشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ كُلَّهُ" لېكن "جَائَنِي زَيْدٌ كُلُّهُ" ويل غلط دي ځكه دلته تقدير د "بعض" نه صحيح كيږي او داغه رنګه دلته د اجزاء په مينځ كي افتراق نسي كېدای او لفظ د "كُلٌّ" د مفرد او د جمع د دواړو د تاكيد دپاره استعماليږي لېكن د تثنيه د تاكيد دپاره نسي استعمالېدای او دی هم د مؤكد موافق د مؤكد و ضمير ته مضاف كيږي د مفرد مثال لكه: "قَرَأْتُ الْكِتَابَ كُلَّهُ"، او د جمع مثال لكه: "فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُوْنَ".

---

(١) سوال "زَيْدٌ وَعَمْرٌو كِلَاهُمَا قَائِمٌ" ويل كيږي او كه "زَيْدٌ وَعَمْرٌو كِلَاهُمَا قَائِمَانِ" ويل كيږي. علامه ابن هشام ددې سوال څخه دا جواب وركړی دئ كه چيرې "كِلَاهُمَا" د تاكيد دپاره سي نو بيا "قَائِمَانِ" ويل كيږي ځكه په دې صورت كي "قَائِمَانِ" خبر دئ او كه چيرې "كِلَاهُمَا" مبتداء سي نو بيا په "قَائِمَانِ" كي دواړه وجه ويل جائز دي مګر افراد يې اولى دئ.

(٢) كله كله لفظ د "كُلٌّ" د مؤكد د مثل ته مضاف سي نو په دې صورت كي بيا دی صفت جوړيږي په معنى د تاكيد سره لكه: "رَأَيْتُ الرَّجُلَ كُلَّ الرَّجُلِ". (همع الهوامع)

## پنځمه خبره:

څلورم قسم لفظ د "اَجْمَعُ، جُمَعَاءُ، جُمَعُ، اَجْمَعِيْنَ" دئ: داغه الفاظ که چيري د "كُلٌّ" څخه وروسته واقع سي نو بيا دوی د شموليت او د احاطه معنی ور کوي چي هغه بعينه د "كُلٌّ" معنی ده لکه: "فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ (۱)". او که چيري دوی د "كُلٌ" بغير استعمال سي نو بيا دوی د اتحاد في الوقت معنی ور کوي او کله کله بغير د لفظ د "كُلٌ" هم مطلقا د تاکيد معنی ور کوي نه د اتحاد في الوقت لکه: "وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِيْنَ" او داغه رنګه(۲) "اَكْتَعُ، اَبْتَعُ، اَبْصَعُ" د "اَجْمَعُ" تابع دي نه تر "اَجْمَعُ" مقدم کېدای سي او نه د "اَجْمَعُ" بغيره استعمالېدای سي او نه دوی څلور په اضافت سره استعمالېدای سي او دوی څلور سره د مفرد او د جمع د مذکر او مؤنث د تاکيد دپاره استعمالېږي لېکن د تثنيه د تاکيد دپاره نه استعمالېږي ځکه د تثنيه د تاکيد دپاره "كِلَا وَكِلْتَا" استعمالېږي چي هغه د دوی د تثنيه څخه استغناء راوستلې ده، د واحد مذکر مثال لکه: "اِشْتَرَيْتُ الْعَبْدَ اَجْمَعَ. اَكْتَعَ. اَبْتَعَ. اَبْصَعَ"، د واحد مؤنث مثال لکه: "اِشْتَرَيْتُ الْاَمَةَ جُمْعٰى، كُتْعٰى، بُتْعٰى، بُصْعٰى". د جمع مذکر مثال لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ كُلُّهُمْ اَجْمَعُوْنَ، اَكْتَعُوْنَ، اَبْتَعُوْنَ، اَبْصَعُوْنَ". د جمع مؤنث مثال لکه: "حَضَرَتِ الطَّالِبَاتُ كُلُّهُنَّ جُمَعُ. كُتَعُ. بُتَعُ. بُصَعُ".

---

(۱) ملا جيون رحمة الله عليه "فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ" مثال د هغه وهم ازاله او رفع جوړ کړی دئ چي ملائکو په يوه وخت کي سجده نه ده کړې لېکن بعض حضراتو د "اَجْمَعُوْنَ" لفظ د اتحاد وقت دپاره جوړ کړی دئ لېکن دا خبره غلطه ده ځکه د ده تعلق د اتحاد وخت سره نه دئ لکه: په "وَلَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِيْنَ" کي "اِغْوَاء" د شيطن په وخت واحد کي نه ده بلکه: د "اَجْمَعِيْنَ" معنی د لفظ د "كُلٌّ" په شان ده چي تاکيد على التاکيد دئ. (شرح شذور الذهب صفحه ۳۰۴).

(۲) تاکيد معنوي کله کله د غير تاکيد. دپاره په حسب اقتضاء د عامل سره فاعل، مفعول، يا مبتداء يا خبر واقع کيږي لکه: "رَاَيْتُ جَمِيْعَهُمْ. رَاَيْتُ عَامَّتَهُمْ" او داغه رنګه د تاکيد معنوي په الفاظو کي حرف عطف راوړل جائز نه دئ. (ضوابط نحوية)

**فائده:**

لفظ د "جَمِيْعٌ وَ عَامَّةٌ" [۱] د "كُلٌّ" په حکم کي دي لېکن په دوی سره تاکيد ډېر کم راځي او د لفظ د "كُلٌّ" او "جَمِيْعٌ" او "عَامَّةٌ" د تاکيد د جوړېدلو دپاره شرط دا دئ چي د دوی سره به ضمير متصل ور سره وي ورنه بيا دوی حال جوړيږي لکه: "هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُمْ مَا فِي الأَرْضِ جَمِيعًا". او داغه رنګه لفظ د "جَمِيْعٌ" او "عَامَّةٌ" که چيري بغير اضافت مستعمل وي بيا هم دوی حال جوړيږي.

**فائده:**

کله چي د ضمير متصل تاکيد په "نَفْسٌ وَ عَيْنٌ" سره مقصود وي نو اَوَّلًا به د ده تاکيد په منفصل سره راوړل کيږي لکه: "جِئْتُ اَنَا نَفْسِيْ وَ عَيْنِيْ". نو دا دواړه د ضمير متصل تاکيدونه دي.

**شپږمه خبره:**

بدل:

دريم قسم د توابع څخه بدل دئ:

د بدل لغوي او اصطلاحي معنی:

بدل په لغت کي عوض ته ويل کيږي لکه: په قرآن کريم کي راځي: "عَسَى رَبُّنَا أَنْ يُبْدِلَنَا خَيْرًا مِنْهَا".
او په اصطلاح کي بدل هغه تابع دئ چي په کلام کي دی په خپله مقصود بالنسبة وي او د متبوع ذکر صرف د توطيه او د تمهيد دپاره وي لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ اَخُوْكَ".

د بدل اقسام:

بدل پر څلور (۴) قسمه دئ:

۱. اول: بدل کل.
۲. دوهم: بدل اشتمال.
۳. دريم: بدل بعض.

---

[۱] په لفظ د "عَامَّةٌ" کي تاء د تانيث نه ده بلکه د مبالغې دپاره ده نو ځکه په حالت د تذکير و تانيث دواړو کي پر خپل حال باندي پاته کيږي لکه: د "نَافِلَةٌ" تاء په دې مثال کي "وَوَهَبْنَا لَهُ إِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ نَافِلَةً". (شرح شذور الذهب)

۴. څلورم: بدل غلط.

د بدل[1] الكل تعريف:

بدل الكل هغه بدل دئ چي په ده کي د بدل او مبدل منه مصداق يو وي يعني د بدل مصداق بعينه د مبدل منه مصداق وي لکه: "اَخُوْکَ" په "جَائَنِيْ زَيْدٌ اَخُوْکَ" کي.

د بدل بعض تعريف:

بدل بعض هغه بدل دئ چي د ده معنی د مبدل منه د معنی يو جزء وي عام تر دې که جزء قليل وي يا مساوي وي يا اکثر وي مثال يې لکه: "رَاْسُهٗ" په "ضُرِبَ زَيْدٌ رَاْسُهٗ" کي يا لکه: "اَكَلْتُ الرَّغِيْفَ ثُلُثَهٗ اَوْ نِصْفَهٗ، اَوْ ثُلُثَيْهِ. اَلْكَلِمَةُ ثَلَاثَةُ اَقْسَامٍ: اِسْمٌ وَفِعْلٌ وَحَرْفٌ".

د بدل اشتمال تعريف:

بدل اشتمال هغه بدل دئ چي نه د مبدل منه جزء وي او نه کل وي بلکه د کليت او جزئيت څخه علاوه د بدل او مبدل منه په مينځ کي يو بل قسم تعلق وي لکه: "ثَوْبٌ" په "سُلِبَ زَيْدٌ ثَوْبُهٗ" کي دلته "ثَوْبٌ" نه د "زَيْدٌ" "جُزْء" دئ نه يې "كُلّ" دئ بلکه په بل اعتبار سره يې تعلق دئ چي "ثَوْبٌ" د "زَيْدٌ" ملکيت دئ لکه: "اَعْجَبَنِيْ زَيْدٌ عِلْمُهٗ اَوْ حُسْنُهٗ".

## اوومه خبره:

د بدل بعض او بدل اشتمال دپاره مشترک شرطونه:

---

([1]) صاحب دا الفيه د بدل الكل نوم بدل مطابق ايښی دئ ځکه د الله تعالی نوم هم بدل الكل واقع کيږي په دې مثال کي: "اِلٰی صِرَاطِ الْعَزِيْزِ الْحَمِيْدِ اللّٰهِ الَّذِيْ لَهٗ" او دا ښکاره خبره ده چي د کل اطلاق صرف پر ذي اجزاء شيانو باندي کيږي حالانکه الله تعالی پاک دي د اجزاء څخه نو ځکه د دې قسم بدل نوم د بدل الكل بجائ بدل مطابق ايښول بهتره دي.

په بدل الكل في البعض کي هم اختلاف دئ جمهور ددې قسم بدل انکار کوي او بعض علماء د دې قائله دي او راجح هم داغه مذهب دئ لکه: "لَقِيْتُهٗ غَدْوَةً يَوْمَ الْجُمُعَةِ" دلته د "يَوْمَ" ظرف ثاني جوړول صحيح نه دي ځکه ظرف زمان بغير د عطف څخه متعدد نسي راتلای نو دا معلومه خبره ده چي دلته "يَوْمَ الْجُمُعَةِ" بدل الكل دئ د "غَدْوَةً" څخه.

او علامه سيوطي رحمة الله عليه د بدل الكل من البعض ثبوت په قرآن کريم کي پيش کړی دئ لکه: "فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ شَيْئًا جَنّٰتِ عَدْنِ نِ الَّتِيْ"، لېکن علامه خضري د دې خبري ترديد کړی دئ چي دلته بدل الكل من البعض نه دئ بلکه دلته بدل الكل من الكل دئ او په "اَلْجَنَّةَ" کي الف لام د جنس دئ.(همع الهوامع جلد ۳ صفحه ۱۵۴)

د بدل بعض او د بدل اشتمال دپاره دوه (۲) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: چي په مبدل منه سره به استغناء صحيح کيږي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: چي ضمير رابط به موجود وي خواه که ملفوظ وي او که مقدر وي د بدل بعض ضمير ملفوظ مثال لکه: "ثُمَّ عَمُوا وَصَمُّوا كَثِيرٌ مِنْهُمْ" او د مقدر مثال يې لکه: "وَلِلَّهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا اَیْ مِنْهُمْ".

د بدل اشتمال ضمير ملفوظ مثال لکه: "يَسْأَلُونَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيهِ" او د مقدر مثال لکه: "قُتِلَ أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ، النَّا : اَیْ فِيهِ".

او دا شرط په بدل کل کي نسته ځکه د بدل کل معنی د مبدل منه عين وي د رابط تقاضا نه کوي لکه: څنګه چي جمله خبر د مبتداء عين وي.

د بدل غلط تعريف:

بدل غلط هغه بدل دئ چي د خولې څخه په غلطي کي د يو لفظ د وتلو وروسته ذکر کيږي لکه: "حِمَارٌ" په "مَرَرْتُ بِرَجُلٍ حِمَارٍ" کي او وده ته بدل مبائن هم ويل کيږي او بدل مبائن په درې (۳) شکلو سره راځي:

۱. اول شکل: بدل غلط، چي د سبقت لساني په وجه سره راځي.

۲. دوهم شکل: بدل نسيان چي متکلم اَولًا د هيري په وجه د متبوع قصد کړی وي بيا د په يادېدلو څخه وروسته تابع ذکر کړي نو د بدل غلط تعلق د ژبي سره وي او د بدل نسيان تعلق د زړه سره وي، لېکن اکثره نحويانو يې فرق نه دئ کړی بلکه دواړه يې يو شی شمار کړي دي يعني بدل غلط.

۳. دريم شکل: "بَدَلُ الْإِضْرَابِ" دئ چي و هغه ته "بَدَلُ الْبَدَاءِ" [1] هم ويل کيږي "بدل الاضراب" هغه بدل دئ چي په جمله کي قصد د بدل او مبدل منه دواړو صحيح کيږي لېکن

---

[1] په بدل البداء کي د نحاتو اختلاف دئ لېکن صحيح خبره دا ده چي دا قسم بدل ثابت دئ ځکه علامه ابن مالک رحمة الله عليه په دې مثال کي يو حديث شريف پېش کړی دئ هغه حديث شريف دا دئ: "إِنَّ الرَّجُلَ لَيُصَلِّي الصَّلَاةَ مَا كُتِبَ لَهُ نِصْفُهَا، ثُلُثُهَا، رُبُعُهَا" دلته "ثُلُثُهَا" بدل الاضراب دئ او علامه سيوطي رحمة الله عليه فرمايلي دئ چي د "بدل الاضراب" قائله امام سبويه رحمة الله عليه دئ لېکن دا خبره په کتاب د سبويه کي نه ده ذکر سوې. (تشوير)

متکلم د مبدل منه د قصد څخه اعراض او عدول وکړي د بدل قصد وکړي لکه: "خُذِ الْقَلَمَ اَلْوَرَقَةَ" لېکن دا بدل په کلام د بلغاء کي نه واقع کېږي بلکه هغه د اعراض دپاره کلمه د "بَلْ" ذکر کوي.

## ضابطه:

د بدل په اقسامو کي د تابع او متبوع په مېنځ کي موافقت صرف په اعراب کي ضروري دئ نه په نورو شيانو کي ماسوا د بدل الکل څخه ځکه په بدل الکل کي د افراد تثنيه، جمع، تذکير، تانيث، لحاظ ساتل ضروري دي لېکن که چيري بدل الکل د مصدر څخه راغلی وو لکه: "مَفَازًا حَدَائِقَ وَأَعْنَابًا" يا د بدل کل څخه مراد تفصيل وو لکه: "جَائَنِيْ ذُوْ رِجْلَيْنِ رِجْلٌ صَحِيْحَةٌ وَرِجْلٌ شَلَّةٌ" نو په دې دواړو صورتو کي په بدل الکل کي هم په افراد، تثنيه، جمع کي موافقت نه دئ ضروري.

## جملې:

| عنوان | خبريه، انشاء | مسند | مسند اليه | تعيين حروف عامله وغير عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعيين مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعيين اقسام بدل |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُوْنَ | خبريه فعليه | (سَجَدَ) فعل | (الْمَلَائِكَةُ) فاعل | (فَ) عاطفه | (سَجَدَ) فعل معروف | (كُلُّ) اسم مضاف | (الْمَلَائِكَةُ) فاعل (كُلُّهُمْ) تاكيد اول (أَجْمَعُوْنَ) تاكيد ثاني | - | (هُمْ) مضاف اليه | (الْمَلَائِكَةُ) مؤكد (كُلُّهُمْ أَجْمَعُوْنَ) تاكيد معنوي |
| قَالُوا آمَنَّا بِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ رَبِّ مُوْسَى وَهَارُوْنَ | خبريه فعليه | (قَالُوا) فعل | (هُمْ) فاعل | (وَ) عاطفه | (قَالُوا آمَنَّا) فعل معروف | (۲) (رَبِّ) صيغه صفت مشبه اسم مضاف | (هُمْ، نَا) فاعل | - | (رَبِّ) مجرور بحرف جر متعلق (آمَنَّا) (الْعَالَمِيْنَ) مضاف اليه متعلق (آمَنَّا) (مُوْسَى وَهَارُوْنَ) مضاف اليه غير منصرف علميت وعجمه (رَبِّ) بدل من (رَبِّ) اول | (رَبِّ الْعَالَمِيْنَ) مبدل منه (رَبِّ مُوْسَى وَهَارُوْنَ) بدل الكل |
| وَجَاءَ رَبُّكَ وَالْمَلَكُ صَفًّا صَفًّا | خبريه فعليه | جَاءَ | (رَبُّكَ) فاعل | (وَ، وَ) عاطفه | (جَاءَ) فعل معروف | (آمَنَ) محذوف (رَبُّ) اسم مضاف | (رَبُّ، وَالْمَلَكُ) (آمَنَ) مضاف محذوف فاعل | (صَفًّا) حال من الفاعل (صَفًّا) تاكيد | (كَ) مضاف اليه | (صَفًّا) مؤكد (صَفًّا) تاكيد لفظي |
| يَسْأَلُوْنَكَ عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ | خبريه فعليه | (يَسْأَ لُوْنَ) فعل | (هُمْ) فاعل | (عَنِ) جاره متعلق (يَسْأَلُوْنَ) (فِي) جاره متعلق (قِتَالٍ) | (يَسْأَلُوْنَ) فعل معروف | (قِتَالٍ) مصدر | (هُمْ) فاعل | (كَ) مفعول به | (الشَّهْرِ) مجرور بحرف الجر (الْحَرَامِ) صفت (قِتَالٍ) بدل (ه) مجرور بحرف الجر | (الشَّهْرِ الْحَرَامِ) مبدل منه (قِتَالٍ) بدل اشتمال [illegible] |

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ و غیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین اقسام بدل |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إِلَيْهِ سَبِيلًا | خبریہ ظرفیہ | (لِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ) باعتبار متعلق خبر مقدم | (حِجُّ الْبَيْتِ) مبتدا مؤخر | (وَ) استنافیہ (لِ، عَلَى) جارہ متعلق ثابت (إِلَى) متعلق بمحذوف حال من سَبِيلًا | (اسْتَطَاعَ) فعل معروف | (حِجُّ) مصدر مضاف | (لِلّٰهِ، عَلَى النَّاسِ) محلا خبر مقدم (حِجُّ) مبتدا (هُوَ) فاعل | (سَبِيلًا) مفعول بہ | (اللّٰهِ، النَّاسِ) لفظا مجرور بحرف جر (مَنِ اسْتَطَاعَ) بدل (مِنَ النَّاسِ) (الْبَيْتِ) مضاف الیہ (ہ) مجرور | (النَّاسِ) مبدل منہ (مَنِ اسْتَطَاعَ) بدل بعض من الکل |
| فِيهِ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ مَقَامُ إِبْرَاهِيمَ | خبریہ ظرفیہ | (فِيهِ) باعتبار متعلق خبر مقدم | (آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ) مبتدا مؤخر | (فِي) جارہ متعلق ثابت | + | (مَقَامُ) اسم مضاف | (فِيهِ) محلا باعتبار متعلق خبر مقدم (آيَاتٌ) مبتدا (بَيِّنَاتٌ) صفۃ لہ (مَقَامُ) بدل من (آيَاتٌ) | + | (إِبْرَاهِيمَ) مجرور والجر تابع للنصب لغیر منصرف للعلمیۃ والعجمۃ (ہ) مجرور | (آيَاتٌ) مبدل منہ (مَقَامُ إِبْرَاهِيمَ) بدل الاشتمال لان آیات مشتمل علی مقام ابراہیم |
| قُتِلَ أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ النَّارِ ذَاتِ الْوَقُودِ | خبریہ فعلیہ | (قُتِلَ) فعل مجہول | (أَصْحَابُ الْأُخْدُودِ) نائب فاعل | + | (قُتِلَ) فعل مجہول رافع (لِأَصْحَابُ الْأُخْدُودِ) | (أَصْحَابُ) (ذَاتِ) اسم مضاف | (أَصْحَابُ) نائب فاعل | + | (الْأُخْدُودِ) مضاف الیہ (النَّارِ) بدل من (الْأُخْدُودِ) (ذَاتِ) صفۃ لہ (الْوَقُودِ) مضاف الیہ | (الْأُخْدُودِ) مبدل منہ (النَّارِ) بدل الاشتمال منہ لان الاخدود مشتمل علی النار |
| سَافَرَ عَلِيٌّ إِلَى بَغْدَادَ جُدَّةَ | خبریہ فعلیہ | (سَافَرَ) فعل | (عَلِيٌّ) فاعل | (إِلَى) جارہ ظرف لغو متعلق (سَافَرَ) | (سَافَرَ) فعل معروف | + | (عَلِيٌّ) فاعل | + | (بَغْدَادَ) مجرور والجر تابع للنصب (جُدَّةَ) مجرور بدل من بغداد و غیر منصرف علمیت، تانیث لفظی، مجر | (بَغْدَادَ) مبدل منہ (جُدَّةَ) بدل نسیان |
| جَاءَ حِمَارٌ رَجُلٌ | خبریہ فعلیہ | (جَاءَ) فعل | (حِمَارٌ) فاعل | + | (جَاءَ) فعل معلوم | + | (حِمَارٌ) فاعل (رَجُلٌ) بدل من الفاعل | + | + | (حِمَارٌ) مبدل منہ (رَجُلٌ) بدل غلط |
| خُذِ الْقَلَمَ وَالْوَرَقَةَ | انشائیہ فعلیہ | (خُذْ) فعل | (أَنْتَ) فاعل | (وَ) عاطفہ | (خُذْ) فعل معلوم | + | (أَنْتَ) فاعل | (الْقَلَمَ) مفعول بہ (وَالْوَرَقَةَ) بدل من المفعول | + | (الْقَلَمَ) مبدل منہ (الْوَرَقَةَ) بدل اضراب |
| وَاذْكُرْ عِبَادَنَا إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ أُولِي الْأَيْدِي وَالْأَبْصَارِ | انشائیہ فعلیہ | (اذْكُرْ) فعل | (أَنْتَ) فاعل | (وَ) استنافیہ، (وَ) عاطفہ فی المواضع الثلاثۃ | (اذْكُرْ) فعل معلوم | (عِبَادَ، أُولِي) اسم مضاف | (أَنْتَ) فاعل | (عِبَادَ) مفعول بہ (إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ) بدل من (عِبَادَ) غیر منصرف فیہ الجر تابع للنصب (أُولِي) صفۃ لہم | (نَا) مضاف الیہ (الْأَيْدِي) مضاف الیہ (الْأَبْصَارِ) معطوف علی (الْأَيْدِي) | (عِبَادَ) مبدل منہ (إِبْرَاهِيمَ وَإِسْحَاقَ وَيَعْقُوبَ) بدل الکل |
| وَإِلَى عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا | خبریہ ظرفیہ | (أَرْسَلَ) فعل محذوف | (نَا) فاعل | (وَ) استنافیہ (إِلَى) جارہ متعلق (بِأَرْسَلْنَا) محذوف | (أَرْسَلَ) فعل معلوم | (أَخَا) اسم مضاف | (نَا) فاعل فعل محذوف | (أَخَا) مفعول بہ لفعل محذوف (هُودًا) بدل من (أَخَا) | (عَادٍ) مجرور بحرف الجر (هُمْ) مضاف الیہ | (أَخَا) مبدل منہ (هُودًا) بدل الکل |

# التمرين:

"وَقَالَ مُوسَىٰ لِأَخِيهِ هَارُونَ اخْلُفْنِي فِي قَوْمِي،، أَلَا بُعْدًا لِعَادٍ قَوْمِ هُودٍ،، حَتَّىٰ تَأْتِيَهُمُ الْبَيِّنَةُ رَسُولٌ مِنَ اللَّهِ،، إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا حَدَائِقَ وَأَعْنَابًا،، وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُودَ ذَا الْأَيْدِي،، اهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ صِرَاطَ الَّذِينَ أَنْعَمْتَ عَلَيْهِمْ،، وَيَجْعَلَ الْخَبِيثَ بَعْضَهُ عَلَىٰ بَعْضٍ،، قُمِ اللَّيْلَ إِلَّا قَلِيلًا نِصْفَهُ،، جَزَاءً مِنْ رَبِّكَ عَطَاءً حِسَابًا رَبِّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ،، إِنَّ الْمُتَّقِينَ فِي مَقَامٍ أَمِينٍ فِي جَنَّاتٍ وَعُيُونٍ".

# جملي:

| عنوان | خبر/انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین اقسام تاکید |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ | خبریہ فعلیہ | (هَيْهَاتَ) اسم فعل بمعنی (بَعُدَ) فعل ماضی | (لِمَا تُوعَدُونَ) جملہ بتاویل مصدر فاعل | (لِ) جارہ زائدہ (مَا) مصدریہ یا موصولہ | (بَعُدَ) فعل معلوم لازمی (تُوعَدُونَ) فعل مجہول | • | (لِمَا تُوعَدُونَ) مرفوع لفظاً محل مرفوع محلاً بوجہ جملہ فاعل فعل (أَنْتُمْ) یا (وَ) فاعل | • | (مَا تُوعَدُونَ) محل قریب الجر | (هَيْهَاتَ) مؤکد (هَيْهَاتَ) تاکید لفظی بجری اصلی |
| كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ | خبریہ فعلیہ | (تَعْلَمُونَ) فعل | (أَنْتُمْ) یا (وَ) فاعل | ۲ (كَلَّا) حرف ردع للزجر ۲ (سَوْفَ) حرف استقبال (ثُمَّ) لعطف کلم غیر عامل | ۲ (تَعْلَمُونَ) فعل معلوم | • | (۲) (أَنْتُمْ) فاعل (تَعْلَمُونَ) | • | • | (كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ) مؤکد (كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ) تاکید لفظی |
| الْحَاقَّةُ مَا الْحَاقَّةُ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْحَاقَّةُ | خبریہ اسمیہ | (مَا الْحَاقَّةُ) (مَا) مبتدا (الْحَاقَّةُ) خبر، جملہ خبر (الْحَاقَّةُ) الاولی | (الْحَاقَّةُ) مبتدا | (وَ) عاطفہ | (أَدْرَى) فعل معلوم | (الْحَاقَّةُ) الثانیہ صیغہ صفت عامل فی ضمیرہ (هِيَ)، ۲ (مَا) اسم استفہام | (الْحَاقَّةُ) الاولی مبتدا (مَا الْحَاقَّةُ) الثانیہ جملہ خبر لہ محل رفع (هُوَ) فاعل (أَدْرَى) | (كَ) مفعول اول (مَا الْحَاقَّةُ) مبتدا و خبر محلاً منصوب مفعول ثانی للفعل | • | (مَا الْحَاقَّةُ) مؤکد (مَا الْحَاقَّةُ) تاکید لفظی (المرّة) للتفخیم |
| فَمَهِّلِ الْكَافِرِينَ أَمْهِلْهُمْ رُوَيْدًا | انشائیہ فعلیہ | (مَهِّلْ) فعل | (أَنْتَ) فاعل | (فَ) زائدہ جواب شرط محذوف ای اِن کان کذا لک | (مَهِّلْ) (أَمْهِلْ) فعل معلوم | (الْكَافِرِينَ) صیغہ صفت عامل فی ضمیرہ (هُمْ) بارز الاخیر | (أَنْتَ) فاعل، (أَنْتَ) فاعل | (الْكَافِرِينَ) مفعول بہ (هُمْ) مفعول بہ (رُوَيْدًا) بالتصغیر مصدر من اسم الفعل مفعول مطلق نائب عن المصدر فھو مرفوق | • | (مَهِّلْ) مؤکد (أَمْهِلْهُمْ) (رُوَيْدًا) جملہ تاکید لفظی |
| فَوَرَبِّكَ لَنَسْأَلَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ | انشائیہ اسمیہ | (أُقْسِمُ) فعل مقدر | (أَنَا) فاعل | (فَ) استئنافیہ، (وَ) قسمیہ جارہ، (لَامْ) للقسم، (نَّ) تاکید ثقیلہ | (أُقْسِمُ، نَسْأَلُ) فعل معلوم | (رَبِّ) اسم مضاف | (أَنَا) فاعل، (نَحْنُ) فاعل | (هُمْ) مفعول بہ (أَجْمَعِينَ) تاکید لضمیر الجمع | (رَبِّ) مجرور بحرف جر متعلق (أُقْسِمُ) محذوف (كَ) مضاف الیہ | (هُمْ) مؤکد (أَجْمَعِينَ) تاکید معنوی |

| نمونه | خبر/انشاء | مسند | مسند اليه | تعيين حروف عامله وغير عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعيين مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعيين اقسام تاكيد |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَقُلْنَا يَا آدَمُ اسْكُنْ أَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ | خبريه فعليه | (قُلْ) فعل | (نَا) فاعل | (وَ) عاطفه (يَا) حرف نداء (وَ) عاطفه | (قُلْ. اُدْعُوْ. اُسْكُنْ) فعل معلوم | (زَوْجُ) اسم مضاف | (أَنَا، نَا، أَنْتَ) فاعل (اُسْكُنْ) (زَوْجُ) معطوف على الضمير المرفوع (آدَمُ) منادى مفرد معرفه مبني على الضم في محل نصب | (الْجَنَّةَ) مفعول به (يَا آدَمُ اسْكُنْ) جمله في محل نصب مقول قول | (كَ) مضاف اليه | ضمير (اُسْكُنْ) (أَنْتَ) مؤكد (أَنْتَ) تاكيد لفظي |
| فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا | خبريه اسميه | (مَعَ الْعُسْرِ) باعتبار متعلق خبر مقدم | (يُسْرًا) اسم مؤخر | (فَ) مستانفه (إِنَّ، إِنَّ) مشبه بالفعل | . | (۲) (مَعَ) ظرف مضاف | دوه (مَعَ الْعُسْرِ، مَعَ الْعُسْرِ) باعتبار متعلق مرفوع في محل خبر | (يُسْرًا، يُسْرًا) اسم مؤخر في محل (المنصوب) | (الْعُسْرِ، الْعُسْرِ) مضاف اليه | (فَإِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا) جمله مؤكد (إِنَّ مَعَ الْعُسْرِ يُسْرًا) جمله تاكيد لفظي |
| كَذَّبُوا بِآيَاتِنَا كُلِّهَا | خبريه فعليه | (كَذَّبُوا) فعل | (هُمْ) يا (وْ) فاعل | (بِ) جاره حرف متعلق (بِكَذَّبُوا) | (كَذَّبُوا) فعل معلوم | (آيَاتِ) (كُلِّ) اسم مضاف | (هُمْ) فاعل | . | (آيَاتِ) مجرور حرف جر (نَا) مضاف اليه (هَا) مضاف اليه (كُلِّ) تاكيد (آيَاتِ) | (آيَاتِ) مؤكد (كُلِّهَا) تاكيد معنوي |

## التمرين:

"لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ.. كَلَّا إِذَا دُكَّتِ الْأَرْضُ دَكًّا دَكًّا.. لِيُظْهِرَهُ عَلَى الدِّينِ كُلِّهِ.. اقْرَأْ بِاسْمِ رَبِّكَ الَّذِي خَلَقَ خَلَقَ الْإِنْسَانَ مِنْ عَلَقٍ.. وَهُمْ عَنِ الْآخِرَةِ هُمْ غَافِلُونَ.. فَاذْهَبْ أَنْتَ وَرَبُّكَ فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ.. سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا.. الْقَارِعَةُ مَا الْقَارِعَةُ وَمَا أَدْرَاكَ مَا الْقَارِعَةُ.. قُلْ إِنَّ الْأَمْرَ كُلَّهُ لِلَّهِ.. فَأَغْرَقْنَاهُمْ أَجْمَعِينَ".

## الدرس السابع والثلاثون:

د نن د سبق خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د بدل(۱) او مبدل منه أقسام په اعتبار د ظاهر او د ضمير سره:

---

(۱) ضوابط:

۱. اوله ضابطه: که چيري مبدل منه متضمن معنی د استفهام يا د شرط لره وه نو په بدل کي په همزه استفهام يا په حرف شرط سره تفصيل ضروري دئ د استفهام مثال لکه: "كَمْ مَالُكَ أَعِشْرُونَ أَمْ ثَلَاثُونَ. مَا صَنَعْتَ أَخَيْرًا أَمْ شَرًّا" د شرط مثال يې لکه: "مَا تَصْنَعْ إِنْ خَيْرًا وَإِنْ شَرًّا تُجْزَ بِهِ. مَنْ يَجِئْ إِنْ زَيْدٌ وَإِنْ عَمْرٌو أَقُمْ مَعَهُ". (جامع الدروس العربية)

بدل او مبدل منه په اعتبار د ظاهر او د ضمیر سره پر څلور (۴) قسمه دي:

۱. اول قسم: دواړه مظهر وي.
۲. دوهم قسم: دواړه مضمر وي.
۳. دریم قسم: اول مظهر دوهم مضمر.
۴. څلورم قسم: اول مضمر دوهم مظهر.

۱. کله کله مبدل مظهر من المظهر وي لکه: "جَائَنِيْ زَیْدٌ اَخُوْکَ".
۲. کله کله بدل مضمر من المضمر وي لکه: "ضَرَبْتُهُ اِیَّاهُ" لېکن د ابن مالک رحمه الله په نزد باندي دا تاکید دئ بدل نه دئ.
۳. بدل المضمر من المظهر لکه: "ضَرَبْتُ زَیْدًا اِیَّاهُ" او ابن مالک رحمه الله د دې قسم هم انکار کړی دئ او دا یې تاکید بللی دئ. لېکن دا قول یو څه محل د نظر دئ ځکه د قوي تاکید په ضعیف سره نه کیږي لېکن بدل واقع کېدای سي لکه: په "زَیْدٌ هُوَ الْفَاضِلُ" کي نحاتو د "هُوَ" بدلیت جائز بللی دئ داغه رنګه د "هُوَ" ابتدائیت او فصل یې هم جائز بللی دئ.
۴. بدل المظهر من المضمر په دې کي یو څه تفصیل دئ هغه دا چي د ظاهر بدلیت د ضمیر غائب څخه مطلقا جائز دي لکه: "وَمَآ أَنْسَانِیهُ إِلَّا الشَّیْطَانُ أَنْ أَذْکُرَهُ".

---

۲. دوهمه ضابطه: فعل د فعل څخه بدل جوړېدای سي ماسوا د بدل البعض مثال یې لکه: "وَمَنْ یَفْعَلْ ذٰلِكَ یَلْقَ أَثَامًا یُضَاعَفْ لَهُ الْعَذَابُ" اسم د اسم څخه بدل واقع کېدای سي لکه: "جَائَنِيْ زَیْدٌ اَخُوْکَ" جمله د جمله څخه بدل جوړېدای سي لکه: "وَاتَّقُوا الَّذِيْٓ أَمَدَّکُمْ بِمَا تَعْلَمُوْنَ ۝ أَمَدَّکُمْ بِأَنْعَامٍ وَبَنِیْنَ" دلته "أَمَدَّکُمْ" ټوله جمله د "أَمَدَّکُمْ" څخه بدل واقع سوی ده او د علامه ابن جني او زمخشري په نزد باندي جمله د مفرد څخه بدل جوړېدای سي لکه: په دې شعر کي "اِلَی اللهِ اَشْکُوْ بِالْمَدِیْنَةِ حَاجَةً وَ بِالشَّامِ أُخْرٰی. کَیْفَ یَلْتَقِیَانِ" دلته "کَیْفَ یَلْتَقِیَانِ" بدل دئ د "مِنْ حَاجَةٍ أَوْ أُخْرٰی" څخه، "عَرَفْتُ زَیْدًا اَبُوْ مَنْ هُوَ" لېکن ابن مالک رحمه الله علیه د دې مثال د قرآن کریم څخه پېش کړی دئ لکه: "مَا یُقَالُ لَكَ إِلَّا مَا قَدْ قِیْلَ لِلرُّسُلِ مِنْ قَبْلِكَ". لېکن حرف هیڅ کله بدل نسي واقع کېدای. (همع الهوامع جلد ۳ صفحه ۱۵۴)

۳. دریمه ضابطه: د بعض نحاتو په نزد باندي په بدل کي جلا مستقل عامل دئ لکه: څنګه چي په متبوع کي مستقل عامل دئ لېکن د جمهورو نحاتو په نزد باندي د دواړو عامل یو دئ لېکن په تابع کي نوی عامل منل کیږي حکما هغه پر دې بنیاد چي متبوع مقصود بالعرض ده. (ضوابط نحویة)

داغه رنګه د ظاهر بدلیت د ضمیر متکلم او د ضمیر مخاطب څخه بدل البعض و بدل الاشتمال بیا مطلقا جائز دي د ضمیر مخاطب د بدل بعض مثال لکه: "لَقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِمَنْ كَانَ يَرْجُو اللهَ وَالْيَوْمَ الْآخِرَ" دلته "لِمَنْ" جار و مجرور بدل د "لَكُمْ" د مخاطب د ضمیر څخه. د ضمیر متکلم د بدل اشتمال مثال لکه: "بَلَغَنَا السَّمَاءَ مَجْدُنَا وَسَنَاءُنَا" دلته "مَجْدُنَا" بدل الاشتمال دئ د "بَلَغْنَا" د ضمیر متکلم څخه. لېکن د بدل الکل دپاره دا شرط دئ چي د ی به پر شمولیت او پر احاطه باندي دلالت کوي نو بیا د ده بدلیت جائز دئ لکه: "تَكُونُ لَنَا عِيدًا لِأَوَّلِنَا وَآخِرِنَا".

## دوهمه څېره:

د بدل او مبدل منه اقسام په اعتبار د تعریف و تنکیر سره:
بدل او مبدل منه په اعتبار د تعریف او د تنکیر سره هم پر څلور (۴) قسمه دئ:

۱. اول قسم: کله کله دواړه معرفه وي لکه: "اِهْدِنَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيمَ" یا لکه: "إِلَىٰ صِرَاطِ الْعَزِيزِ الْحَمِيدِ. اللهِ الَّذِي".
۲. دوهم قسم: کله کله دواړه نکره وي لکه: "إِنَّ لِلْمُتَّقِينَ مَفَازًا. حَدَائِقَ وَأَعْنَابًا".
۳. دریم قسم: کله کله مبدل منه نکره وي او بدل معرفه وي لکه: "إِلَىٰ صِرَاطٍ مُسْتَقِيمٍ صِرَاطِ اللهِ".
۴. څلورم قسم: مبدل منه معرفه وي او بدل نکره وي لکه: "بِالنَّاصِيَةِ. نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ" اول دري صورتونه مطلقا جائز دي عند الکل لېکن د غه څلورم صورت په نزد د جمهورو علماء کرامو باندي مطلقا جائز دئ ځکه د دوی په نزد د بدل او مبدل منه په مینځ کي مطابقت په تعریف و تنکیر کي ضروري نه دئ لکه: په دریم صورت کي لېکن په نزد د بعض نحاتو باندي چي په دې صورت کي چونکه ادنی والی او کم والی د بدل تر مبدل منه راځي حالانکه مقصود بالذات بدل دئ نو ځکه د ده د صحت دپاره شرط دا دئ چي د بدل صفت نکره راوړل ضروري دي یعني بدل به نکره موصوفه وي بیا یې بدلیت جائز دي لکه: "بِالنَّاصِيَةِ. نَاصِيَةٍ كَاذِبَةٍ خَاطِئَةٍ" دلته یې صفت په "كَاذِبَةٍ" نکره سره راغلی دئ.

## دريمه خبره:

عطف بالحرف ([1]):

ځلورم قسم د توابع څخه عطف بالحرف دئ.

د عطف بالحرف تعريف:

---

([1]) د عطف اقسام: عطف پر درې قسمه دئ:

۱. اول قسم: اصل عطف پر لفظ يعني پر محل قريب باندي وي لكه: "لَيْسَ زَيْدٌ بِقَائِمٍ وَلَا قَاعِدٍ".

۲. دوهم قسم: كله كله عطف پر محل بعيد باندي راځي لكه: "أَنَّ اللّٰهَ بَرِيءٌ مِنَ الْمُشْرِكِينَ وَرَسُولُهُ" دلته "رَسُولُهُ" عطف دئ پر لفظ د "اَللّٰهُ" باندي لفظ د "اَللّٰهُ" كه څه هم لفظا منصوب دئ ليكن په محل د رفع كي دئ ځكه دى په حقيقت مبتداء دئ.

۳. دريم قسم: كله كله عطف پر توهم باندي راځي لكه: "لَيْسَ زَيْدٌ قَائِمًا وَلَا قَاعِدٍ" دلته توهم دا دئ چي د "لَيْسَ" پر خبر باندي باء حرف جر داخله وه نو ځكه يې و "قَاعِدٍ" ته جرور كړى دئ. يعني "تَوَهُّمًا" باء داخله ده نه حقيقتا. (ضوابط نحوية)

اوله ضابطه: د يوه عامل پر متعدد معمولاتو باندي عطف د يوه حرف عطف په ذريعه باندي جائز دئ لكه: "أَعْلَمَ زَيْدٌ عَمْرًوا بَكْرًا مُقِيمًا وَعَبْدُاللّٰهِ جَعْفَرًا عَاصِمًا دَاخِلًا".

دوهمه ضابطه: د دوه مختلفو عاملين پر معمولين باندي د يوه حرف عطف په ذريعه عطف جائز دئ او كه نه دئ په دې مسئله كي اووه (۷) اقوال دي په دې كي مشهور درې قولونه دي:

۱. اول قول: د امام فراء رحمة الله عليه په نزد باندي مطلقا جائز دئ.

۲. دوهم قول: د امام سيبويه رحمة الله عليه په نزد باندي مطلقا نا جائز دئ.

۳. دريم قول: د جمهورو نحاتو په نزد باندي صرف په يوه صورت كي جائز دي هغه دا چي كله معمول مجرور مقدم وي لكه: "فِي الدَّارِ زَيْدٌ وَالْحُجْرَةِ عَمْرٌو".

كله چي د حرف عطف په ذريعه سره د مبتداء متعدد خبرونه راسي يا د فعل متعدد مفعولات راسي يا متعدد صله جات راسي او د معطوف او معطوف عليه په مينځ كي فاصله كثيره وي نو په هغه ځاى كي دوه قسمه عطف جائز دئ:

۱. اول قسم: عطف د مفرد پر مفرد باندي.

۲. دوهم قسم: عطف د جمله پر جمله باندي لكه: "اَلْبَاءُ لِلْإِلْصَاقِ وَلِلْاِسْتِعَانَةِ".

كله كله معطوف عليه حذف كيږي لكه: "أَفَلَمْ تَكُنْ آيَاتِي تُتْلٰى عَلَيْكُمْ". دلته "أَلَمْ تَأْتِكُمْ" محذوف وي او كله كله معطوف هم حذف كيږي لكه: "فَمَنْ كَانَ مِنْكُمْ مَرِيضًا أَوْ عَلٰى سَفَرٍ" د دې څخه وروسته "فَأَفْطَرَ" معطوف محذوف دئ.

آيا د ظرف زمان عطف پر مكان باندي يا د مكان عطف پر زمان باندي جائز دئ او كه نه دئ جائز صاحب صفي د ابو علي فارسي څخه جواز نقل كړى دئ لكه: "وَأُتْبِعُوا فِي هٰذِهِ الدُّنْيَا لَعْنَةً وَيَوْمَ الْقِيَامَةِ". (ضوابط نحوية وتنوير)

عطف بالحرف هغه تابع دئ چي تر حرف عطف څخه وروسته ذکر کيږي دی او متبوع دواړه مقصود بالنسبه وي او دواړه په نسبت کي سره شريکان وي او ده ته عطف نسق هم ويل کيږي او علامه سبويه رحمه الله د ده نوم باب الشرکت ايښی دئ لکه: "جَائَنِيْ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو" جزء اول ته معطوف عليه او جزء ثاني ته معطوف ويل کيږي.

د معطوف او معطوف عليه د پېژندلو طريقه:

د معطوف د پېژندلو طريقه خو اسانه ده ځکه دی تر حرف عطف وروسته ذکر کيږي د معطوف عليه د پېژندلو طريقه دا ده که چيري د معطوف د معطوف عليه پر ځای باندي په درولو سره معنی صحيح کېده نو بس داغه معطوف عليه دئ لېکن که چيري په درولو سره معنی خرابېده نو بيا عطف نه صحيح کيږي لکه: "قَامَ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو".

## څلورمه خبره:

د اسماؤ او د افعالو و ضمائرو او د جملو يو پر بل باندي د عطف کولو مختصره تشريح:

د فعل عطف پر فعل باندي جائز دئ خواه که د ماضي عطف پر مضارع وي لېکن په دې شرط چي ماضي به د مضارع په معنی سره وي او دوهم شرط چي د فعل عطف پر فعل باندي کيږي اتحاد د زمانې شرط دئ لېکن اتحاد د نوع نه دئ شرط لکه: د مضارع عطف پر ماضي باندي او د دې بر عکس لکه: مثال "يَوْمَ يَقْدُمُ قَوْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَوْرَدَهُمُ النَّارَ". او کله مضارع عطف سي پر ماضي باندي او مضارع د ماضي په معنی سره وي لکه: "أَنْزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَتُصْبِحُ الْأَرْضُ مُخْضَرَّةً".

او د فعل عطف پر اسم باندي جائز دئ په دې شرط چي دوی به سره متشابه المعنی وي لکه: "فَالْمُغِيْرَاتِ صُبْحًا فَأَثَرْنَ بِهِ نَقْعًا، أَوَلَمْ يَرَوْا إِلَى الطَّيْرِ فَوْقَهُمْ صَافَّاتٍ وَيَقْبِضْنَ".

د اسم عطف پر فعل باندي په دې شرط چي متشابه المعنی به وي لکه: "يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ".

د جملې عطف پر مفرد باندي په دې شرط چي جمله به د مفرد په تاويل سره وي يعني دا جمله به يا صفت واقع سوی وي يا حال يا خبر يا د افعال قلوب مفعول لکه مثال: "دَعَانَا لِجَنْبِهِ قَاعِدًا أَوْ قَائِمًا" دلته د "قَاعِدًا" عطف پر "لِجَنْبِهِ" باندي راغلی دی په تقدير د "أَوْ" مقدر سره، داغه رنګه "بَيَاتًا أَوْ

هُمْ قَائِلُونَ" لیکن د مازني، مبرد، او زجاج په نزد باندې د اسم عطف پر فعل باندې یا د فعل عطف پر اسم باندې ناجائز دئ.

## پنځمه خبره:

عطف د جملې پر جملې باندې:

دلته دوه (۲) صورتونه جوړیږي:

۱. اول صورت: عطف د جملې فعلیې پر جمله اسمیه باندې یا بر عکس په دې کې درې مذهبونه دي:

اول مذهب: عند الجمهور مطلقا جائز دي او اصح قول هم داغه دئ.

دوهم مذهب: د ابن جني په نزد باندې مطلقا نا جائز دئ.

دریم مذهب: د ابو علي فارسي په نزد باندې عطف بالواو جائز دئ.

۲. دوهم صورت: عطف د جملې انشائیه پر جمله خبریه یا بر عکس عند الجمهور نا جائز دئ لیکن د علامه صفار او ابو حیان او امام سبویه او د نحویین د یو جماعت په نزد باندې جائز دئ هغه په دلیل کې د قرآن کریم دا آیت پیشوي لکه: "وَبَشِّرِ الَّذِيْنَ آمَنُوْا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ" دا قوله جمله پر ماقبل جمله خبریه باندې عطف ده یا لکه: دا شعر: "وَاِنَّ شِفَائِيْ عِبْرَةٌ مُهْرَاقَةٌ فَهَلْ عِنْدَ رَسْمٍ دَارِسٍ مِنْ مُعَوَّلِ" دلته عطف د انشاء چې "فَهَلْ عِنْدَ رَسْمٍ" دئ پر خبر باندې چې "وَاِنَّ شِفَائِيْ" دئ، لیکن د جمهورو د طرف څخه دا جواب دئ چې دلته عطف د انشاء پر انشاء دئ ځکه دلته "قُلْ" امر حاضر مقدر دئ یا عطف القصة علی القصة ده.

د ضمائرو عطف:

پر اسم ظاهر او پر ضمیر منفصل او متصل باندې بغیر د څه شرط څخه عطف صحیح کیږي د ظاهر مثال لکه: "قَامَ زَيْدٌ وَعَمْرٌو" د ضمیر منفصل مثال لکه: "اِيَّاكَ وَالْاَسَدَ" د ضمیر منصوب متصل مثال لکه: "جَمَعْنَاكُمْ وَالْأَوَّلِيْنَ" لیکن پر ضمیر مرفوع متصل خواه که بارز وي او که مستتر وي پر ده باندې د عطف کولو دپاره شرط دا دئ چې د ده تاکید به په منفصل سره راغلی وي لکه: "لَقَدْ كُنْتُمْ أَنْتُمْ وَآبَاؤُكُمْ" او پر ضمیر مجرور متصل باندې د عطف کولو دپاره شرط دا دئ: چې

اعاده د جار (۱) ضروري ده خواه که جار حرف جر وي لکه: "فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا قَالَتَا أَتَيْنَا طَائِعِينَ". یا جار اسم مضاف وي لکه: "قَالُوا نَعْبُدُ إِلٰهَكَ وَإِلٰهَ آبَائِكَ" لیکن عند البعض اعاده د جار نه ده ضروري لکه: "وَصَدٌّ عَنْ سَبِيلِ اللهِ وَكُفْرٌ بِهِ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ. تَسَاءَلُونَ بِهِ وَالْأَرْحَامَ".

## شپږمه خبره:

عطف بیان (۲):

د توابع څخه پنځم قسم عطف بیان دئ.

د عطف بیان تعریف:

"اَلتَّابِعُ الْمُشَبَّهُ لِلصِّفَةِ فِي تَوْضِيحِ مَتْبُوْعِهِ إِنْ كَانَ مَعْرِفَةً وَتَخْصِيصِ إِنْ كَانَ نَكِرَةً". عطف بیان هغه تابع غیر صفت دئ چي خپل متبوع روښانه او واضح کوي که چیري دوی دواړه معرفه وه یا په متبوع کي تخصیص پیدا کوي که چیري دواړه نکره وه لکه: "اَقْسَمَ (۳) بِاللهِ اَبُوْ حَفْصٍ عُمَرَ. اِشْتَرَيْتُ حُلِيًّا سِوَارًا".

---

(۱) د بصریین په نزد باندي اعاده د جار واجب ده ځکه ضمیر مشابه دئ د تنوین سره لکه: څنګه چي پر تنوین باندي عطف نه دئ جائز داغه رنګه پر ده باندي هم نه دئ جائز ځکه د متعاطفین دپاره دا ضروري ده چي هغه به یو د بل پر ځای د واقع کېدلو صلاحیت لري چونکه ضمیر مجرور د معطوف پر ځای باندي د واقع کېدلو صلاحیت نه لري نو ځکه پر ده باندي عطف بغیر د اعاده د جار نه صحیح کیږي.

لیکن ابن مالک رحمة الله علیه دا جواب ور کړی دئ که چیري د ضمیر د تنوین سره د مشابهت په وجه عطف ممتنع دئ نو بیا باید چي د تنوین په شان د ده تاکید او بدل واقع کېدل هم ممتنع سي حالانکه دا بالاجماع جائز دي. (تنویر)

(۲) ابو حیان د عطف بیان وجه دتسمیه دا بیان کړې ده چونکه چي په ده کي د زیادت د بیان دپاره د اول لفظ تکرار وي نو ځکه ده ته عطف بیان ویل کیږي د جمهورو بصریین په نزد باندي عطف بیان په معرفه پوري خاص دئ لیکن د کوفیین او د بعض بصریین لکه: ابو علی فارسي، ابن جني او د متاخرین څخه زمخشري ابن عصفور او د ابن مالک رحمة الله علیه په نزد باندي عطف بیان په معرفه پوري نه دئ خاص لکه: دا قول د الله تعالی "أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِينَ" داغه رنګه دا قول د الله تعالی "مِنْ مَاءٍ صَدِيدٍ".

جمهور بصریین وایي: چي بیان هغه شی واقع کېدای سي چي معلوم وي او نکره خو مجهوله وي او مجهول د مجهول بیان نسي جوړېدای لیکن د دې څخه بعض نحاتو دا جواب ور کړی دئ چي دلته بعض نکره اخص وي او دا ښکاره خبره ده چي اخص د غیر اخص بیان کولای سي. (ضوابط نحویه)

(۳) په دې مثال کي عمر عطف بیان دئ او ابو حفص مُبَيَّن دئ او ابو حفص د حضرت عمر رضي الله عنه کنیت دئ دلته عمر د ابو حفص دپاره هغه وخت بیان جوړېدای سي چي کله عمر تر ابو حفص زیات مشهوره وي او دلته عمر در ابو حفص زیات مشهوره دئ.

د عطف بيان د پيژندلو طريقه:

لفظًا يې د پيژندلو طريقه دا ده چې تابع او متبوع به دواړه اسمونه وي او يو به علم وي او بل به كنيت وي چې وروسته كم يو ذكر سي هغه به عطف بيان وي او مخكنى به متبوع او مُبَيَّن وي معنًا يې د پيژندلو طريقه دا ده چې د ده په معنى كې د (يعني) لفظ راځي لكه "أَقْسَمَ بِاللهِ أَبُوْ حَفْصٍ عُمَرَ" قسم يې خوړلى وو ابو حفص يعني عمر.

د عطف بيان شرائط:

د عطف بيان دپاره هغه شرطونه دي كم چې د صفت دپاره دي يعني په لسو شيانو كي مطابقت غواړي او په تركيب كي به په يوه وخت كي څلور دانې موجود وي (١):

د عطف بيان او د صفت په مينځ كي فرق:

د عطف بيان او د صفت په مينځ كي درې (٣) فرقونه دي:

١. اول فرق يې دا دئ: عطف بيان مُوَضِّحْ او مُخَصِّصْ د ذات وي صفت د ذات وضاحت نه كوي.
٢. دوهم فرق يې دا دئ: صفت حقيقي پر ضمير باندي مشتمل وي او عطف بيان پر ضمير باندي نه وي مشتمل.

---

دا ذكر سوي مصرع د يو اعرابي قول دئ چي كله دى د حضرت عمر ﷺ په خدمت كي حاضر سو او ورته يې وويل چي جناب زما كور ليري دئ او زما اوښه بالكل وچه كلكه ده او ډنګره سوې ده او د دې ملا هم زخمي ده او د دې په پښو كي سوري دي نو مهرباني وكه ماته يوه اوښه راكړه حضرت عمر ﷺ د ده په جواب كي قسم وخوړئ چي ته دروا غ وايې او د اوښې د وركولو څخه يې انكار و كړئ اعرابي چي دا واورېدل نو روان سو او د خپلي اوښې په شا پسي وه په سخته ډبرينه مځكه كي روان وو او دا شعر يې د ځانه سره وايي: "أَقْسَمَ بِاللهِ أَبُوْ حَفْصٍ عُمَرْ. مَا مَسَّهَا مِنْ نَقَبٍ وَلَا دَبَرٍ اِغْفِرْلَهُ اَللّٰهُمَّ اِنْ كَانَ فَجَرٍ": ترجمه: حضرت عمر ﷺ قسم خوړلى دئ چي د دې پښې نه سورى مسح كړى دي او نه د دې ملا زخم مسح كړى ده اى الله كه چيري ده ناحقه قسم خوړلى وي نو ده ته مغفرت وكړې اتفاقا حضرت عمر ﷺ د يو شلي څخه راپورته كېدئ كله چي يې دا واورېدل نو يې و فرمايل اى الله ته دا اعرابي رشتونى كړې، ځكه اعرابي د حضرت عمر ﷺ مغفرت مشروط كړى وو كه چيري ده ناحقه قسم خوړلي وو نو ته د ده مغفرت و كړې نو كه چيري اعرابي رشتيا ګويه سي نو د حضرت عمر ﷺ قسم به ناحقه سي نو د حضرت عمر ﷺ مغفرت به وسي كله چي حضرت عمر ﷺ د ده اوښه وليده نو اعرابي يې رشتيا ګوڼى پيدا كړئ بيا يې يو اوښ او يو څه د لارې توښه يې ور كړه او رخصت يې كړئ. (نصر الخبير)

(١) پاته سو د علامه زمخشري "مَقَامُ إِبْرَاهِيمَ" د "فِيهِ آيَاتٌ بَيِّنَاتٌ" څخه عطف بيان جوړول د نحاتو د اجماع خلاف دي ځكه د بصريين او كوفيين اجماع ده چي معرفه د نكره څخه عطف بيان نسي واقع كېداى داغه رنګه مفرد د جمع څخه عطف بيان نسي واقع كېداى. (ضوابط نحويه)

۳. دریم فرق یې دا دئ: چي صفت اکثره مشتق راځي او عطف بیان اکثره جامد راځي.

د صفت او د عطف بیان په مینځ کي مابه الاشتراک:

عطف بیان او صفت په دوو (۲) شیانو کي شراکت سره لري.

۱. اول: دواړه مُوَضِّحْ او مُخَصِّصْ دي.
۲. دوهم: په دواړو کي قطع د متبوع څخه جائز ده.

## اوومه خبره:

د بدل او عطف بیان په مینځ کي فرق:

د بدل او عطف بیان په مینځ کي فرق په یو څو شیانو کي دئ:

۱. اول فرق یې دا دئ: چي عطف بیان ضمیر (۱) او تابع د ضمیر نه واقع کیږي او بدل واقع کیږي.
۲. دوهم فرق یې دا دئ: عطف بیان فعل او تابع د فعل نه واقع کیږي او بدل واقع کیږي.
۳. دریم فرق یې دا دئ: عطف بیان جمله او تابع د جملې نه واقع کیږي او بدل واقع کیږي.
۴. څلورم فرق یې دا دئ: د عطف بیان مطابقت د خپل متبوع سره په تعریف و تنکیر کي لازم دئ د بدل مطابقت نه دئ لازم.
۵. پنځم فرق یې دا دئ: عطف بیان بعینه لفظ د متبوع نسي واقع کېدای بخلاف د بدل بدل واقع کېدای سي په دې شرط چي په ده کي به بیان تر متبوع زیات وي.
۶. شپږم فرق یې دا دئ: عطف بیان په حکم د تکرار د عامل کي نسي کېدای بخلاف د بدل.
۷. اووم فرق یې دا دئ: د عطف بیان او صفت دپاره اسمیت ضروري دئ بخلاف د نورو توابع.

---

(۱) ضمیر په اتفاق سره عطف بیان نسي واقع کېدای او د بعض نحاتو په نزد باندي د ضمیر څخه عطف بیان واقع کول جائز دي لکه: د دې مثال علامه زمخشري رحمة الله علیه دا قول پېش کړی دئ "أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ" دلته "أَنِ اعْبُدُوا اللّٰهَ" ده ضمیر څخه عطف بیان واقع سوی دئ که څه هم اشموني دا قول رد کړی دئ، لېکن بعض نحاتو و دې قول ته ترجیح ورکړې ده. (اشموني)

## فائده:

د ابن عصفور او علامه زمخشري د عطف بیان دپاره دا شرط لګولی دئ چي دی به تر متبوع اعرف وي که څه هم دا خبره د علامه سبویه د تصریح خلاف ده ځکه علامه سبویه په "یَا هٰذَا الْجُمْعَةُ" کي "هٰذَا" اسم اشاره متبوع مبین جوړه کړې ده او "اَلْجُمْعَةُ" یې عطف بیان جوړ کړی دئ حالانکه اسم اشاره تر معرف باللام اوضح ده او دا خبره د قیاس هم مخالفه ده ځکه عطف بیان په منزله د نعت سره دئ او د نعت دپاره بالاتفاق اعرف والی او اخص والی نه دئ ضروري.

## جملي:

| عنوان | خبریه، انشائیه | مسند | مسند الیه | تعین حروف عامله وغیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعین معطوف، معطوف علیه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَالْتَقَطَهٗ آلُ فِرْعَوْنَ لِيَكُوْنَ لَهُمْ عَدُوًّا وَّحَزَنًا | خبریه فعلیه | (اِلْتَقَطَ) فعل | (آلُ) (فِرْعَوْنَ) فاعل | (فَ) عاطفه (لام) للعاقبة جاره (لام) جاره (وَ) عاطفه | (اِلْتَقَطَ) فعل معلوم (يَكُوْنَ) فعل ناقص | (آلُ) اسم مضاف | (آلُ) فاعل (هُوَ) اسم يكون | (هٗ) مفعول به (يَكُوْنَ) منصوب بان مقدر، (عَدُوًّا)، (حَزَنًا) خبر يَكُوْنَ | (فِرْعَوْنَ) غير منصرف مضاف اليه (لَهُمْ) جار مجرور متعلق محذوف حال مقدم من (عَدُوًّا) | (فَالْتَقَطَهٗ) معطوف على الاستئناف المقدر، (عَدُوًّا) معطوف عليه (حَزَنًا) معطوف |
| اَنِّيْٓ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّيْنِ كَهَيْئَةِ الطَّيْرِ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًا | خبریه اسمیه | (اَخْلُقُ) خبر (اِنَّ) | (ی) اسم اِنَّ | (اِنَّ) مشبه بالفعل (لام، مِنْ، كَ) جاره (فَ) عاطفه (فِ) جاره (فَ) عاطفه | (اَخْلُقُ، اَنْفُخُ) فعل معلوم (يَكُوْنُ) فعل ناقص | (هَيْئَةِ) اسم مضاف | (اَخْلُقُ، اَنَا) فاعل ضمير (اَنْفُخُ) فعل مضارع (اَنَا) فاعل (يَكُوْنُ) (هُوَ) اسم معطوف على اَخْلُقُ | (طَيْرًا) خبر فعل ناقص (يْ) محلا منصوب اسم (اِنَّ) | (كُمْ، الطِّيْنِ) مجرور بحرف الجر متعلق (اَخْلُقُ)، (هَيْئَةِ) مجرور بحرف الجر متعلق محذوف (الطَّيْرِ) مضاف اليه (ه) مجرور بحرف الجر متعلق (اَنْفُخُ) | (اَخْلُقُ) معطوف عليه (فَاَنْفُخُ فَيَكُوْنُ) معطوف |
| ءَاَنْتُمْ اَشَدُّ خَلْقًا اَمِ السَّمَآءُ بَنٰىهَا | انشائیه اسمیه | (اَشَدُّ) خبر | (اَنْتُمْ) مبتداء | (أَ) همزه استفهام توبیخي (اَمْ) عاطفه | (بَنٰى) فعل معلوم | (اَشَدُّ) اسم تفضيل | (اَنْتُمْ) مبتداء (اَشَدُّ) مع ضمير خبر (السَّمَآءُ) معطوف على (اَنْتُمْ) (هُوَ) فاعل | (خَلْقًا) تمیز (هَا) مفعول | | (اَنْتُمْ) معطوف عليه (السَّمَآءُ) معطوف |
| ثُمَّ قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً | خبریه فعلیه | (قَسَتْ) فعل | (قُلُوْبُكُمْ) فاعل | (ثُمَّ) عاطفه (مِنْ) جاره (فَ) [illegible] (كَ) جاره (اَوْ) عاطفه | (قَسَتْ) فعل معلوم | (قُلُوْبُ) اسم مضاف (بَعْدِ) ظرف مضاف (اَشَدُّ) اسم تفضيل تام | (قُلُوْبُ) فاعل (قَسَتْ) (هُوَ) فاعل (اَشَدُّ) (هِيَ) مبتداء (كَالْحِجَارَةِ) متعلق خبر | (قَسْوَةً) تمیز من ضمير اسم تفضيل | (كُمْ) مضاف اليه (بَعْدِ) مجرور متعلق (قَسَتْ) (ذٰلِكَ) مضاف اليه (الْحِجَارَةِ) مجرور بحرف الجر متعلق محذوف | (قَسَتْ قُلُوْبُكُمْ) معطوف على الجملة (فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ) جمله معطوف عليه (اَوْ اَشَدُّ قَسْوَةً) معطوف |

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ و غیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین معطوف و معطوف علیہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّا هَدَيْنَاهُ السَّبِيلَ إِمَّا شَاكِرًا وَإِمَّا كَفُورًا | خبریہ اسمیہ | (هَدَيْنَا) خبر (إِنَّ) | (نَا) اسم (إِنَّ) | (إِنَّ) مشبہ بالفعل (إِمَّا) تفصیلیہ (وَ) زائدہ (إِمَّا) تفصیلیہ عاطفہ | (هَدَيْنَا) فعل معلوم | (شَاكِرًا) اسم فاعل (كَفُورًا) اسم مبالغہ عامل فی ضمیرہ (هُوَ) | (هَدَيْنَا) خبر إن (هُوَ) فاعل الصفة | (هُ) مفعول اول (السَّبِيلَ) مفعول ثانی (شَاكِرًا) حال (كَفُورًا) معطوف | + | (شَاكِرًا) معطوف علیہ (كَفُورًا) معطوف |
| مَاتَ النَّاسُ حَتَّى الْأَنْبِيَاءُ | خبریہ فعلیہ | (مَاتَ) فعل | (النَّاسُ) فاعل | (حَتَّى) عاطفہ | (مَاتَ) فعل معلوم | + | (أَلنَّاسُ) فاعل (الْأَنْبِيَاءُ) معطوف | + | + | (أَلنَّاسُ) معطوف علیہ (الْأَنْبِيَاءُ) معطوف۔ |
| وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَنُ وَلَدًا سُبْحَانَهُ بَلْ عِبَادٌ مُكْرَمُونَ | خبریہ فعلیہ | (قَالُوا) فعل | (هُمْ) یا (واو) فاعل | (وَ) استینافیہ (بَلْ) عاطفہ للاضراب | (اتَّخَذَ) متعدی بہ مفعول (قَالُوا) (نُسَبِّحُ) مقدر فعل معلوم | (سُبْحَانَ) اسم مضاف (مُكْرَمُونَ) اسم مفعول | (هُمْ) فاعل (قَالُوا) (الرَّحْمَنُ) فاعل (اتَّخَذَ) (نَحْنُ) فاعل (نُسَبِّحُ) مقدر (هُمْ) مبتدء محذوف (عِبَادٌ) خبر (مُكْرَمُونَ) صفت | (وَلَدًا) مفعول ثانی (الْمَلَائِكَةَ) محذوف مفعول اول (اتَّخَذَ) (الرَّحْمَنُ) فی محل النصب مقولہ قول | (هُ) مضاف الیہ | (وَقَالُوا اتَّخَذَ الرَّحْمَنُ وَلَدًا) معطوف علیہ (عِبَادٌ مُكْرَمُونَ) معطوف |
| جَاءَ سَعِيدٌ لَا خَالِدٌ | خبریہ فعلیہ | (جَاءَ) فعل | (سَعِيدٌ) فاعل | (لَا) عاطفہ | (جَاءَ) فعل معلوم | + | (سَعِيدٌ) فاعل (خَالِدٌ) معطوف | + | + | (سَعِيدٌ) معطوف علیہ (خَالِدٌ) معطوف |
| مَا كَانَ مُحَمَّدٌ أَبَا أَحَدٍ مِنْ رِجَالِكُمْ وَلَكِنْ رَسُولَ اللَّهِ | خبریہ فعلیہ | (أَبَا أَحَدٍ) خبر (كَانَ) | (مُحَمَّدٌ) اسم (كَانَ) | (مَا) نافیہ (وَ) زائدہ (لَكِنْ) عاطفہ عند ابن عصفور (مِنْ) جارہ | (كَانَ) فعل ناقص (كَانَ) محذوف بعد (لَكِنْ) | (أَبَا) (رِجَالِ) (رَسُولَ) اسم مضاف | (مُحَمَّدٌ) اسم (كَانَ) (هُوَ) اسم (كَانَ) مقدر | (أَبَا) خبر فعل ناقص (رَسُولَ) معطوف | (أَحَدٍ، كُمْ) (اللَّهِ) مضاف الیہ (رِجَالِ) مجرور بحرف الجر متعلق بمحذوف صفت لأحد | (أَبَا أَحَدٍ) معطوف علیہ (رَسُولَ اللَّهِ) معطوف |
| كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ | انشائیہ فعلیہ | (تَكْفُرُونَ) فعل | (أَنْتُمْ) واو فاعل | (بِ) جارہ ظرف لغو متعلق (بِتَكْفُرُونَ) | (تَكْفُرُونَ) فعل | (كَيْفَ) استفہام تعجب لیس للشرط غیر عامل | (تَكْفُرُونَ) فعل مضارع مرفوع (م) ضمیر (أَنْتُمْ) (واو) فاعل | (كَيْفَ) مبنی محلا حال من ضمیر (تَكْفُرُونَ) | (اللَّهِ) مجرور بحرف الجر متعلق (تَكْفُرُونَ) | (كَيْفَ تَكْفُرُونَ بِاللَّهِ) جملہ مستانفہ لا محل لہا من الاعراب (كَيْفَ تَكْفُرُونَ) معطوف علیہ |
| وَكُنْتُمْ أَمْوَاتًا | خبریہ اسمیہ | (أَمْوَاتًا) خبر (كَانَ) | (تُمْ) اسم (كَانَ) | (وَ) حالیہ غیر عاملہ | (كُنْ) فعل ناقص | + | (تُمْ) مرفوع محلا اسم (كَانَ) | (أَمْوَاتًا) خبر كَانَ | + | (وَكُنْتُمْ أَمْوَاتًا) جملہ فی محل النصب مع تقدیر (قَدْ) (وَكُنْتُمْ أَمْوَاتًا) معطوف علیہ |
| فَأَحْيَاكُمْ | خبریہ فعلیہ | (أَحْيَا) فعل | (هُوَ) فاعل | (فَ) عاطفہ غیر عاملہ | (أَحْيَى) فعل معروف | + | (هُوَ) فاعل | (كُمْ) منصوب محلا مفعول بہ | + | (فَأَحْيَاكُمْ) فی محل النصب معطوف |
| ثُمَّ يُمِيتُكُمْ | خبریہ فعلیہ | (يُمِيتُ) فعل | (هُوَ) فاعل | (ثُمَّ) عاطفہ غیر عاملہ | (يُمِيتُ) فعل معروف | + | (هُوَ) فاعل | (كُمْ) منصوب محلا مفعول بہ | + | (فَأَحْيَاكُمْ) معطوف علیہ (يُمِيتُكُمْ) جملہ فی محل النصب معطوف |

| عنوان | خبریہ انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین معطوف ومعطوف علیہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ثُمَّ يُحْيِيكُمْ | خبریہ فعلیہ | (يُحْيِي) فعل | (هُوَ) فاعل | (ثُمَّ) عاطفہ غیر عاملہ | (يُحْيِي) فعل معروف | + | (هُوَ) فاعل | (كُمْ) منصوب محلا مفعول بہ | + | (يُمِيتُكُمْ) معطوف علیہ (ثُمَّ يُحْيِيكُمْ) فی محل النصب معطوف |
| ثُمَّ إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ | خبریہ فعلیہ | (تُرْجَعُونَ) فعل | (أَنْتُمْ، وَاوْ) فاعل | (ثُمَّ) عاطفہ غیر عاملہ (إِلَى) جارہ | (تُرْجَعُونَ) فعل معروف | + | (أَنْتُمْ وَاوْ) فاعل | + | (هٗ) مجرور محلا ظرف لغو متعلق (يُرْجَعُونَ) | (ثُمَّ يُحْيِيكُمْ) معطوف علیہ (تُرْجَعُونَ) فی محل النصب معطوف |

# التمرين:

”فَوَكَزَهُ مُوسَى فَقَضَى عَلَيْهِ،، أَفْتَرَى عَلَى اللهِ كَذِبًا أَمْ بِهِ جِنَّةٌ،، وَلَا تَسْأَمُوا أَنْ تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَى أَجَلِهِ،، ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ثُمَّ نَظَرَ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ،، أَمْ يَقُولُونَ بِهِ جِنَّةٌ بَلْ جَاءَهُمْ بِالْحَقِّ،، إِنَّا رَادُّوهُ إِلَيْكِ وَجَاعِلُوهُ مِنَ الْمُرْسَلِينَ،، اَلْعَدَدُ إِمَّا زَوْجٌ وَإِمَّا فَرْدٌ،، غَلَبَكَ النَّاسُ حَتَّى الصِّبْيَانَ،، قَامَ بَكْرٌ لٰكِنْ خَالِدٌ لَمْ يَقُمْ،، خُذِ الْكِتَابَ لَا الْقَلَمَ“.

# جملي:

| عنوان | خبریہ انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین مبین و عطف بیان |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| مِنْ وَرَائِهِ جَهَنَّمُ وَيُسْقَى مِنْ مَاءٍ صَدِيدٍ | خبریہ ظرفیہ | (مِنْ وَرَائِهِ) باعتبار متعلق خبر مقدم (يُسْقَى) فعل | (جَهَنَّمُ) مبتداء (هُوَ) نائب فاعل | (مِنْ) جارہ (وَ) عاطفہ (مِنْ) جارہ | (يُسْقَى) فعل مجہول | (ثَابِتٌ) اسم فاعل (هُوَ) فاعلہ (وَرَاءَ) اسم مضاف (صَدِيدٍ) صیغہ صفت | (مِنْ وَرَائِهِ) محلا خبر (جَهَنَّمُ) مبتداء (هُوَ) نائب فاعل | + | (وَرَاءِ) مجرور عرف الجر ظرف مستقر متعلق (ثَابِتٌ) (ہٖ) مضاف الیہ (مَاءٍ) مجرور متعلق (يُسْقَى) (صَدِيدٍ) صفت | (مَاءٍ) مبین یا مبدل منہ (صَدِيدٍ) عطف بیان یا بدل |
| وَإِلَى عَادٍ أَخَاهُمْ هُودًا | خبریہ فعلیہ | (أَرْسَلْ) فعل محذوف | (نَا) فاعل | (وَ) عاطفہ (إِلَى) جارہ | (أَرْسَلْ) فعل معروف | (أَخَا) اسم مضاف | (نَا) فاعل | (أَخَاهُمْ) مفعول للفعل المحذوف (أَرْسَلْنَا) (هُودًا) بدل منہ | (عَادٍ) مجرور ظرف مستقر متعلق (بِأَرْسَلْنَا) محذوف (هُمْ) مضاف الیہ | (أَخَا) مبین یا مبدل منہ (هُودًا) عطف بیان یا بدل یہ منقولا کل لہا من الاعراب |
| ذَلِكَ الْكِتَابُ لَا رَيْبَ فِيهِ هُدًى لِلْمُتَّقِينَ | خبریہ اسمیہ | (لَا رَيْبَ فِيهِ) خبر اول (هُدًى لِلْمُتَّقِينَ) خبر ثانی | (ذَلِكَ الْكِتَابُ) مبتداء | (لِ) للبعد (كَ) للخطاب (لَا) نافیہ للجنس (فِي، لَامْ) جارہ | + | (ذَا) اسم اشارہ غیر عامل (هُدًى) بمعنی (الْهَادِي) (الْمُتَّقِينَ) اسم فاعل عامل فی ضمیرہ | (ذَلِكَ) مرفوع محلا مبتداء (لَا رَيْبَ فِيهِ) خبر اول (هُدًى لِلْمُتَّقِينَ) خبر ثانی | (رَيْبَ) مبنی بر فتح فی محل النصب | (ہٖ) مجرور ظرف مستقر متعلق محذوف (لِلْمُتَّقِينَ) مجرور متعلق (بِهُدًى) او محذوف نعت لہ | (ذَلِكَ) مبین (الْكِتَابُ) عطف بیان جملۃ لا محل لہا من الاعراب ابتدائیہ |

| عنوان | خبریہ انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین مبین و عطف بیان |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| قَالَ سَيِّدُنَا مُحَمَّدٌ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ | خبریہ فعلیہ | (قَالَ) فعل | (سَيِّدُنَا) فاعل | (عَلَى) جارہ (وَ) عاطفہ | (قَالَ، صَلَّى، سَلَّمَ) فعل معروف | (سَيِّدُ) اسم مضاف | (سَيِّدُنَا) فاعل (مُحَمَّدٌ) عطف بیان (اَللهُ) فاعل (هُوَ) فاعل | + | (نَا) مضاف الیہ (هٖ) مجرور متعلق (صَلَّى) | (سَيِّدُنَا) مبین (مُحَمَّدٌ) عطف بیان |
| جَاءَ عَبْدُاللهِ اَبُو الْبَرَكَاتِ | خبریہ فعلیہ | (جَاءَ) فعل | (عَبْدُاللهِ) فاعل | + | (جَاءَ) فعل معلوم | (اَبُوْ) (عَبْدُ) اسم مضاف | (عَبْدُ) فاعل (اَبُوْ) عطف بیان | + | (اَللهِ، اَلْبَرَكَاتِ) مضاف الیہ | (عَبْدُاللهِ) مبین (اَبُوْ الْبَرَكَاتِ) عطف بیان |
| أَوْ كَفَّارَةٌ طَعَامُ مَسَاكِيْنَ | خبریہ ظرفیہ | (عَلَيْهِ) محذوف خبر مقدم باعتبار متعلق | (كَفَّارَةٌ) مبتداء مؤخر | (أَوْ) عاطفہ | + | (طَعَامُ) اسم مضاف | (عَلَيْهِ) محذوف باعتبار متعلق خبر مقدم (كَفَّارَةٌ) مبتداء (طَعَامُ) عطف بیان | + | (مَسَاكِيْنَ) جمع منتہی الجموع غیر منصرف فیہ الجر تابع للنصب | (كَفَّارَةٌ) مبین (طَعَامُ) عطف بیان |
| وَالصَّلَاةُ عَلَى رَسُوْلِهٖ مُحَمَّدٍ | خبریہ اسمیہ | (عَلَى رَسُوْلِهٖ) باعتبار متعلق خبر | (الصَّلَاةُ) مبتداء | (وَ) عاطفہ (عَلَى) جارہ | + | (رَسُوْلِ) اسم مضاف | (اَلصَّلَاةُ) مبتداء (عَلَى رَسُوْلِهٖ) باعتبار متعلق خبر | + | (رَسُوْلِ) مجرور متعلق بمحذوف (هٖ) مضاف الیہ (مُحَمَّدٍ) عطف بیان | (رَسُوْلِ) مبین (مُحَمَّدٍ) عطف بیان |
| غَضِبَ الْكَلِيْمُ مُوْسٰى عَلَيْهِ السَّلَامُ | خبریہ فعلیہ | (غَضِبَ) فعل | (الْكَلِيْمُ) فاعل | (عَلَى) جارہ | (غَضِبَ) فعل معلوم | + | (اَلْكَلِيْمُ) فاعل (مُوْسٰى) عطف بیان (عَلَيْهِ) باعتبار متعلق خبر مقدم (اَلسَّلَامُ) مبتداء | + | (هٖ) مجرور متعلق بمحذوف | (اَلْكَلِيْمُ) مبین (مُوْسٰى) عطف بیان |
| جَاءَ عَالِمٌ زَيْدٌ | خبریہ فعلیہ | (جَاءَ) فعل | (عَالِمٌ) فاعل | + | (جَاءَ) فعل معلوم | + | (عَالِمٌ) فاعل (زَيْدٌ) عطف بیان | + | + | (عَالِمٌ) مبین (زَيْدٌ) عطف بیان |
| إِمَامُنَا النُّعْمَانُ أَبُوْ حَنِيْفَةَ | خبریہ اسمیہ | (النُّعْمَانُ) خبر | (إِمَامُنَا) مبتداء | + | + | (أَبُوْ) (إِمَامُ) اسم مضاف | (إِمَامُنَا) مبتدء (اَلنُّعْمَانُ) خبر (اَبُوْ حَنِيْفَةَ) عطف بیان | + | (نَا) (حَنِيْفَةَ) مضاف الیہ غیر منصرف تانیث لفظی، علمیت | (اَلنُّعْمَانُ) مبین (اَبُوْ حَنِيْفَةَ) عطف بیان |

## التمرین:

"آمَنَّا بِرَبِّ الْعَالَمِيْنَ، رَبِّ مُوْسٰى وَهَارُوْنَ، هٰذَا عَلِيٌّ زَيْنُ الْعَابِدِيْنَ، جَاءَ سَيْفُ اللهِ خَالِدُ بْنُ الْوَلِيْدِ، قَالَ عَبْدُالرَّحْمٰنِ اَبُوْ هُرَيْرَةَ، ذَهَبَ عُثْمَانُ ذُو النُّوْرَيْنِ، هٰذَا عَسْجَدٌ اَیْ ذَهَبٌ، جَاءَ زَيْدٌ اَبُوْ حَارِثٍ، وَإِلٰى ثَمُوْدَ أَخَاهُمْ صَالِحًا".

فصل دوم در منصرف و غیر منصرف الخ.......................الی قوله بحث مستثنیٰ.

**ترجمه:**

دوهم فصل د منصرف او غیر منصرف په بیان کي دئ.
منصرف هغه دئ چي په ده کي یو سبب د اسبابو څخه د منع صرفي نه وي. او غیر منصرف هغه دئ چي په ده کي دوه سببه د اسبابو څخه د منع صرفي وي، (یا یو سبب چي قائم مقام د دوو سببو وي).
اسباب د منع صرفي نه (۹) دي: عدل، وصف، تانیث، معرفه، عجمه، جمع، ترکیب، وزن فعل، الف و نون زائدتان.
چنانچه په "عُمَرُ" کي عدل او علمیت دئ، او "ثُلٰثَ مَثْلَثَ" کي وصف او عدل دئ، په "طَلْحَةُ" کي تانیث لفظي او علمیت دئ، په "زَیْنَبُ" کي تانیث معنوي او علمیت دئ، په "حُبْلٰی" کي تانیث دئ په الف مقصوره سره، او په "حَمْرَاءُ" کي تانیث دئ په الف ممدوده سره، او دا تانیث یواځي د دوو سببو قائم مقام دئ، په "اِبْرَاهِیْمُ" کي عجمه او علمیت دئ، په "مَسَاجِدُ" او "مَصَابِیْحُ" کي جمع منتهی الجموع ده چي قائم مقام د دوو سببو ده، او په "بَعْلَبَکَ" کي ترکیب او علمیت دئ، په "اَحْمَرُ" کي وزن فعل او علمیت دئ، په "سَکْرَانُ" کي الف و نون زائدتان او وصف دئ، په "عُثْمَانُ" کي الف و نون زائدتان او علمیت دئ. د غیر منصرف نور تحقیق به د نورو کتابو څخه معلوم سي.
فصل سوم در حروف غیر عامله:

**ترجمه:**

دریم فصل د حروف غیر عامله په بیان کي دئ، او هغه شپاړس (۱٦) قسمه دي:
اول حروف تنبیه، هغه دري (۳) دي: "اَلَا. اَمَا. هَا". دوهم حروف ایجاب، هغه شپږ (٦) دي: "نَعَمْ. بَلٰی. اَجَلْ. اِیْ. جَیْرِ. اِنَّ". دریم حروف تفسیر دي، هغه دوه (۲) دي: "اَیْ. اَنْ"، لکه د الله تعالی په دې قول کي: "وَنَادَیْنَاهُ أَنْ یَا إِبْرَاهِیمُ" څلورم حروف مصدریه دي، هغه دري (۳) دي: "مَا. اَنْ. اَنَّ". او دوی پر فعل داخلیږي، دپاره د دې چي فعل په تاویل د مصدر و ګرځوي. پنځم حروف تحضیض دي، هغه څلور (۴) دي: "الا. هَلَّا. لَوْلَا. لَوْمَا". شپږم حرف توقع دئ، هغه یواځي "قَدْ"

دئ. "قَدْ" د تحقیق دپاره راځي پر ماضي باندي او ماضي حال ته قریب کوي او په مضارع کي د قلت دپاره استعمالیږي. اووم حروف استفهام دي، هغه درې (۳) دي: "مَا. هَمْزَة. هَلْ". اتم حرف ردع دئ، هغه یوائې "كَلَّا" دئ. د راګرځول او بندولو په معنی دئ، او داغه رنګه د "حَقًّا" په معنی هم استعمالیږي، لکه "كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ". نهم تنوین دئ، او تنوین پر پنځه (۵) قسم دئ: تنوین تمکن لکه: "زَيْدًا" تنوین تنکیر لکه: "صَهٍ" یعني "اُسْكُتْ سُكُوْتًا مَّا فِي وَقْتٍ مَّا" (یعني په یو وخت د وختو کي خو یو څه خاموشه سه!)، تنوین عوض لکه: "يَوْمَئِذٍ"، تنوین مقابله لکه: "مُسْلِمَاتٌ"، تنوین ترنم چي د اشعارو په آخر کي راځي لکه: "اَقِلِّي اللَّوْمَ عَاذِلَ وَالْعِتَابَنْ وَ قُوْلِي اِنْ اَصَبْتُ لَقَدْ اَصَابَنْ"، دا تنوین په اسم، فعل او حرف درو سرو کي را تلای سي، هغه اول یوائې په اسم کي راځي. لسم نون تاکید دئ، هغه د فعل مضارع په آخر کي راځي ثقیله وي او که خفیفه وي، لکه "اِضْرِبَنَّ. اِضْرِبَنْ". یوولسم حروف زیادت دي، هغه اته (۸) دي، "اِنْ. اَنْ. مَا. لَا. مِنْ. كاف. بَا. لَام" د دې آخري څلورو تذکره په حروف جاره وو کي سوې ده. دولسم حروف شرط دي، هغه دوه (۲) دي، "اَمَّا. لَوْ" اَمَّا د تفسیر دپاره راځي او "فَا" د ده په جواب کي ضرور وي، لکه: "فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا فَفِي النَّارِ. وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ" او "لَوْ" د انتفاء د ثاني دپاره راځي په سبب د انتفاء د اول، لکه: "لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللهُ لَفَسَدَتَا". دیارلسم "لَوْلَا" دئ، او دی وضع سوی دئ دپاره د انتفاء د ثاني د وجه د وجود د شي اول، لکه: "لَوْلَا عَلِيٌّ لَهَلَكَ عُمَرُ". څوارلسم "لَامْ" مفتوحه دئ، دا د تاکید دپاره استعمالیږي، لکه "لَزَيْدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍو". پنځلسم "مَا" بمعنی "مَادَامَ" دئ، لکه: "اَقُوْمُ مَا جَلَسَ الْاَمِيْرُ". شپاړسم حروف عطف دي، هغه لس (۱۰) دي: "وَاو. فَا. ثُمَّ. حَتّٰى. اَمَّا. اَوْ. اَمْ. لَا. بَلْ. لٰكِنَّ" فقط.

## الدرس الثامن و الثلاثون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

## اوله خبره:

.حروف غير عامله:

د حروف غير عامله تعريف:

حروف غير عامله هغه حروف دي چي په لفظو كي عمل نه كوي او د يو خاص معنی دپاره وضع سوي وي.

د حروف غير عامله اقسام:

حروف غير عامله پر شپاړس قسمه دي:

۱. حروف تنبيه.
۲. حروف ايجاب.
۳. حروف تفسير.
۴. حروف مصدريه.
۵. حروف تحضيض.
٦. حروف توقع.
۷. حروف استفهام.
۸. حروف ردع.
۹. تنوين.
۱۰. نون تاكيدي.
۱۱. حروف زيادت.
۱۲. حروف شرط.
۱۳. لَوْلَا.
۱۴. لام مفتوح برائ تاكيد.
۱۵. مَا بمعنی مَا دَامَ.
۱٦. حروف عطف.

## دوهمه خبره:

اول حروف تنبيه دي:

د حروف تنبيه تعريف:

حروف تنبيه هغه حروف دي چي د جملې په شروع كي د مخاطب د تنبيه دپاره راوړل كيږي دپاره د دې چي د مخاطب پوره توجه د كلام و طرف ته سي او دا حروف هيڅ عمل نه كوي.

د حروف تنبيه تعداد:

حروف تنبيه درې دانې دي: "اَلَا، اَمَا، هَا".

د حروف تنبيه مختصره تشريح:

اول "اَلَا" دئ:

"اَلَا" په لفظ کي "هَلَا" هم ويل کيږي د دې مثال لکه: "اَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ، اَلَا إِنَّ نَصْرَ اللهِ قَرِيبٌ".
او "اَلَا" د نورو (۱) معناګانو دپاره هم استعماليږي.

دوهم "اَمَا" دئ:

"اَمَا" په تلفظ کي "هَمَا، عَمَا" هم ويل کېداى سي اکثره د ده څخه وروسته قسم راځي لکه: "اَمَا وَاللهِ لَاُعَذِّبَنَّ زَيْدًا، اَمَا وَالَّذِيْ اَبْكٰى وَاَضْحٰى وَالَّذِيْ اَمَاتَ وَاَحْيٰى".

دريم "هَا" (۲) ده:

"هَا" حرف تنبيه پر اسم اشاره او پر ضمير باندي داخليږي چي کله ضمير مبتداء واقع سوى وي او د حرف نداء او د "اَيُّ" څخه وروسته يعني پر درې سره شيانو باندي داخليږي لکه: "هَا اِنَّ عَدُوَّكَ بِالْبَابِ، هٰذَا، هَا أَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ، يَا اَيُّهَا الرَّجُلُ". او په قسم کي پر لفظ د "اَللهُ" باندي هم داخليږي کله چي حرف قسم محذوف وي لکه: "هَا اَللهُ".

## دريمه خبره:

دوهم قسم حروف ايجاب دي:

د حروف ايجاب تعريف:

د ايجاب معنى ثابتول حروف ايجاب هغه حروف دي چي د هغه په ذريعه سره د يو شي اقرار يا خودي د يو شي ثابتول مقصود وي.

د حروف ايجاب تعداد:

حروف ايجاب شپږ دانې دي: "نَعَمْ، بَلٰى، اَجَلْ، جَيْرِ، اِىْ، اِنَّ". کله کله "جَلَلْ"، و"لَا" هم استعماليږي.

---

(۱) "اَلَا" کله کله د تمنى دپاره هم راځي، لکه: "اَلَا تَنْزِلُ عِنْدِيْ"، کله د توبيخ دپاره راځي، لکه: "اَلَا زَيْدٌ قَائِمٌ"، کله د عرض دپاره راځي، لکه: "اَلَا تُحِبُّوْنَ أَنْ يَغْفِرَ اللهُ لَكُمْ" کله د تحضيض دپاره راځي، لکه: "اَلَا تُقَاتِلُوْنَ قَوْمًا". (تنوير)

(۲) "ها" اسم فعل په معنى د "خُذْ" سره هم راځي، او د دې تلفظ په الف مقصوره (يعني ها) او الف ممدوده (يعني هاء) دواړو سره کيږي، او د دې په آخر کي کاف خطاب هم ملحق کيږي، لکه: "هَاكَ، هَاءَكَ".
"هَا" واحد مذکر مؤنث، "هَاءُمَا" تثنيه، "هَاءُمْ" جمع مذکر مؤنث، لکه "هَاءُمُ اقْرَءُوْا كِتَابِيَهْ". (تنوير)

د حروف ایجاب مختصره تشریح:

اول "نَعَمْ" دئ:

د "نَعَمْ" د استعمال صورتونه:

"نَعَمْ" معنی (وه) د کلام سابق د تصدیق دپاره راځي که چیري کلام سابق مثبت وي نو بیا په "نَعَمْ" سره د هغه کلام د مثبت والي تاکید راځي لکه: یو څوک پوښتنه وکړي "اَشَرِبَ زَیْدٌ" نو په جواب کي "نَعَمْ" ورته وویل سي او که چیري کلام منفي وي نو بیا په "نَعَمْ" سره د کلام د منفي والي تاکید راځي لکه: څوک وایي: "اَمَا جَاءَ خَالِدٌ" نو په جواب کي "نَعَمْ" ورته استعمال سي.

دوهم "بَلٰی" دئ:

د "بَلٰی" د استعمال صورتونه:

د "بَلٰی" معنی (ولي نه) "بَلٰی" د منفي [1] کلام په جواب کي راځي دپاره د نفي د باطلولو او لیري کړلو او د کلام د مثبت جوړولو دپاره راځي لکه: "اَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلٰی، زَعَمَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَن لَّن يُبْعَثُوا قُلْ بَلٰى وَرَبِّي".

دریم "اَجَلْ، جَيْرِ، اِنَّ" [2] دي:

د "اَجَلْ، جَيْرِ، اِنَّ" د استعمال طریقه:

د دې درې سره حروفو استعمال د "نَعَمْ" په شان دئ او دوی د جملې خبریې په شروع کي د تاکید و تصدیق دپاره راځي لکه: "هَلْ فَازَ سُلَيْمٰنُ فِي الْاِمْتِحَانِ". په جواب کي "اَجَلْ. جَيْرِ. اِنَّ" درې سره استعمالیږي بل مثال لکه: د یو سړی دا قول "لَعَنَ اللهُ نَاقَةً حَمَلَتْنِي اِلَيْكَ" عبد الله ابن زبیر په جواب کي ورته وویل "اِنَّ وَرَاكِبُهَا".

څلورم "اِيْ" دئ:

---

(1) "بَلٰی" په "بَلٰی" کي الف اصلي دئ لیکن عند البعض زائد دئ؛ ځکه دا په اصل کي "بَلْ" دئ.

(2) "اَجَلْ" د بعض نحاتو په نزد باندي په خبر پوري خاص دئ، لیکن د اخفش په نزد باندي د خبر څخه وروسته "اَجَلْ" احسن دئ او د استفهام څخه وروسته "نَعَمْ" بهتر دئ. "جَيْرِ" د "اَمْسِ" او "كَيْفَ" دواړو پر وزن باندي صحیح دئ. (همع الهوامع)

د "إِیْ" د استعمال طریقه:

"إِیْ" په معنی د (بلې) سره راځي د کلام سابق د ثابتولو دپاره د استفهام په جواب کې راځي او د ده څخه وروسته جمله قسمیه بطور تاکید راوړل کیږي لکه: څوک ووايي: "هَلْ كَتَبَ زَيْدٌ" نو په جواب کې وویل سي "إِیْ وَاللهِ".

## څلورمه خبره:

دریم قسم حروف تفسیر دي:

د حروف تفسیر تعریف:

حروف تفسیر هغه حروف دي چې د هغه په وجه د یو شي ابهام لیري کیږي یا د یو اجمال وضاحت کیږي.

د حروف تفسیر تعداد:

حروف تفسیر دوه (۲) داني دي: "أَیْ. أَنْ".

د حروف تفسیر مختصره تشریح:

اول "أَیْ" دئ:

د "أَیْ" د استعمال طریقه:

"أَیْ" په معنی د (یعني) سره راځي لکه: "جَاءَنِيْ أَبُوْ حَامِدٍ أَیْ أَحْمَدُ" او کله کله دی د جمله د تفسیر دپاره هم استعمالیږي لکه: "قُطِعَ رِزْقُهُ أَیْ مَاتَ" او د ده مابعد په ترکیب کې عطف بیان یا بدل واقع کیږي معطوف نه واقع کیږي.

دوهم "أَنْ" دئ:

د "أَنْ" د استعمال طریقه:

د "أَنْ" د استعمال دپاره شرط دا دئ چې دی به د دوو جملو په مینځ کې وي او دی د هغه فعل د تفسیر دپاره راځي چې په معنی د قول سره وي یعني د اولي جملې معنی به د قول وي لکه: "وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ".

## پنځمه خبره:

ځلورم قسم حروف مصدريه دي:

د حروف مصدريه تعريف:

حروف مصدريه هغه حروف دي چي خپل مدخول په تاويل د مصدر سره اړوي.

د حروف مصدريه تعداد:

حروف مصدريه درې (۳) دانې دي: "مَا" (۱) "اَنْ" (۲) "اَنَّ" (۳).

د حروف مصدريه مختصره تشريح:

د "مَا" او د "اَنْ" د استعمال طريقه:

"مَا وَاَنْ" دواړه پر جمله فعليه داخليږي فعل په تاويل د مصدر سره اړوي لکه: "ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ اَىْ بِرَحْبِهَا، اَعْجَبَنِيْ اَنْ تَضْرِبَ زَيْدًا اَىْ ضَرْبُکَ زَيْدًا".

د "اَنَّ" د استعمال طريقه: "اَنَّ" پر جمله اسميه داخليږي په تاويل د مصدر سره يې اړوي، لکه: "اَعْجَبَنِيْ اَنَّکَ غَائِبٌ اَىْ غَيْبُوْبَتُکَ يا غَيَابُکَ".

پنځم قسم حروف تحضيض دي:

د حروف تحضيض تعريف:

د تحضيض معنى ده برانګيخته کول حروف تحضيض هغه حروف دي چي د هغه په ذريعه سره مخاطب پر يو کار باندي برانګيخته کيږي يا د يو کار ترغيب ور کول کيږي يا د زجر او توبيخ چون وچرا د پاره د کلمې په شروع کي راوړل کيږي.

د حروف تحضيض تعداد:

حروف تحضيض ځلور (۴) دانې دي: "اَلَا، هَلَّا، لَوْلَا، لَوْمَا" د دې ټولو لغوي معنى ده (ولي نه).

د حروف تحضيض د استعمال طريقه:

---

(۱) "مَا" مصدريه پر دوه قسمه دئ: اول زمانيه لکه: "مَا دُمْتُ حَيًّا" په دې شرط چي دى به پخپله د ظرفيت پر معنى دلالت نه کوي ورنه بيا "مَا" اسميه وي. دوهم غير زمانيه لکه: "عَزِيْزٌ عَلَيْهِ مَا عَنِتُّمْ".

۲ "اَنْ" پر ماضي او مضارع دواړو باندي داخليږي په تاويل د مصدر سره يې اړوي لېکن عمل صرف په مضارع کي کوي.

۳ "اَنَّ" مشدد يا مخفف په هر صورت کي خپل مدخول په تاويل د مصدر سره اړوي او په دواړو صورتو کي عمل کوي. (تنوير)

که چيري دا حروف پر ماضي باندي داخل سي نو بيا دوی د زجر و توبيخ فائده ور کوي لکه: "هَلَّا شَقَقْتَ قَلْبَهُ. اَلَا حَفِظْتَ الدَّرْسَ" او که چيري دوی پر مضارع باندي داخل سي نو بيا د دوی په ذريعه سره ترغيب او برانګيخته کول مقصود وي لکه: "هَلَّا تفُوْزُ بِالشَّرْفِ الْاَوَّلِ. اَلَا تَنْزِلُ بِنَا فَتُصِيْبَ خَيْرًا" او د حروف تحضيض څخه وروسته اکثره جوابي جمله راځي پر هغه باندي "فَا" داخليږي او د ده څخه وروسته فعل مضارع منصوب ويل کيږي.

## شپږمه خبره:

شپږم قسم حروف توقع دي:
د حروف توقع تعريف:
حروف توقع صرف "قَدْ" دئ او "قَدْ" د پنځو معناؤ دپاره راځي:

١. اوله معنٰی: توقع يعني "اُمَيْد" عام طور په دې صورت کي دی پر مضارع باندي راځي لکه: "قَدْ يَقْدُمُ الْغَائِبُ الْيَوْمَ" توقع ده چي غائب به نن ورځ راسي.
٢. دوهمه معنٰی: تحقيق لکه: "قَدْ أَفْلَحَ الْمُؤْمِنُوْنَ.. قَدْ أَفْلَحَ مَنْ تَزَكّٰى.. قَدْ يَعْلَمُ اللهُ" په تحقيق سره الله تعالی يې پېژني.
٣. دريمه معنٰی: تقريب يعني ماضي حال ته رانژدې کوي لکه "قَدْدُقَّ الْجَرَسُ" اوس داغه دئ کهنټې و ټکول سوه، "قَدْ قَامَ زَيْدٌ".
۴. څلورمه معنی: تقليل: تقليل خواه که په فعل کي وي لکه: "قَدْ يَصْدُقُ الْكَذُوْبُ قَد يَجُوْدُ الْبَخِيْلُ" بخيل کله کله سخا کوي يا په متعلق د فعل کي وي لکه: "قَدْ يَعْلَمُ مَا أَنْتُمْ عَلَيْهِ".
۵. پنځمه معنی: د تقصير دپاره لکه: "قَدْ نَرٰی تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ".

**اوومه خبره:**

اووم قسم حروف استفهام(۱) دي:

د حروف استفهام تعریف:

استفهام په لغت کې پوښتنه ته ویل کیږي او په اصطلاح کې حروف استفهام هغه حروف دي چې دوی د یو خبرې د پوښتلو دپاره د جملې په شروع کې راوړل کیږي.

د حروف استفهام تعداد:

حروف استفهام درې (۳) دانې دي:

"هَلْ، مَا، أَ"، لکه: "هَلْ جَاءَ زَيْدٌ، مَاسْمُكَ، أَزَيْدٌ قَائِمٌ".

**فائده:**

کله کله "مَا" د بعض حروف جاره سره بغیر د الف څخه ویل کیږي لکه: د "لِمَا" څخه "لِمَ" او د "عَمَّا" څخه "عَمَّ" او د "فِيْمَا" څخه "فِيْمَ" ویل.

اتم حروف ردع دي:

د حروف ردع تعریف:

ردع په لغت کې انکار ته ویل کیږي یا و غندلو ته او په اصطلاح کې حرف ردع هغه حروف دي چې د سامع د یو خبرې څخه د بندولو او یا د دهمکۍ ورکولو دپاره استعمالیږي.

د حروف ردع تعداد:

حروف(۲) ردع صرف یو (۱) لفظ دئ چې "كَلَّا" دئ لکه: څوک یو پوښتنه و کړي "زَيْدٌ يُبْغِضُكَ" (زید ستا سره دښمني لري) ته په جواب کې ورته ووایې: "كَلَّا" (هیڅکله نه).

---

(۱) همزه د طلب تصور او د طلب تصدیق د دواړو دپاره راځي او "هَلْ" په طلب تصدیق پورې خاص دي او دوی په استفهام کې اصل دي او ما استفهامیه اسمیه دئ او د ده شمول په حروف کې بنا بر مسامحت دئ. (جامع الدروس العربية)

(۲) "كَلَّا" حرف ردع که چیرې په ابتداء کې راسي نو په دې کې درې (۳) قولونه دي:

۱. اول قول: د کسائي او د ده د متبعین په نزد باندې دی په معنی د "حَقًّا" سره دئ.

۲. دوهم قول: د ابو حاتم او د ده د متبعین په نزد باندې په معنی د "اِلَّا" ابتدائیه سره دئ.

د حروف ردع د استعمال طریقه:

حروف ردع د درو معناګانو دپاره استعمالیږي:

اوله معنی: د منع کولو دپاره لکه: یو څوک وایي: "هَلْ غَضِبْتَ عَلَيَّ" نو په جواب "كَلَّا" ورته وویل شي.

دوهمه معنی: د "حَقًّا" په معنٰی سره راځي لکه: "كَلَّا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَيَطْغَى. كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ" او دا خبره حق ده چي انسان سرکښه دئ.

دریمه معنی: د یو خبري د نه قبلولو دپاره استعمالیږي لکه: یو څوک وایي: "أَتَشْرَبُ الْخَمْرَ" ته ورته وایي: "كَلَّا" هیڅکله نه.

## جملي:

| عنوان | خبر، انشاء | مسند | مسند الیه | تعیین حروف عامله وغیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | حروف غیر عامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللّٰهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ | خبریه اسمیه | (لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ) الخ خبر "إِنَّ" | (أَوْلِيَاءَ اللّٰهِ) اسم "إِنَّ" | (أَلَا) حرف تنبیه (إِنَّ) مشبه بالفعل (لَا) نفي جنس [illegible] (و) عاطفه | (يَحْزَنُونَ) فعل معروف | (أَوْلِيَاءَ) اسم مضاف | (خَوْفٌ) اسم لا (هُمْ) مبتدا (يَحْزَنُونَ) خبر (و) فاعل (لَا خَوْفٌ الخ) خبر ان | (أَوْلِيَاءَ) اسم ان (عليهم) باعتبار متعلق خبر لا | (اللّٰهِ) مضاف الیه (هِمْ) مجرور [illegible] الجر متعلق محذوف | (أَلَا) حرف تنبیه [illegible] قسم (لا) زائده (و) قسم |
| هَا أَنْتُمْ هٰؤُلَاءِ حَاجَجْتُمْ فِيمَا لَكُمْ بِهِ عِلْمٌ | خبریه اسمیه | (حَاجَجْتُمْ) الخ خبر | (أَنْتُمْ) مبتدا | (هَا) حرف تنبیه (هَا) حرف تنبیه (ف، ب، ل) جاره | (حَاجَجْتُمْ) فعل معروف | + | (أَنْتُمْ) مبتدا (هٰؤُلَاءِ) معطوف [illegible] (حَاجَجْتُمْ) مرفوع محلا خبر (عِلْمٌ) مبتدا (لَكُمْ) خبر | + | (مَا) مجرور متعلق [illegible] (بِهِ) متعلق [illegible] (عِلْمٌ) | (هَا) حرف تنبیه اول قسم جمله [illegible] لها من الاعراب استئنافیه |
| أَمَا قَدْ حَانَ وَقْتُ الرَّحْلَةِ | خبریه فعلیه | (حَانَ) فعل | (وَقْتُ) فاعل | (أَمَا) حرف تنبیه (قَدْ) حرف تقریب | (حَانَ) فعل معروف | (وَقْتُ) ظرف مضاف | (وَقْتُ) فاعل | + | (الرَّحْلَةِ) مضاف الیه | (أَمَا) حرف تنبیه اول قسم (قد) حرف تقریب |

۳. دریم قول: د نضر ابن شمیل او د فراء په نزد باندي دی د "نَعَمْ" په معنی سره دئ لیکن صاحب مغنی اللبیب د ابو حاتم قول ته ترجیح ورکړي ده لکه: "كَلَّا وَالْقَمَرِ". (مغنی اللبیب د تشویر)

| عنوان | خبریہ انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | حروف غیر عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| هَلْ تَذْهَبُ؟ نَعَمْ أَنَا أَذْهَبُ | انشائیہ فعلیہ | (تَذْهَبُ) فعل (أَذْهَبُ) خبر | (أَنْتَ) فاعل (أَنَا) مبتداء | (هَلْ) حرف استفہام (نَعَمْ) حرف ایجاب | (تَذْهَبُ) فعل معروف (أَذْهَبُ) فعل معروف | + | (أَنْتَ) فاعل (أَنَا) مبتداء (أَذْهَبُ) خبر (أَنَا) فاعل | + | + | (نَعَمْ) حرف ایجاب (۲) قسم (هَلْ) حرف استفہام (۷) قسم |
| أَلَسْتُ بِرَبِّكُمْ قَالُوا بَلَى شَهِدْنَا | انشائیہ فعلیہ | (بِرَبِّكُمْ) خبر لیس (قَالُوْا) فاعل (شَهِدْنَا) | (تُ) اسم لیس (هُمْ نَا) | (أَ) استفہام (بِ) جارہ (بَلَى) حرف ایجاب | (قَالُوْا) فعل معروف (شَهِدْنَا) فعل معروف (لَيْسَ) فعل ناقص | (رَبِّ) اسم مضاف صیغہ صفت | (أَنْتَ) محذوف مبتداء (رَبُّنَا) محذوف خبر (تُ) اسم لیس (وْ) یا (هُمْ) فاعل (نَا) فاعل | (بَلَى) (أَنْتَ) (رَبُّنَا) محذوف جملہ فی محل النصب مقولہ قول | (رَبِّ) مجرور متعلق بمحذوف خبر لیس (كُمْ. نَا) مضاف الیہ | (بَلَى) حرف ایجاب (۲) قسم (أَ) حرف استفہام (۷) قسم |
| وَيَسْتَنْبِئُوْنَكَ أَحَقٌّ هُوَ قُلْ إِي وَرَبِّيْ إِنَّهٗ لَحَقٌّ | خبریہ فعلیہ | (قُلْ) (أَحَقٌّ) (يَسْتَنْبِئُوْنَ) فعل | (أَنْتَ) (هُمْ. وَاو) فاعل (هُ) | (وَ) استئنافیہ (ہمزہ) استفہامیہ (إِي) حرف ایجاب (وَ) حرف قسم (إِنَّ) مشبہ بالفعل (لَ) تاکیدیہ | (يَسْتَنْبِئُوْنَ) (قُلْ) فعل معروف (أُقْسِمُ) فعل معروف | (حَقٌّ) اسم تفضیل (رَبِّ) اسم مضاف | (يَسْتَنْبِئُوْنَ) (۳) قسم رفعہ باثبات النون (وَاو) فاعلہ (حَقٌّ) خبر (هُوَ) مبتداء (أَنْتَ) فاعل (أَنَا) فاعل (أَلْحَقُّ) خبر إن | (كَ) مفعول بہ (أَحَقٌّ. هُوَ) جملہ فی محل النصب مفعول ثانی (إِي. وَرَبِّي) فی محل النصب مقولہ قول (إِنَّهٗ لَحَقٌّ) لا محل لہا من الاعراب (هُ) اسم ان | (ىْ) مضاف الیہ | (إِي) حرف ایجاب (۲) قسم (وَاو) قسمیہ |
| أَلَمْ يَأْتِكُمْ نَبَأٌ؟ جَيْرِ أَجَلْ إِنْ أَتَى نَبَأٌ | انشائیہ فعلیہ | (يَأْتِي) فعل (أَتَى) فعل | (نَبَأٌ. نَبَأٌ) فاعل | (ہمزہ) استفہام (لَمْ) جازمہ جحدیہ (جَيْرِ. أَجَلْ. إِنْ) حروف ایجاب | (يَأْتِيْ. أَتَى) فعل معروف | + | (نَبَأٌ. نَبَأٌ) فاعل | (كُمْ) مفعول بہ | + | (جَيْرِ. أَجَلْ. إِنْ) بمعنی نعم حروف ایجاب (۲) قسم (أَ) استفہام (۷) قسم |
| فَأَوْحَيْنَا إِلَيْهِ أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ بِأَعْيُنِنَا وَوَحْيِنَا | خبریہ فعلیہ | (أَوْحَى) فعل (اِصْنَعِ) فعل | (نَا) فاعل (أَنْتَ) فاعل | (فَ) عاطفہ (إِلَى، بِ) جارہ (أَنْ) تفسیریہ (وَ) عاطفہ | (أَوْحَيْنَا. اِصْنَعْ) فعل معروف | (أَعْيُنِ. وَحْيِ) اسم مضاف | (نَا. أَنْتَ) فاعل (أَنِ اصْنَعِ الْفُلْكَ) لا محل لہا جملہ تفسیریہ | (اَلْفُلْكَ) مفعول بہ | (أَعْيُنِ) مجرور متعلق (اِصْنَعْ) (نَا. نَا) مضاف الیہ (وَحْيِ) معطوف علی (أَعْيُنِ) | (فَ. وَ) عاطفہ (۱۶) قسم (أَنْ) حرف تفسیر (۳) قسم |
| قَطَعَ رِزْقَهٗ أَيْ مَاتَ | خبریہ فعلیہ | (قَطَعَ) فعل (مَاتَ) فعل | (رِزْقُهٗ) فاعل (هُوَ) فاعل | (أَيْ) حرف تفسیر | (قَطَعَ) (مَاتَ) فعل معروف | (رِزْقُ) اسم مضاف | (رِزْقُ) [illegible]ل (هُوَ) [illegible] | + | (هٗ) مضاف الیہ | (أَيْ) حرف تفسیر (۳) قسم |
| قُلْ إِنَّمَا يُوْحٰى إِلَيَّ أَنَّمَا إِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ | انشائیہ فعلیہ | (قُلْ) فعل (يُوْحٰى) فعل مجہول | (أَنْتَ) فاعل (أَنَّمَا إِلٰهُكُمْ) الخ نائب فاعل | (إِنَّمَا) کافہ مکفوفہ (إِلَى) جارہ (أَنْ) مصدریہ (مَا) کافہ | (قُلْ) فعل معروف (يُوْحٰى) فعل مجہول | (إِلٰهُ) اسم مضاف (وَاحِدٌ) صیغہ صفت عامل فی ضمیرہ (هُوَ) فاعلہ | (أَنْتَ) فاعل (إِلٰهُكُمْ) مبتداء (إِلٰهٌ وَّاحِدٌ) موصوف وصفت خبر جملہ نائب فاعل (يُوْحٰى) | (يُوْحٰى إِلَيَّ) الخ جملہ فی محل النصب مقولہ قول | (ىَ) مجرور متعلق (يُوْحٰى) (كُمْ) مضاف الیہ | (أَنْ) حرف مصدریہ (۳) قسم جملہ لا محل لہا من الاعراب مستانفہ |

| عنوان | خبریہ، انشاء | مسند | مسند الیہ | تعیین حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | حروف غیر عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِذَا ضَاقَتْ عَلَيْهِمُ الْأَرْضُ بِمَا رَحُبَتْ | خبریہ فعلیہ | (ضَاقَتْ) فعل (رَحُبَتْ) فعل | (الْأَرْضُ) فاعل (هِيَ) فاعل | (إِذَا) ظرفیہ (عَلَى) جارہ (بِ) جارہ (مَا) مصدریہ | (ضَاقَتْ، رَحُبَتْ) فعل معلوم | + | (الْأَرْضُ) فاعل (هِيَ) فاعل | (بِمَا رَحُبَتْ) فی محل النصب حال من الارض باعتبار متعلق | (هِمْ) مجرور متعلق ضَاقَتْ (بِمَا رَحُبَتْ) [illegible] | (مَا) حرف مصدریہ (۴) قسم |
| فَمَا كَانَ جَوَابَ قَوْمِهِ إِلَّا أَنْ قَالُوا أَخْرِجُوا آلَ لُوطٍ مِنْ قَرْيَتِكُمْ | خبریہ فعلیہ | (جَوَابَ قَوْمِهِ) خبر مقدم (قَالُوا) فعل (أَخْرِجُوا) فعل | (إِلَّا أَنْ قَالُوا) اسم مؤخر (هُمْ) فاعل (أَنْتُمْ) فاعل | (فَ) استینافیہ (مَا) نافیہ (إِلَّا) ادات استثناء (أَنْ) مصدریہ (مِنْ) جارہ | (كَانَ) فعل ناقص (قَالُوا) (أَخْرِجُوا) فعل معروف | (جَوَابَ، قَوْمَ، آلَ، قَرْيَةِ) اسم مضاف | (إِلَّا أَنْ قَالُوا) جملہ بتاویل مصدر اسم كان (هُمْ) (أَنْتُمْ) فاعل | (جَوَابَ) خبر كان (أَخْرِجُوا) فی محل النصب مقولہ قول (آلَ) مفعول بہ للفعل | (قَوْمِهِ، هُ، لُوطٍ، كُمْ) مضاف الیہ (قَرْيَةِ) مجرور متعلق (اخرجوا) | (أَنْ) حرف مصدریہ (۳) قسم |
| لَوْلَا تَسْتَغْفِرُونَ اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ | انشائیہ فعلیہ | (تَسْتَغْفِرُونَ) فعل (تُرْحَمُونَ) خبر (لَعَلَّ) | (أَنْتُمْ) فاعل (كُمْ) اسم (لَعَلَّ) | (لَوْلَا) حرف تحضیض (لَعَلَّ) مشبہ بالفعل | (تَسْتَغْفِرُونَ) فعل معروف (تُرْحَمُونَ) فعل مجہول | + | (تَسْتَغْفِرُونَ) مرفوع (۳) قسم (أَنْتُمْ) فاعل (تُرْحَمُونَ) مع نائب فاعل فی محل الرفع خبر (لَعَلَّ) | (اللّٰهَ) مفعول بہ (كُمْ) اسم (لَعَلَّ) | + | (لَوْلَا) حرف تحضیض (۵) قسم جملہ لا محل لہا من الاعراب (لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ) جملہ تعلیلیہ لا محل لہا |
| لَوْ مَا تَأْتِينَا بِالْمَلَائِكَةِ إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ | انشائیہ فعلیہ | (تَأْتِي) فعل (مِنَ الصَّادِقِينَ) خبر (كُنْتَ) | (أَنْتَ) فاعل (تَ) اسم (كَانَ) | (لَوْمَا) حرف تحضیض او عرض (بِ) جارہ (إِنْ) حرف شرط جازم (مِنْ) جارہ | (تَأْتِي) فعل معروف (كُنْ) فعل ناقص | (صَادِقِينَ) اسم فاعل عامل فی ضمیرہ | (تَأْتِي) مرفوع (۳) قسم (أَنْتَ) فاعل (تَ) اسم (كَانَ) | (نَا) مفعول بہ (مِنَ الصَّادِقِينَ) فی محل النصب خبر (كَانَ) | (الْمَلَائِكَةِ) مجرور متعلق (تَأْتِينَا) (الصَّادِقِينَ) مجرور متعلق خبر محذوف خبر (كَانَ) | (لَوْمَا) حرف تحضیض (۵) قسم جملہ لا محل لہا مستانفہ (إِنْ كُنْتَ مِنَ الصَّادِقِينَ) لا محل لہا سادہ مسد جواب الشرط المحذوف |
| أَلَا تُحِبُّونَ أَنْ يَغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ | انشائیہ فعلیہ | (تُحِبُّونَ) فعل (يَغْفِرَ) فعل | (أَنْتُمْ) فاعل (اللّٰهُ) فاعل | (أَلَا) حرف تحضیض (أَنْ) مصدریہ (لَ) جارہ | (تُحِبُّونَ) (يَغْفِرَ) فعل معلوم | + | (تُحِبُّونَ) مرفوع (۳) قسم (أَنْتُمْ) فاعل (اللّٰهُ) فاعل | (يَغْفِرَ) منصوب بتاویل مصدر مفعول بہ (تُحِبُّونَ) | (كُمْ) مجرور متعلق (يَغْفِرُ) | (أَلَا) حرف تحضیض (۵) قسم (أَنْ) مصدریہ (۳) قسم |
| هَلَّا شَقَقْتَ قَلْبَهُ | انشائیہ فعلیہ | (شَقَقْتَ) فعل | (تَ) فاعل | (هَلَّا) حرف تحضیض | (شَقَقْتَ) فعل معروف | (قَلْبَ) اسم مضاف | (تَ) فاعل | (قَلْبَ) مفعول بہ | (هُ) مضاف الیہ | (هَلَّا) حرف تحضیض (۵) قسم |
| وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ | خبریہ فعلیہ | (نَصَرَ) (أَذِلَّةٌ) خبر | (اللّٰهُ) فاعل (أَنْتُمْ) مبتداء | (وَ) استینافیہ (لَ) جواب قسم محذوف (قَدْ) حرف تحقیق (بِ) جارہ (وَ) حالیہ | (نَصَرَ) فعل معروف | (أَذِلَّةٌ) صفت مشبہ جمع (ذَلِيلٌ) | (اللّٰهُ) فاعل (أَنْتُمْ) مبتداء (أَذِلَّةٌ) خبر | (كُمْ) مفعول بہ (وَأَنْتُمْ أَذِلَّةٌ) فی محل النصب حال من (كُمْ) | (بَدْرٍ) مجرور ظرف لغو متعلق (نَصَرَ) | (قَدْ) حرف تحقیق وتوقع (۶) قسم |
| قَدْ يَقْدُمُ الْغَائِبُ الْيَوْمَ | خبریہ فعلیہ | (يَقْدُمُ) فعل | (الْغَائِبُ) فاعل | (قَدْ) حرف توقع | (يَقْدُمُ) فعل معروف | (الْغَائِبُ) اسم فاعل | (الْغَائِبُ) فاعل (يَقْدُمُ) مضارع مرفوع (۱) قسم | (الْيَوْمَ) مفعول فیہ | + | (قَدْ) حرف توقع (۶) قسم |
| كَلَّا إِنَّ الْإِنْسَانَ لَيَطْغَىٰ | خبریہ اسمیہ | (لَيَطْغَىٰ) خبر (إِنَّ) | (الْإِنْسَانَ) اسم (إِنَّ) | (كَلَّا) حرف ردع (إِنَّ) مشبہ بالفعل (اللام) للتاکید | (يَطْغَىٰ) فعل معروف | + | (لَيَطْغَىٰ) خبر (إِنَّ) (هُوَ) فاعل | (الْإِنْسَانَ) اسم (إِنَّ) | + | (كَلَّا) حرف ردع (۸) قسم جملہ لا محل لہا من الاعراب مستانفہ |

## التمرين:

"هَا أَنْتُمْ أُولَاءِ تُحِبُّونَهُمْ وَلَا يُحِبُّونَكُمْ.، أَلَا تُقَاتِلُونَ قَوْمًا نَكَثُوا أَيْمَانَهُمْ.، أَمَا قَدْ جَاءَ الْأُسْتَاذُ.، قُلْ بَلَى وَرَبِّي لَتُبْعَثُنَّ.، هَلْ أَنْتَ صَائِمٌ نَعَمْ، أَجَلْ، جَيْرِ، إِنْ أَنَا صَائِمٌ.، إِيْ وَاللهِ أَنَا أَذْهَبُ إِلَى الْبَيْتِ.، وَنَادَيْنَاهُ أَنْ يَا إِبْرَاهِيمُ.، رَأَيْتُ أَسَدًا أَيْ لَيْثًا.، وَاللهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ.، سَرَّنِي أَنْ تُلَازِمَ الْفَضِيلَةَ.، عَلِمْتُ أَنَّكَ قَائِمٌ.، هَلَّا يَرْتَدُّ فُلَانٌ عَنْ غَيِّهِ.، وَمَا كُنَّا لِنَهْتَدِيَ لَوْلَا أَنْ هَدَانَا اللهُ.، مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ.، أَلَمْ تَعْلَمْ أَنَّ اللهَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ.، قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ.، قَدْ نَرَى تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ.، كَلَّا لَئِنْ لَمْ يَنْتَهِ لَنَسْفَعًا بِالنَّاصِيَةِ.، كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ ثُمَّ كَلَّا سَوْفَ تَعْلَمُونَ".

## الدرس التاسع والثلاثون:

د نن د سبق خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

نهم قسم تنوين دئ:

د تنوين تفصيلي بحث مخکي تېر سوی دئ.

د تنوين اقسام:

تنوين پر پنځه قسمه راځي:

۱. اول قسم: تنوين تمکن.
۲. دوهم قسم تنوين تنکير.
۳. دريم قسم: تنوين عوض.
۴. څلورم قسم: تنوين مقابله.
۵. پنځم قسم: تنوين ترنم.

تنوين تنکير د دري قسم اسمو په آخر کي لګيږي:

۱. اول: کله د علم په آخر کي چي کله مبني وي لکه: "سِيبَوَيْهٍ" دلته تنوين قياسي دئ.
۲. دوهم: کله د اسم فعل پر آخر باندي لکه: "صَهٍ".
۳. دريم د اسم صوت په آخر کي دا تنوين راورل هم سماعي.

تنوین عوض:

تنوین عوض کله د جملې په عوض کي راوړل سوی وي لکه: "یَوْمَئِذٍ" په اصل کي "یَوْمَ اِذْکَانَ کَذَا" وو. کله کله د یو اسم په بدله کي راوړل کیږي لکه: "قُلْ کُلٌّ یَعْمَلُ عَلٰی شَاکِلَتِهٖ" دلته د "کُلٌّ" تنوین د مضاف الیه په عوض کي راوړل سوی دئ په اصل کي "کُلُّ اِنْسَانٍ یا کُلُّ وَاحِدٍ" وو. یا تنوین د یو حرف په بدله کي راسي لکه: "جَوَارٍ" په اصل کي "جَوَارِیْ" وو.

لسم قسم نون تاکید دئ:

د نون تاکید تعریف:

نون تاکید پر دوه قسمه دئ ثقیله و خفیفه دواړهٔ د فعل مضارع په آخر کي د تاکید د معنی د پیدا کولو دپاره راځي او په لفظ کي هیڅ عمل نه کوي لکه: "لَیَضْرِبَنَّ، لِیَضْرِبَنْ".

## دوهمه خبره:

یوولسم قسم حروف زیادت دي:

د حروف زیادت تعریف:

حروف زیادت هغه حروف دي چي دوی په کلام کي زائد واقع کیږي لېکن د دوی معنی نه اخستل کیږي که څه هم دوی بامعنی حروف دي بلکه دوی د تحسین د کلام دپاره راوړل کیږي که چیري دوی حذف سي په معنی کي هیڅ خلل نه راځي.

د حروف زیادت تعداد:

حروف زیادت اته (۸) دانې دي: "اِنْ، اَنْ، مَا، لَا، مِنْ، کَاف، بَا، لَامْ".

د حروف زیادت استعمال:

اول "اِنْ" دئ:

"اِنْ" مخفف تر "مَا" نافیه "مَا" مصدریه او تر "لَمَّا" وروسته زیاتیږي لکه: "مَا اِنْ مَدَحْتُ مُحَمَّدًا بِمَقَالَتِیْ، لٰکِنْ مَدَحْتُ مَقَالَتِیْ بِمُحَمَّدٍ".

"اَنْ" په درو (۳) ځایو کي زائد راځي:

۱. اول ځای: تر "لَمَّا" وروسته لکه: "فَلَمَّا اَنْ جَاءَ الْبَشِیْرُ".

۲. دوهم ځای: د "لَوْ" او د قسم په مینځ کي چي راسي لکه: "وَاللهِ اَنْ لَوْ قَامَ زَیْدٌ قُمْتُ".

۳. دریم ځای: چي تر کاف، وروسته راسي لکه: "کَاَنْ".

دریم "مَا" دئ.

"مَا" تر "اِذَا وَ مَتٰی وَ اَیْنَ وَ اَیُّ وَ اِنْ" شرطیه څخه وروسته زائد کیږي کله چي دا الفاظ د شرط په معنی سره وي لکه: "اِذَامَا بُتُلِیْتَ فَاصْبِرْ".

څلورم "لَا" دئ:

"لَا" په درو (۳) ځایو کي زیاتیږي:

۱. اول ځای: د واو څخه وروسته کله چي دی تر نفي وروسته وي لکه: "مَا جَائَنِیْ زَیْدٌ وَ لَا عَمْرٌ".

۲. دوهم ځای: در "اَنْ" مصدریه وروسته لکه: "مَا مَنَعَكَ اَلَّا تَسْجُدَ اِذْ اَمَرْتُكَ".

۳. دریم ځای: تر قسم وروسته لکه: "لَا اُقْسِمُ بِهٰذَا الْبَلَدِ".

پنځم قسم "مِنْ" زائده دئ.

"مِنْ" په دوو (۲) ځایو کي زیاتیږي:

۱. اول ځای: تر "اِنْ" نافیه وروسته لکه: "وَاِنْ مِنْ قَرْیَةٍ اِلَّا خَلَا فِیْهَا نَذِیْرٌ".

۲. دوهم ځای: د "کَمْ" خبریه او د "کَاَیِّنْ" پر تمیز باندي زیاتیږي لکه: "وَ کَمْ مِنْ قَرْیَةٍ اَهْلَکْنَاهَا. وَکَاَیِّنْ مِنْ آیَةٍ فِي السَّمَاوَاتِ وَالْاَرْضِ".

شپږم قسم کاف دئ.

کاف هم کله زائده راځي لکه: "لَیْسَ کَمِثْلِهٖ شَیْئٌ".

اووم قسم "بَا" ده:

"بَا" په دوو (۲) ځایو کي زائده راځي:

۱. اول ځای: د "مَا" مشابه بلیس پر خبر باندي زائده راځي لکه: "وَمَا اَمْرُ فِرْعَوْنَ بِرَشِیْدٍ".

۲. دوهم ځای: او د "لَیْسَ" پر خبر باندي زائده راځي لکه: "اَلَیْسَ اللهُ بِاَحْکَمِ الْحَاکِمِیْنَ".

اتم قسم لام دئ:

لام هم په کلام کي کله کله زياتيږي لکه: "رَدِفَ لَكُمْ". دلته لام زائد دئ، ځکه "رَدِفَ" بنفسه خو د متعدي دئ.

## دريمه خبره:

دولسم قسم حروف شرط دي:

د حروف شرط تعداد:

حروف شرط دوه (۲) داني دي: "اَمَّا، لَوْ".

د "اَمَّا" د استعمال طريقه:

"اَمَّا" همېشه د شرط د تاکيد دپاره راځي او د تفصيل او استيناف دپاره غالبًا راځي او "اَمَّا" شرطيه د "مَهْمَا" قائمقام دئ چي د ده شرط همېشه محذوفه وي او د ده پر جزاء باندي فاء راوړل ضروري دي لېکن د ده جزاء د ده سره متصله نه وي بلکه د ده او د فاء جزائيه په مېنځ کي فصل په يو د دا پنځو شيانو (۱) سره راوړل ضروري دي لکه: "فَمِنْهُمْ شَقِيٌّ وَسَعِيدٌ. فَأَمَّا الَّذِينَ شَقُوا فَفِي النَّارِ وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ".

---

(۱) د "اَمَّا" او جزاء په مېنځ کي فاصله په پنځو شيانو سره راوړل ضروري ده:

۱. په مبتدا سره، لکه: "اَمَّا زَيْدٌ فَمُنْطَلِقٌ".
۲. په خبر سره، لکه: "اَمَّا فِي الدَّارِ زَيْدٌ".
۳. په جمله شرطيه سره، لکه: "فَأَمَّا إِنْ كَانَ مِنَ الْمُقَرَّبِينَ. فَرَوْحٌ وَرَيْحَانٌ وَجَنَّتُ نَعِيمٍ"
۴. په منصوب على شريطة التفسير سره، لکه: "اَمَّا زَيْدٌ فَاَضْرِبُهُ".
۵. د "اَمَّا" په مابعد منصوب لفظ سره، لکه: "فَأَمَّا الْيَتِيمَ فَلَا تَقْهَرْ".

د "اِمَّا" عاطفه او "اَمَّا" شرطيه د پېژندلو او د فرق طريقه دا ده چي که چيري د "اَمَّا" په جواب کي "فا" راغله نو "اَمَّا" شرطيه دئ او که نه راغله نو "اِمَّا" عاطفه دئ.

د و همه طريقه يې دا ده چي که که چيري د "اِمَّا" څخه وروسته يو بل "اِمَّا" راغلی وو، يا "أَوْ" راغلی وو نو "اِمَّا" عاطفه دئ لکه: "اِمَّا حَقِيقَةً أَوْ مَجَازًا يا اِمَّا مَجَازًا" که چيري دا يو هم نه وو راغلی نو "اَمَّا" شرطيه دئ، لکه. "وَأَمَّا الَّذِينَ سُعِدُوا فَفِي الْجَنَّةِ.

د "لَوْ" د استعمال طريقه:

"لَوْ" راځي دپاره د انتفاء د اول په سبب د انتفاء د ثاني سره يعني "لَوْ" پر داسي جمله باندي داخليږي چي د هغه دوې حصې وي د اولي حصې د نفي په وجه د دوهمي حصې نفي راځي لکه: "لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللّٰهُ لَفَسَدَتَا". په دې مثال کي دوې حصې دي:

۱. اوله حصه: د الله څخه علاوه د بل معبود وجود.

۲. دوهمه حصه: فساد کېدل اوس چي کله د نورو معبودانو نفي وسوې نو د فساد نفي هم وسوې.

---

"اِمَّا" همېشه په تکرار سره دئ، اول "اِمَّا" بغير د تکرار څخه او دوهم په "وَاوْ" سره، نو اول "اِمَّا" ته ترديديه تفصيليه ويل کيږي او دوهم ته عاطفه ويل کيږي، او واو زائد وي چي د "اِمَّا" عاطفه دپاره شرط دئ.

"لَوْ" پر دري قسمه راځي:

۱. اول مصدريه، چي د "اَنْ" مرادف وي، او دی اکثره د "وَدَّ. يَوَدُّ" څخه وروسته راځي، لکه: "وَدُّوا لَوْ تُدْهِنُ فَيُدْهِنُونَ. يَوَدُّ أَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ أَلْفَ سَنَةٍ. رُبَمَا يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ كَانُوا مُسْلِمِينَ". که چيري دی پر ماضي داخل سي، نو دی پر خپله اصلي معنی پاته کيږي او که چيري پر مضارع داخل سي، نو بيا مضارع پر استقبال پوري خاصه وي.

۲. دوهم دی د تعليق في المستقبل دپاره راځي چي مرادف د "اِنْ" شرطيه دئ، لکه: "وَلَوْ تَلْتَقِيْ أَصْدَاءَنَا بَعْدَ مَوْتِنَا"، په دې صورت کي که چيري دی پر ماضي باندي داخل سي، نو بيا په مستقبل پوري خاصيږي، لکه: "وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ".

۳. دريم دئ د تعليق في الماضي دپاره راځي، او دا د ده کثيرالاستعمال صورت دئ، او په دې صورت کي دی پر امتناع باندي دلالت کوي.

او پاته سو د ده جواب، نو د هغه تفصيل دا دئ: که چيري د شرط څخه ماسوا يو بل سبب نه وو، نو جواب به يې هم منفي وي، نو ځکه د دغه وجه ويل کيږي "لَوْ لِانْتِفَاءِ الثَّانِي بِسَبَبِ اِنْتِفَاءِ الْأَوَّلِ"، لکه: "وَلَوْ شِئْنَا لَرَفَعْنَاهُ بِهَا وَلٰكِنَّهُ أَخْلَدَ إِلَى الْأَرْضِ. لَوْ كَانَتِ الشَّمْسُ طَالِعَةً كَانَ النَّهَارُ مَوْجُودًا". او که چيري د جزا او د جواب دپاره بل سبب کېدای سو، نو بيا به جواب منفي نه وي، لکه: "لَوْ لَمْ يَخِفِ اللّٰهُ لَمْ يَعْصِهِ"، په دې صورت کي که چيري دی پر مضارع راهم سي، نو د ماضي په تاويل يې ګرځوي، لکه: "لَوْ يُطِيعُكُمْ فِي كَثِيرٍ مِنَ الْأَمْرِ لَعَنِتُّمْ". ليکن قليلا د فعل پر معمول چي اسم وي پر هغه داخليږي، لکه: "تَذْهَبُ أَخِلَّائَ لَوْ غَيْرَ الْحِمَامِ أَصَابَكُمْ". (تنوير)

## څلورمه خبره:

دیارلسم قسم "لَوْلَا" دئ:

د "لَوْلَا" د استعمال طریقه:

"لَوْلَا" د اولي جملې د ثبوت او وجود په وجه د دوهمي جملې نفي کوي لکه: "لَوْلَا عَلِيٌّ (۱) لَهَلَکَ عُمَرُ". چونکه علي موجوده وو نو ځکه د عمر ځخه د هلاکت نفي راغلې او دی پر دوو جملو باندي داخلیږي اوله جمله اسمیه وي او دوهمه جمله فعلیه وي.

څوارلسم قسم لام مفتوحه دئ:

لام مفتوحه د تاکید دپاره راځي لکه: "لَزَیْدٌ قَائِمٌ. لَزَیْدٌ اَفْضَلُ مِنْ عَمْرٍ" دی چونکه کله د اسم او کله د فعل په شروع کي راځي نو ځکه وده ته لام ابتدائیه ویل کیږي او لام غیر عامله څو قسمه راځي:

۱. اول قسم: لام ابتدائیه.
۲. دوهم قسم: لام جوابیه چي د "لَوْلَا" یا د قسم په جواب کي راځي.
۳. دریم قسم: چي محض د تاکید دپاره راځي.

## پنځمه خبره:

پنځلسم قسم "مَا" دئ:

"مَا" په معنی د "مَادَامَ" سره راځي او دی د فعل ناقص په معنی کي استعمالیږي لکه: "اَقُوْمُ مَا جَلَسَ الْاَمِیْرُ اَیْ مَادَامَ جَلَسَ الْاَمِیْرُ".

شپاړسم قسم حروف عطف دي:

د حروف عطف تعداد:

حروف عطف لس داني دي: "وَاوْ، فَا، ثُمَّ، اَوْ، اِمَّا، اَمْ، حَتّٰی، لٰکِنْ، بَلْ، لَا".

---

(۱) بیان داسي سوی دئ چي یو وار حضرت عمر ﷺ د حامله ښځي چي زنا یې کړې وه د رجم حکم یې ور کړی وو نو حضرت علي ﷺ وفرمایل چي د حامله ښځي رجم د دې د وضع د حمل ځخه وروسته کیږي بس د حضرت عمر ﷺ د ژبان او ژبي مبارکي ځخه دا جمله جاري سوه "لَوْلَا عَلِيٌّ لَهَلَکَ عُمَرُ" که چیري علي نه وای عمر به هلاک سوی وای چونکه علي موجوده وو نو ځکه عمر نسو هلاک په دې مثال کي وجود د علي د عمر د هلاکت د انتفاء دپاره سبب جوړ سو. (نصر الخبیر)

د حروف عطف مختصره تشریح:

اول "وَاوْ" دئ:

"وَاوْ" د دوو شیانو په یوه حکم کي د جمع کولو دپاره راځي لکه: "جَاءَ زَيْدٌ وَ عَمْرٌو".

دوهم "فَا" ده:

"فَا" د جمع، ترتیب، تعقیب بلا تاخیر دپاره راځي او د سبب ورښولو دپاره راځي لکه: "جَاءَ حَمِيْدٌ فَرَشِيْدٌ. اِقْرَءِ الْقُرْآنَ. فَاِنَّهُ يَنْفَعُكَ".

دریم "ثُمَّ" دئ:

"ثُمَّ" د جمع و ترتیب تراخي دپاره راځي لکه: "ذَهَبَ قَاسِمٌ ثُمَّ هَاشِمٌ".

څلورم "اَوْ" (۱) دئ:

"اَوْ" د دوو شیانو څخه د یو شي د متعین کولو دپاره راځي لکه: "خُذْ هٰذَا اَوْ ذَاكَ".

پنځم "اِمَّا" دئ:

"اِمَّا" هم د "اَوْ" په معنی سره استعمالیږي او دی همېشه مکرر راځي لکه: "اَلثَّمَرُ اِمَّا حُلْوٌ وَاِمَّا مُرٌّ".

## شپږمه خبره:

شپږم "اَمْ" دئ:

"اَمْ" پر دوه قسمه دئ: یو متصله بیا د دې دوه صورتونه دي: کله د همزه تسویه څخه وروسته وي لکه: "سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ أَأَنْذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ.. سَوَاءٌ عَلَيْكُمْ أَدَعَوْتُمُوهُمْ أَمْ أَنْتُمْ صَامِتُونَ". یا د طلب د یقین دپاره وي لکه: "أَأَنْتُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمِ السَّمَاءُ بَنَاهَا.. وَإِنْ أَدْرِي أَقَرِيبٌ أَمْ بَعِيدٌ مَا تُوعَدُونَ". دوهم منقطعه په دې صورت کي دی په معنی د اضراب سره راځي او دی غیر عاطفه وي لکه: "قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ أَمْ هَلْ تَسْتَوِي الظُّلُمَاتُ وَالنُّورُ أَمْ جَعَلُوا لِلّٰهِ شُرَكَاءَ".

---

(۱) "اَوْ" د طلب تاخیر دپاره یا د اباحت دپاره یا د ابهام دپاره یا د تفصیل دپاره یا د تقسیم دپاره راځي او د کوفیین په نزد باندي د اضراب دپاره او په معنی د واو سره هم راځي. (جامع الدروس العربية)

اووم "حَتّٰی" دئ:

"حَتّٰی" چي کله عاطفه جوړيږي د دې دپاره درې (۳) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: معطوف به اسم ظاهر وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: معطوف به د معطوف عليه بعض وي حقيقتا لکه: "اَكَلْتُ السَّمَكَةَ حَتّٰی رَأْسَهَا" يا تاويلا لکه: "اَلْقِ الصَّحِيْفَةَ كَيْ يُخَفِّفَ رَحْلَهُ وَالزَّادَ حَتّٰی تَعْلَمَ اَلْقَاهَا".

۳. دريم شرط يې دا دئ: چي دی به تر معطوف عليه زيات يعني اشرف وي لکه: "مَاتَ النَّاسُ حَتَّى الْاَنْبِيَاءُ" او يا به کم يعني اخس وي لکه: "غَلَبَكَ النَّاسُ حَتَّى الصِّبْيَانُ".

اتم "لٰكِنَّ" دئ:

د "لٰكِنَّ" دپاره درې (۳) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: معطوف به مفرد وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: مقرون به په واو سره نه وي.

۳. دريم شرط يې دا دئ: تر نفي يا د نهي وروسته به وي لکه: "مَا مَرَرْتُ بِرَجُلٍ صَالِحٍ لٰكِنْ طَالِحٍ".

## اوومه خبره:

نهم "بَلْ" دئ:

"بَلْ" دپاره دوه (۲) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: معطوف به مفرد وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: اثبات به تر نفي نهي يا تر امر وروسته وي لکه: "مَا قَامَ زَيْدٌ بَلْ عَمْرٌو".

لسم "لَا" دئ:

د "لَا" دپاره څلور (۴) شرطونه دي:

۱. اول شرط يې دا دئ: معطوف به مفرد وي، يا به جمله محل د اعراب وي.

۲. دوهم شرط يې دا دئ: اثبات به يا تر امر يا دعاء يا تر تحضيض وروسته وي.

۳. دريم شرط يې دا دئ: حرف عطف به متصل نه وي.

۴. څلورم شرط يې دا دئ: د معطوف او معطوف عليه په مينځ كي به عناد وي لكه: "جَاءَ رَجُلٌ لَا اِمْرَءَةٌ".

## جملي:

| عنوان | خبریه انشاء | مسند | مسند الیه | حروف عامله وغیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | مرفوعات | منصوبات | مجرورات | اقسام حروف غیر عامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَمَا أَفَاءَ اللهُ عَلَى رَسُولِهِ مِنْهُمْ فَمَا أَوْجَفْتُمْ عَلَيْهِ مِنْ خَيْلٍ وَلَا رِكَابٍ | خبریه شرطیه | (أَفَاءَ) فعل (أَوْجَفَ) | (اللهُ) فاعل (تُمْ) فاعل | (وَ) عاطفه (۲) عَلَى مِنْ جاره (مِنْ) زائده (فَ) جزائیه (وَ) عاطفه (۳) (مَا) نافیه | (أَفَاءَ، أَوْجَفْتُمْ) فعل معلوم | (مَا) اسم شرط جازم (رَسُولِ) اسم مضاف | (اللهُ) فاعل (تُمْ) فاعل | ۱. (مَا) فی محل النصب مفعول به مقدم عامله الفعل (خَيْلٍ) فی محل النصب مفعول به | (رَسُولِ) (مِنْهُمْ) متعلق (أَفَاءَ) (ه) مضاف الیه (عَلَيْهِ) متعلق (أَوْجَفَ) (خَيْلٍ، رِكَابٍ) لفظا مجرور | (وَ) عاطفه (۱۶) قسم (مِنْ) حرف زیادت (۱۱) قسم جمله لا محل لها من الاعراب معطوفه |
| فَلَمَّا أَنْ جَاءَ الْبَشِيرُ أَلْقَاهُ عَلَى وَجْهِهِ فَارْتَدَّ بَصِيرًا | خبریه شرطیه | (جَاءَ، إِرْتَدَّ) فعل | (الْبَشِيرُ، هُوَ) فاعل | (فَ) عاطفه (لَمَّا) حرف بمعنی حین حقق (أَلْقَاهُ) متضمن معنی شرط لہ (أَنْ) زائده (فَ) جزائیه (عَلَى) جاره | (جَاءَ، أَلْقَاهُ، إِرْتَدَّ) فعل معلوم | (وَجْهِ) اسم مضاف (بَصِيرًا) صفت مشبه | (الْبَشِيرُ) فاعل، (هُوَ) فاعل (هُوَ) فاعل (هُوَ) فاعل | (أَلْقَاهُ عَلَى وَجْهِهِ) لا محل لها جواب الشرط غیر جازم (هُ) مفعول به (بَصِيرًا) حال من الفاعل | (عَلَى وَجْهِهِ) متعلق (أَلْقَاهُ) (ه) مضاف الیه | (فَ) عاطفه (۱۶) قسم (أَنْ) حرف زیادت (۱۱) قسم جمله فی محل الجر مضاف الیه |
| أَيًّا مَا تَدْعُوا فَلَهُ الْأَسْمَاءُ الْحُسْنَى | خبریه شرطیه | (تَدْعُوا، لَهُ) خبر مقدم | (أَنْتُمْ) فاعل (الْأَسْمَاءُ) مبتدا | (مَا) زائده (فَ) جزائیه (لَامْ) جاره | (تَدْعُوا) فعل معلوم | (الْحُسْنَى) اسم تفضیل عامل فی ضمیره (أَيًّا) اسم شرط جازم | (أَنْتُمْ) فاعل (لَهُ) خبر مقدم متعلق (الْأَسْمَاءُ) مبتدا (الْحُسْنَى) صفت للمبتدا (هِيَ) فاعل | (أَيًّا) فی محل النصب مفعول به مقدم | (هُ) متعلق بمحذوف | (مَا) حرف زیادت (۱۱) قسم |
| لَا أُقْسِمُ بِهَذَا الْبَلَدِ | خبریه فعلیه | (أُقْسِمُ) فعل | (أَنَا) فاعل | (لَا) زائده (بِ) جاره (هَا) تنبیه | (أُقْسِمُ) فعل معلوم | (هَذَا) اسم اشاره غیر عامل | (أُقْسِمُ) فعل مضارع مرفوع (۱) قسم (أَنَا) فاعل | + | (هَذَا) مجرور بحرف الجر متعلق (أُقْسِمُ) موصوف (الْبَلَدِ) مشار الیه صفت او عطف بیان | (لَا) حرف زیادت (۱۱) قسم جمله لا محل لها من الاعراب ابتدائیه (هَا) حرف تنبیه (۱۱) قسم |
| لَيْسَ كَمِثْلِهِ شَيْءٌ | خبریه اسمیه | (مِثْلِهِ) خبر مقدم لیس | (شَيْءٌ) اسم موخر لیس | (كَ) زائد | (لَيْسَ) فعل ناقص | (مِثْلِ) اسم مضاف | (شَيْءٌ) اسم لیس | (مِثْلِ) محلا منصوب خبر (لَيْسَ) | (ه) مضاف الیه | (كَ) حرف زیادت (۱۱) قسم |

| عنوان | خبرہ انشاء | مسند | مسندالیہ | حروف عاملہ وغیر عاملہ | افعال عاملہ | اسماء عاملہ | مرفوعات | منصوبات | مجرورات | اقسام حروف غیر عاملہ |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَلَا تُلْقُوا بِأَيْدِيكُمْ إِلَى التَّهْلُكَةِ | انشائیہ فعلیہ | (لَا تُلْقُوا) فعل | (أَنْتُمْ) فاعل | (وَ) عاطفہ (لَا) ناہیہ جازمہ (بِ) زائدہ عند ابن ہشام (إِلَى) جارہ | (لَا تُلْقُوا) فعل معلوم | (أَيْدِي) اسم مضاف (التَّهْلُكَةِ) مصدر غیر عامل | (أَنْتُمْ) فاعل | (أَيْدِي) منصوب محلا مفعول بہ للفعل | (التَّهْلُكَةِ) مجرور بحرف لغو متعلق (تُلْقُوا) (أَيْدِي) لفظا مجرور (كُمْ) مضاف الیہ | (بِ) حرف زیادت (۱۱) قسم جملہ معطوفہ لا محل لہا من الاعراب (وَ) عاطفہ (۱۶) قسم |
| رَدِفَ لَكُمْ | خبریہ فعلیہ | (رَدِفَ) فعل | (هُوَ) فاعل | (لَامْ) زائدہ | (رَدِفَ) | + | (هُوَ) فاعل | (كُمْ) محلا منصوب مفعول بہ للفعل | (كُمْ) لفظا مجرور بحرف الجر زائد | (لَامْ) حرف زیادت (۱۱) قسم |
| مَا إِنْ زَيْدٌ قَائِمٌ | خبریہ اسمیہ | (قَائِمٌ) خبر | (زَيْدٌ) مبتداء | (مَا) نافیہ غیر عامل (إِنْ) زائدہ | + | (قَائِمٌ) اسم فاعل عامل فی ضمیرہ (هُوَ) | (زَيْدٌ) مبتداء (قَائِمٌ) خبر (هُوَ) فاعل | + | + | (إِنْ) حرف زیادت (۱۱) قسم |
| أَمَّا مَنِ اسْتَغْنَى فَأَنْتَ لَهُ تَصَدَّى | خبریہ شرطیہ | (اسْتَغْنَى تَصَدَّى فَأَنْتَ لَهُ) خبر | (هُوَ أَنْتَ) (أَمَّا مَنِ اسْتَغْنَى) مبتداء (أَنْتَ) مبتداء | (أَمَّا) حرف شرط (فَ) جزائیہ (لَ) جارہ | (تَصَدَّى، اسْتَغْنَى) فعل معلوم | (مَنْ) موصول مبنی غیر عامل لموصول صلہ مبتداء | (مَنِ اسْتَغْنَى) فی محل رفع مبتداء (هُوَ) فاعل (أَنْتَ) مبتداء (تَصَدَّى) خبر (أَنْتَ) فاعلہ جملہ فی محل الرفع خبر | + | (هُ) مجرور ظرف لغو متعلق (تَصَدَّى) | (أَمَّا) حرف شرط (۱۲) قسم جملہ لا محل لہا من الاعراب مستانفہ |
| وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّي لَكُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِينَ | خبریہ شرطیہ | (مَوْجُودَةٌ) خبر محذوف وجوبا (مِنَ الْمُحْضَرِينَ) خبر کان | (نِعْمَةُ) (رَبِّي) مبتداء (تُ) اسم کان | (وَ) عاطفہ (لَوْلَا) حرف شرط (لَامْ) واقعہ فی جواب لولا (مِنَ) جارہ | (كُنْ) فعل ناقص | (رَبِّ) اسم مضاف یا ملحق مشبہ باسم فاعل (الْمُحْضَرِينَ) اسم فاعل (نِعْمَةُ) اسم مضاف | (نِعْمَةُ) مبتداء (تُ) اسم کان (مَوْجُودَةٌ) خبر محذوف وجوبا | (مِنَ الْمُحْضَرِينَ) باعتبار متعلق فی محل النصب خبر (كَانَ) | (الْمُحْضَرِينَ) مجرور بحرف الجر (رَبِّ) مضاف الیہ (يْ) مضاف الیہ | (لَوْلَا) حرف شرط (۱۲) قسم جملہ لا محل لہا من الاعراب معطوفہ |
| أَقُومُ مَا قَامَ الْأُسْتَاذُ | خبریہ فعلیہ | (أَقُومُ، قَامَ) فعل | (أَنَا الْأُسْتَاذُ) فاعل | (مَا) بمعنی (مَا دَامَ) غیر عامل | (أَقُومُ، قَامَ) فعل معروف | + | (أَقُومُ) مرفوع (۱) (أَنَا) فاعل (الْأُسْتَاذُ) فاعل | + | + | (مَا) بمعنی (مَا دَامَ) حرف غیر عامل (۱۳) قسم |
| قَالَ إِنِّي لَيَحْزُنُنِي أَنْ تَذْهَبُوا بِهِ | خبریہ فعلیہ | (قَالَ) فعل (لَيَحْزُنُ) الخ (تَذْهَبُوا) | (هُوَ) فاعل (يْ) اسم ان (أَنْ تَذْهَبُوا) فاعل (أَنْتُمْ) فاعل | (إِنَّ) مشبہ بالفعل (لَامْ) تاکید (نِ) وقایہ (أَنْ) ناصب مصدریہ (بِ) جارہ | (قَالَ، يَحْزُنُ، تَذْهَبُوا) فعل معروف | + | (هُوَ) فاعل (أَنْ تَذْهَبُوا) ہوا فی محل الرفع فاعل (يَحْزُنُ، أَنْتُمْ) فاعلہ (لَيَحْزُنُنِي) فی محل الرفع خبر (إِنَّ) | (يْ) اسم إِنَّ (إِنِّي لَيَحْزُنُنِي) فی محل النصب مقول قول (نِي) نون الوقایۃ یاء المتکلم مفعول بہ مقدم | (هِ) مجرور متعلق (تَذْهَبُوا) | (لَامْ) حرف تاکید (۱۴) قسم جملہ لا محل لہا من الاعراب استئناف بیانی |

| عنوان | خبره انشاء | مسند | مسند الیه | حروف عامله وغیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | مرفوعات | منصوبات | مجرورات | اقسام حروف غیر عامله |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| وَتَاللهِ لَأَكِيدَنَّ أَصْنَامَكُمْ بَعْدَ أَنْ تُوَلُّوا مُدْبِرِينَ | انشائیه لفظیه | (أُقْسِمُ) (أَكِيدَنَّ) (تُوَلُّوا) فعل | (أَنَا أَنَا أَنْتُمْ) | (وَ) عاطفه (تَا) حرف قسم (لَامُ) حرف قسم (نَّ) تاکید ثقیله (أَنْ) ناصبه مصدریه | (أُقْسِمُ، أَكِيدَنَّ، تُوَلُّوا) فعل معروف | (أَصْنَامَ) اسم مضاف (بَعْدَ) ظرف مضاف (مُدْبِرِينَ) اسم فاعل | (أُقْسِمُ) مرفوع (۱) قسم (أَنَا) فاعل (أَنَا) فاعل (أَنْتُمْ) (أَنْتُمْ) فاعل | (أَصْنَامَ) مفعول به (بَعْدَ أَنْ تُوَلُّوا) ظرف منصوب مفعول فیه (مُدْبِرِينَ) حال من ضمیر (تُوَلُّوا) (اللهِ) لا محل له | (اللهِ) مجرور (كُمْ) مجرور (أَنْ تُوَلُّوا) فی محل الجر مضاف الیه | (أَنْ) حرف تاکید غیر عامل (۲) قسم جمله لا محل لها من الاعراب |
| وَكُلًّا وَعَدَ اللهُ الْحُسْنَى | خبریه لفظیه | (وَعَدَ) فعل | (اللهُ) فاعل | (وَ) اعتراضیه | (وَعَدَ) فعل معلوم | (الْحُسْنَى) اسم تفضیل مؤنث (كُلّ) اسم مضاف مضاف الیه محذوف عوضه التنوین | (اللهُ) فاعل (هِيَ) فاعل | (كُلًّا) مفعول به اول مقدم (الْحُسْنَى) مفعول ثانی | (وَاحِدٍ) مضاف الیه محذوف عوضه التنوین على لفظ كل | (وَ) عاطفه (۱) قسم تنوین حرف تنوین غیر عامل عوض عن المضاف الیه (۲) قسم لا محل لها من الاعراب اعتراضیه |
| قُلْ عَسَى أَنْ يَكُونَ رَدِفَ لَكُمْ بَعْضُ الَّذِي تَسْتَعْجِلُونَ | انشائیه طلبیه | (قُلْ عَسَى، رَدِفَ لَكُمْ) فریقان (تَسْتَعْجِلُونَ) | (أَنْتَ) فاعل (أَنْ يَكُونَ) بتأویل مصدر فاعل (عَسَى) (بَعْضُ) فاعل (رَدِفَ) (أَنْتُمْ) (هُوَ) اسم يكون | (أَنْ) ناصبه مصدریه (لَامُ) زائده | (قُلْ عَسَى) فعل امر (يَكُونَ) فعل ناقص (رَدِفَ، تَسْتَعْجِلُونَ) فعل معلوم | (بَعْضُ) اسم مضاف (الَّذِي) اسم موصول | (أَنْتَ) فاعل (أَنْ يَكُونَ) فاعل (عَسَى) (هُوَ) اسم (يَكُونَ) (بَعْضُ) فاعل (رَدِفَ) (تَسْتَعْجِلُونَ) مرفوع (۳) قسم (أَنْتُمْ) فاعل | (عَسَى أَنْ يَكُونَ) فی محل النصب مقول قول (رَدِفَ الخ) فی محل النصب خبر (يَكُونَ) (كُمْ) مفعول به | (الَّذِي) فی محل الجر مضاف الیه لبعض | (أَنْ) مصدریه (۳) قسم (لَامُ) حروف زیادات (۳) قسم جمله لا محل لها من الاعراب مستانفه |

## التمرين:

"مَا إِنْ رَأَيْتُ زَيْدًا.. وَاللهِ أَنْ لَوْ قَامَ زَيْدٌ لَقُمْتُ.. فَبِمَا رَحْمَةٍ مِنَ اللهِ لِنْتَ لَهُمْ.. فَإِمَّا تَرَيِنَّ مِنَ الْبَشَرِ أَحَدًا فَقُولِي إِنِّي نَذَرْتُ لِلرَّحْمٰنِ صَوْمًا.. مَا مَنَعَكَ أَلَّا تَسْجُدَ إِذْ أَمَرْتُكَ.. مَا جَاءَنِي زَيْدٌ وَلَا عَمْرٌو.. مَا جَاءَنَا مِنْ بَشِيرٍ وَلَا نَذِيرٍ.. وَكَفَى بِاللهِ شَهِيدًا.. فَأَمَّا الزَّبَدُ فَيَذْهَبُ جُفَاءً.. لَوْ نَشَاءُ جَعَلْنَاهُ أُجَاجًا فَلَوْلَا تَشْكُرُونَ.. لَوْلَا زَيْدٌ لَفَرِحَ بَكْرٌ.. إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَآيَاتٍ لِكُلِّ صَبَّارٍ شَكُورٍ.. أَدْرُسُ مَا أَكُونُ حَيًّا".

چون بحث مستثنى در كتاب نحومير نه بود براى فائده طلاب افزوده شد الخ:.

## ترجمه:

چونکه د مستثنى بحث په اصل کتاب کي نه وو موجود د طلباء د فائدي دپاره د دې اضافه وشوه.

پوه سه! چي مستثنى هغه لفظ ته ويل کيږي چي تر "إِلَّا" يا د دې د هم معنى الفاظو وروسته واقع سي او هغه الفاظ دا دي يعني "غَيْرُ، سِوَى، حَاشَا، خَلَا، عَدَا، مَاخَلَا، مَاعَدَا، لَيْسَ، لَايَكُونُ" دېره دي

چې دا خبره معلومه سي چې د مستثنی و طرف ته هغه حکم نه دئ منسوب کم چې د مستثنی منه و طرفته منسوب وي دا پیا پر دوو قسمه ده متصل و منقطع متصل هغه ده چې د متعدد څخه رائستل سوي وي د "اِلَّا" یا د "اِلَّا" د هم معنی الفاظو په ذریعه سره لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا" و گوره دلته زید په قوم کي د فرد په حیثیت سره داخل وو لېکن د راتگ د حکم څخه و ایستل سو او مستثنی منقطع هغه ته ویل کیږي چې تر "اِلَّا" او د ده د اخواتو وروسته ذکر سي لېکن د متعدد څخه نه وي راوتلې په دې وجه چې مستثنی په مستثنی منه کي داخله نه وه لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا حِمَارًا" حمار په قوم کي نه دئ داخل.

پوه سه! چې د مستثنی اعراب پر څلور (۴) قسمه دئ: اول هغه مستثنی چې د "اِلَّا" څخه وروسته په کلام موجب کي واقع سي نو داسي مستثنی به همېشه منصوبه وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا" او کلام موجب هغه دئ چې په هغه کي نفي نهي استفهام نه وي او داغه رنگه په کلام غیر موجب کي که چیري مستثنی پر مستثنی منه باندي مقدم سي نو مستثنی ته نصب ور کول کیږي لکه: "مَاجَائَنِيْ اِلَّا زَيْدًا اَحَدٌ"، او مستثنی منقطع همېشه منصوبه وي او که چیري تر "خَلَا، عَدَا" وروسته واقع سي نو د اکثرو علماؤ پر مذهب باندي منصوب کیږي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ خَلَا زَيْدًا عَدَا زَيْدًا" او تر "مَاخَلَا" او "مَاعَدَا" او "لَيْسَ وَلَايَكُوْنُ" څخه وروسته همېشه منصوبه وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ مَا خَلَا زَيْدًا مَاعَدَا زَيْدًا لَيْسَ زَيْدًا لَايَكُوْنُ زَيْدًا" دوهم صورت دا دئ چې استثناء په کلام غیر موجب کي د "اِلَّا" وروسته واقع سي او مستثنی منه مذکوره وي نو په دې کي دوه صورتونه ویل جائز دي: اول نصب بناء بر استثنائیت دوهم رفع بناء بر بدلیت لکه: "مَا جَائَنِيْ اَحَدٌ اِلَّا زَيْدًا اَوْ اِلَّا زَيْدٌ" دریم صورت دا دئ: چې مستثنی مفرغ وي یعني مستثنی منه مذکوره نه وي او په کلام غیر موجب کي راغلی وي نو په دې وقت کي د مستثنی اعراب په اعتبار د عوامل سره بدلیږي لکه: "مَاجَائَنِيْ اِلَّا زَيْدٌ، مَارَاَيْتُ اِلَّا زَيْدًا وَ مَا مَرَرْتُ اِلَّا بِزَيْدٍ". څلورم صورت دا دئ چې مستثنی لفظ د "غَيْرُ سِوٰی اَوْ سِوَاءٌ" څخه وروسته واقع نو بیا مستثنی مجروره ویل کیږي او د "حَاشَا" څخه وروسته د اکثره علماء پر مذهب باندي مجروره وي او د بعض په نزد باندي نصب هم جائز دئ لکه: "مَاجَائَنِي الْقَوْمُ غَيْرُ زَيْدٍ سِوٰی زَيْدٍ".

پوه سه چي د لفظ د "غَيْرُ" اعراب په مثل د "اِلَّا" د مستثنى سره دئ لکه ته چي وايې "جَائَنِيْ الْقَوْمُ غَيْرَ زَيْدٍ يا غَيْرَ حِمَارٍ، او مَا جَائَنِيْ غَيْرَ زَيْدٍ نِ الْقَوْمُ، او مَا جَائَنِيْ اَحَدٌ غَيْرَ زَيْدٍ يا غَيْرُ زَيْدٍ، او مَا جَائَنِيْ غَيْرُ زَيْدٍ، مَارَاَيْتُ غَيْرَ زَيْدٍ، وَمَا مَرَرْتُ بِغَيْرِ زَيْدٍ".

پوه سه! چي لفظ د "غَيْرُ" وضع سوى د صفت دپاره دئ او كله كله د استثناء دپاره راځي او "اِلَّا" د استثناء دپاره وضع سوى دئ او كله كله د صفت دپاره استعماليږي لکه: د الله تعالى ارشاد دئ "لَوْ كَانَ فِيهِمَا آلِهَةٌ إِلَّا اللهُ لَفَسَدَتَا". دلته "اِلَّا" په معنى د "غَيْرُ" سره دئ يعني "غَيْرُ اللهِ" او داغه رنګه په كلمه طيبه په "لَااِلٰهَ اِلَّا اللهُ" كي دئ.

## الدرس الاربعون:

د نن د سبقه خلاصه اووه (۷) خبري دي:

### اوله خبره:

د مستثنى بحث:

د استثناء تعريف:

استثناء مصدر دئ د افعال د باب څخه د استثناء لغوي معنى رائستل يا راجلا كول.

د مستثنى تعريف:

مستثنى د اسم مفعول صيغه ده د استثناء څخه په معنى د راجلا كړول سوى يعني هغه شى چي هغه رائستل سوى وي يا راجلا سوى وي په اصطلاح كي مستثنى هغه اسم دئ چي دى تر حرف استثناء يعني تر "اِلَّا" يا د ده تر اخوات يعني د ده د هم معنى الفاظو وروسته واقع سوى وي لکه: په "جَائَنِيْ الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا" كي "زَيْدًا".

د مستثنى منه تعريف:

مستثنى منه هغه اسم دئ چي دده څخه مستثنى راوتلى وي لکه: په "جَائَنِيْ الْقَوْمُ اِلَّا عَمْرًا" كي "اَلْقَوْمُ".

د استثناء الفاظ:

د استثناء دپاره یوولس (۱۱) الفاظ دي: "اِلَّا، غَیْرُ، سِوَای، سِوَاءَ، حَاشَا، خَلَا، عَدَا، مَاعَدَا، مَاخَلَا، لَیْسَ، لَایَکُوْنُ".

## دوهمه خبره:

د مستثنی اقسام:

مستثنی پر دوه قسمه ده:

۱. اول قسم مستثنی متصل ده.

۲. دوهم قسم مستثنی منقطع ده.

د مستثنی متصل تعریف:

مستثنی متصل هغه مستثنی ده چي دا په مستثنی منه کي داخله وي او د مستثنی منه د جنس څخه وي لکه: په "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا خَالِدًا" کي "خَالِدًا".

د مستثنی منقطع تعریف:

مستثنی منقطع هغه مستثنی ده چي په مستثنی منه کي نه وي داخله او نه د مستثنی منه د جنس څخه وي لکه: په "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا حِمَارًا" کي "حِمَارًا".

د کلام تقسیم:

په کم کلام کي چي استثناء موجوده وي هغه کلام پر دوه قسمه دئ:

۱. اول قسم کلام موجب دئ.

۲. دوهم قسم کلام غیر موجب دئ.

د کلام موجب تعریف:

کلام موجب هغه کلام دئ چي په ده کي نفي، نهي، استفهام نه وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَیْدًا".

د کلام غیر موجب تعریف:

کلام غیر موجب هغه کلام دئ دئ چي په ده کي نفي یا نهي یا استفهام راغلی وي لکه: "مَاجَائَنِي اَحَدٌ اِلَّا زَیْدًا".

## دریمه خبره:

د مستثنی دوهم تقسیم:

مستثنی د دوهم تقسیم په اعتبار سره پر دوه قسم ده:

۱. اول قسم مستثنی مفرغ.

۲. دوهم قسم مستثنی غیر مفرغ.

د مستثنی مفرغ تعریف:

مستثنی مفرغ هغه مستثنی ده چي مستثنی منه نه وي ذکر سوې او عامل و مستثنی ته فارغ وي لکه: "مَاجَائَنِيْ اِلَّا زَيْدٌ".

د مستثنی غیر مفرغ تعریف:

مستثنی غیر مفرغ هغه مستثنی ده چي په دې کي مستثنی منه ذکر سوې وي یعني عامل و مستثنی ته نه وي ور فارغه لکه: "جَائَنِيْ الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا".

## څلورمه خبره:

د مستثنی اعراب:

مستثنی د اعراب په اعتبار سره پر پنځه (۵) قسمه ده:

۱. اول قسم مستثنی به منصوبه وي.

۲. دوهم قسم په مستثنی کي رفع و نصب دواړه جائز دي.

۳. دریم قسم د مستثنی اعراب په حسب د عوامل سره دئ.

۴. څلورم قسم مستثنی به مجروره وي.

۵. پنځم قسم مستثنی به منصوب وي یا به مجروره وي.

د اول قسم اعراب:

اول د مستثنی د نصب صورتونه:

په پنځو (۵) ځایو کي مستثنی منصوبه راځي:

۱. اول صورت: که چیري مستثنی متصل وروسته تر "اِلَّا" په کلام موجب کي واقع سوه نو په دې صورت کي به مستثنی همېشه منصوبه وي لکه: په "جَائَنِيْ الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا" کي "زَيْدًا".

۲. دوهم صورت: که چیري مستثنی په کلام غیر موجب کي واقع سوی وو او مستثنی پر مستثنی منه باندي مقدم وه نو په دې صورت کي به هم مستثنی منصوبه وي لکه: "مَا جَائَنِي اِلَّا زَيْدًا اَحَدٌ".

۳. دریم صورت: مستثنی منقطع همېشه منصوبه وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا حِمَارًا".

۴. څلورم صورت تر "مَاعَدَا وَ مَاخَلَا، لَيْسَ، لَايَكُوْنُ" وروسته به مستثنی همېشه منصوب وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ مَا خَلَا زَيْدًا مَا عَدَا زَيْدًا، لَيْسَ زَيْدًا، لَا يَكُوْنُ زَيْدًا اَیْ جَائَنِيْ الْقَوْمُ لَيْسَ وَلَايَكُوْنُ الْجَائِيْ زَيْدًا".

۵. پنځم صورت: که چیري مستثنی تر "خَلَا" او تر "عَدَا" وروسته واقع سوه نو بیا د اکثره علماء په نزد باندي دا منصوبه وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ خَلَا زَيْدًا عَدَا زَيْدًا".

## پنځمه خبره:

دوهم قسم اعراب:

دوهم د مستثنی د رفع او د نصب د دواړو د جواز صورتونه:

۱. اول صورت: مستثنی که چیري په کلام غیر موجب کي تر "اِلَّا" وروسته واقع سوه او مستثنی منه مذکوره وه نو په دې صورت کي پر مستثنی باندي دوه اعرابه ویل جائز دي:

۱. اول اعراب: د نصب اعراب بناء بر استثنائیت لکه: "مَاجَائَنِيْ اَحَدٌ اِلَّا زَيْدًا".

۲. دوهم اعراب: د رفع دئ بناء بر بدلیت لکه: "مَاجَائَنِيْ اَحَدٌ اِلَّا بَكْرٌ".

دریم قسم اعراب په اعتبار د عوامل سره:

که چیري مستثنی په کلام غیر موجب کي تر "اِلَّا" وروسته واقع سوه او مستثنی منه نه وه ذکر سوې نو په دې صورت کي به د مستثنی اعراب په اعتبار د عوامل سره وي که چیري یې عامل د رفع وو مستثنی به مرفوع وي لکه: "مَا جَائَنِي اِلَّا زَيْدٌ" که چیري یې عامل د نصب وو مستثنی به منصوبه وي لکه: "مَارَاَيْتُ اِلَّا زَيْدًا" او که چیري یې عامل د جر وو نو بیا به مستثنی مجروره وي لکه: "مَامَرَرْتُ اِلَّا بِزَيْدٍ".

**شپږمه خبره:**

څلورم قسم اعراب د جر دئ:

که چيرې مستثنی د لفظ د "غَيْرُ، سِوٰى، سِوَاءَ" څخه وروسته واقع سوه نو په دې صورت کي به مستثنی مجروره وي ځکه په دې صورت دغه الفاظ و مستثنی ته مضاف وي او مستثنی مضاف اليه وي او مضاف اليه همېشه مجروره وي لکه: "مَاجَائَنِي الْقَوْمُ غَيْرَ، وَغَيْرُ زَيْدٍ، سِوٰى زَيْدٍ، سِوَاءَ زَيْدٍ".

د مستثنی د پنځم قسم اعراب چي نصب و جر دئ.

که چيرې مستثنی د "حَاشَا" څخه وروسته واقع سوه نو د اکثره علماء په نزد باندي به دا مجروره وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ حَاشَا زَيْدٍ" لېکن د بعض علماء په نزد باندي به دا منصوبه وي لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ حَاشَا زَيْدًا".

خودي د لفظ د "غَيْرُ" اعراب:

د "غَيْرُ" د لفظ اعراب په ټولو صورتو کي د هغه مستثنی د اعراب په شان دئ کمه مستثنی چي تر "إِلَّا" وروسته واقع سي او د "غَيْرُ" د مستثنی اعراب يعني د "غَيْرُ" څخه وروسته چي کم لفظ راسي هغه به د مضاف اليه والي پر بنياد باندي مجروره وي. د کلام موجب مثال لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ غَيْرَ زَيْدٍ" د مستثنی منقطع مثال لکه: "جَائَنِي الْقَوْمُ غَيْرَ حِمَارٍ" د مستثنی منه مقدم مثال لکه: "مَا جَائَنِيْ غَيْرَ زَيْدٍ نِ الْقَوْمُ" د کلام غير موجب مثال چي کله مستثنی غير مفرغ وي لکه: "مَا جَائَنِي اَحَدٌ غَيْرُ زَيْدٍ، وَغَيْرَ زَيْدٍ". د مستثنی مفرغ مثال لکه: "مَا جَائَنِيْ غَيْرُ زَيْدٍ مَارَاَيْتُ غَيْرَ زَيْدٍ، مَا مَرَرْتُ بِغَيْرِ زَيْدٍ".

**اوومه خبره:**

د لفظ د "غَيْرُ" معنٰی:

"غَيْرُ" د دوو معنٰی دپاره راځي:

۱. اوله معنٰی: "غَيْرُ" د صفت په معنی کي استعمالیږي ځکه دا په اصل کي د "فَعْلٌ" د صفت مشبه پر وزن ده.

۲. دوهمه معنٰی: "غَيْرُ" کله کله د "اِلَّا" حرف استثناء په معنی کي استعمالیږي او لفظ د "غَيْرُ" په اصل وضع کي د صفت د معنی دپاره وضع سو دئ نو ځکه دی د خپل مابعد مضاف الیه سره ملاویږي د ماقبل دپاره صفت جوړیږي لکه: "جَائَنِيْ رَجُلٌ غَيْرُ جَاهِلٍ".

د لفظ د "اِلَّا" معنی:

لفظ د "اِلَّا" د دوو معناوٗ دپاره راځي:

۱. اوله معنی لفظ د "اِلَّا" د استثنی د معنی دپاره استعمالیږي ځکه د ده وضع د داغه معنی دپاره سوې ده.

۲. دوهمه معنی: کله کله "اِلَّا" د "غَيْرُ" صفتي په معنی کي هم استعمالیږي لکه: "لَوْ كَانَ فِيهِمَآ آلِهَةٌ إِلَّا اللهُ لَفَسَدَتَا.. لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ" دلته "اِلَّا" د "غَيْرُ" صفتي په معنی سره دئ نه د استثناء په معنی سره.

## جدول د اقسامو د مستثنی:

| نمبر | قواعد | امثله |
|---|---|---|
| | (١) که چیري مستثنی متصل د "اِلَّا" څخه وروسته په کلام موجب کي واقع وه نو مستثنی به همېشه منصوبه وي. | جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا |
| | (٢) که چیري په کلام غیر موجب کي مستثنی پر مستثنی منه باندي مقدم وه نو بیا به منصوبه وي. | مَا جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا زَيْدًا اَحَدٌ |
| (١) | (٣) مستثنی منقطع همېشه منصوبه وي | جَائَنِي الْقَوْمُ اِلَّا حِمَارًا |
| | (۴) د "خَلَا" و "عَدَا" څخه وروسته مستثنی د اکثرو علماء په نزد باندي منصوبه وي. | جَاءَ الْقَوْمُ خَلَا زَيْدًا وَعَدَا زَيْدًا |
| (٢) | (۵) کله مستثنی چي د "اِلَّا" څخه وروسته په کلام غیر موجب کي واقع سي او د ده مستثنی منه مذکوره وي نو په دې کي دوه صورتونه جائز دي: یو خو بطور استثناء منصوبه کیږي. | مَا جَائَنِي اَحَدٌ اِلَّا زَيْدًا |
| | (٦) دوهم دا چي د ماقبل څخه بدل وي او د مبدل منه اعراب یې وي. | مَا جَائَنِي اَحَدٌ اِلَّا بَكْرٌ |
| (٣) | (٧) که چیري مستثنی مفرغ وه او په کلام غیر موجب کي واقع سوې وه نو بیا به د مستثنی اعراب په حسب د عوامل سره وي | مَا جَائَنِي اِلَّا زَيْدٌ مَا رَاَيْتُ اِلَّا زَيْدًا مَا مَرَرْتُ اِلَّا بِزَيْدٍ |

| نمبر | قواعد | امثله |
|---|---|---|
| (۴) | (۸) که چیرې مستثنی لفظ د "غَيْرُ، سِوَاى، سِوَاءَ او حَاشَا" (بر مذهب اکثره) وروسته واقع سوې وه نو بیا به مجرور وي. | جَاءَنِي الْقَوْمُ غَيْرَ زَيْدٍ وَ سِوٰى زَيْدٍ وَ سِوَاءَ زَيْدٍ وَ حَاشَا زَيْدٍ |

# جدول د لفظ د غیر د اعراب د صورتو

| قواعد | او امثله |
|---|---|
| ۱. مستثنی متصل | جَاءَنِي الْقَوْمُ غَيْرَ زَيْدٍ |
| ۲. مستثنی منقطع | جَاءَ الْقَوْمُ غَيْرَ حِمَارٍ |
| ۳. کلام غیر موجب وي مستثنی پر مستثنی منه باندې مقدم وي. | مَا جَاءَنِي غَيْرَ زَيْدٍ أَحَدٌ |
| کلام غیر موجب وي او مستثنی منه مذکوره وي. | مَا جَاءَنِي الْقَوْمُ غَيْرُ زَيْدٍ وَغَيْرَ زَيْدٍ |
| مستثنی مفرغ وي او په کلام غیر موجب کې واقع سوې وي. | مَا جَاءَنِي غَيْرُ زَيْدٍ مَا رَأَيْتُ غَيْرَ زَيْدٍ مَا مَرَرْتُ بِغَيْرِ زَيْدٍ |

## جملې:

| عنوان | خبریه انشاء | مسند | مسند الیه | تعیین حروف عامله و غیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین اقسام و صور اعراب مستثنی وکذالک تعیین مستثنی و مستثنی منه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| فَشَرِبُوا مِنْهُ إِلَّا قَلِيلًا مِنْهُمْ | خبریه فعلیه | (شَرِبُوْا) فعل | (هُمْ) فاعل | (فَ) استئنافیه. (۲) (مِنْ) جارہ. (إِلَّا) حرف استثنا غیر عامل | (شَرِبُوْا) فعل معلوم | (قَلِيلًا) صفت مشبه | (هُمْ) فاعل | (قَلِيلًا) مستثنی فی الاصل صفة لمحذوف ای قِسْمًا قَلِيلًا | (هٗ) مجرور متعلق (شَرِبُوْا) (هُمْ) مجرور متعلق محذوف صفة (لِقَلِيلًا) | (قَلِيلًا) مستثنی متصل غیر مفرغ فی کلام موجب منصوب (۱) اول قسم اول صورت. (هُمْ) مستثنی منه |
| وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا أَنْفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِنْ دِيَارِكُمْ مَا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ مِنْهُمْ | خبریه اسمیه | (كَتَبْنَا) خبر أَنَّ. كَتَبَ. اُقْتُلُوا. اُخْرُجُوا. فَعَلُوا | (نَا) اسم أَنَّ. نَا. أَنْتُمْ. أَنْتُمْ. هُمْ | (وَ) عاطفه. (أَنَّ) مشبه بالفعل. (عَلٰی) جارہ. (أَوْ) عاطفه (مَا) نافیه. (أَنْ) مصدریه. (مِنْ) جارہ یا تفسیریه | (كَتَبْنَا. اقْتُلُوا. اخْرُجُوا. فَعَلُوا) فعل معلوم | (أَنْفُسَ. دِيَارِ) اسم مضاف (قَلِيلٌ) صفت مشبه | (كَتَبْنَا) جمله خبر أَنَّ (نَا) فاعل. (أَنْتُمْ) فاعل. (أَنْتُمْ) فاعل (هُمْ) فاعل (قَلِيلٌ) بدل من ضمیر فاعل | (نَا) اسم أَنَّ (أَنِ اقْتُلُوا) جمله فی محل النصب مفعول به لِكَتَبْنَا علی تقدیر ان مصدریه (أَنْفُسَ) مفعول به (هٗ) مفعول به | (عَلَيْهِمْ) متعلق كَتَبْنَا (كُمْ) مضاف الیه. (مِنْ دِيَارِ) متعلق اخْرُجُوا. (مِنْهُمْ) متعلق بنعت محذوف (لِلْقَلِيلِ) | (قَلِيلٌ) مستثنی متصل غیر مفرغ فی کلام غیر موجب مرفوع (۲) دوهم قسم جوړ نصب ورفع صورت بدلیت (هُمْ) مبدل منه مستثنی منه |
| يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ وَلَا تَقُولُوا عَلَى اللّٰهِ إِلَّا الْحَقَّ | انشا نهیه | (أَدْعُوْ. لَا تَغْلُوا. لَا تَقُولُوا) فعل | (أَنَا. أَنْتُمْ. أَنْتُمْ) فاعل | (يَا) حرف ندا قائم مقام أَدْعُوْ (لَا) ناهیه جازمه (فِي. عَلٰی) جارہ (وَ) عاطفه (إِلَّا) حرف استثنا | (أَدْعُوْ. لَا تَغْلُوا. لَا تَقُولُوا) فعل معلوم | (أَهْلَ. دِينِ) اسم مضاف | (أَنَا) فاعل أَدْعُوْ (أَنْتُمْ. أَنْتُمْ) فاعل | (أَهْلَ) مفعول به (لِأَدْعُوْ) منادی مضاف (الْحَقَّ) مفعول للفعل (تَقُولُوا) | (الْكِتَابِ. كُمْ) مضاف الیه (فِي دِينِ) متعلق بالفعل (لَا تَغْلُوا) (عَلَى اللّٰهِ) متعلق بمحذوف حال من الحق ای [illegible] علی الله | (الْحَقَّ) مستثنی مفرغ فی کلام غیر موجب منصوب (۳) قسم بحسب العوامل (۲) صورت عامل ناصب (قَوْلًا) مستثنی منه محذوف |

| عنوان | خبریه، انشائیه | مسند | مسندالیه | تعیین حروف عامله، غیر عامله | افعال عامله | اسماء عامله | تعیین مرفوعات | منصوبات | مجرورات | تعیین اقسام وصوره واعراب مستثنیٰ، کذالک تعیین مستثنیٰ، مستثنیٰ منه |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| إِنَّهُ لَا يَيْأَسُ مِنْ رَوْحِ اللهِ إِلَّا الْقَوْمُ الْكَافِرُونَ | خبریه اسمیه | (لا ییأس. لا ییأس) فعل | (هٔ. القوم) فاعل | (إنّ) مشبه بالفعل (لا) نافیه (من) جاره (إلّا) حرف حصر | (لا ییأس) فعل معلوم | (روح) اسم مضاف (الکافرون) اسم فاعل | (لا ییأس) فی محل الرفع خبر (إنّ) (القوم) فاعل له (الکافرون) صفة القوم | (هٔ) اسم (إنّ) | (من روح) متعلق (لا ییأس) (الله) مضاف الیه | (القوم) مستثنی مفرغ فی کلام غیر موجب مرفوع بحسب العوامل (۳) قسم (۴) صورت ... (احد) مستثنی منه |
| كُلُّ شَيْءٍ هَالِكٌ إِلَّا وَجْهَهُ | خبریه اسمیه | (هالك. هالکه) | (کلّ شیءٍ. هو) | (إلّا) حرف استثناء | • | (کلّ) اسم مضاف (هالك) اسم فاعل (وجه) اسم مضاف | (کلّ) مبتدا (هالك) خبر (هو) فاعل | (وجهَ) منصوب بنابر استثنا | (شیءٍ) مضاف الیه (هٔ) مضاف الیه | (وجهَ) مستثنی متصل غیر مفرغ فی کلام موجب منصوب (۱) قسم (۱) صورت (شیءٍ) مستثنی منه |
| لَا خَيْرَ فِي كَثِيرٍ مِنْ نَجْوَاهُمْ إِلَّا مَنْ أَمَرَ بِصَدَقَةٍ أَوْ مَعْرُوفٍ | خبریه اسمیه | فی کثیر. أمر | خیر. هو | (لا) نافیه جنس (فی، من، با) جاره (إلّا) حرف استثناء (أو) عاطفه (مَن) اسم موصول | (أمر) فعل معلوم | (خیر) اسم تفضیل (کثیر) صفت مشبه (معروف) اسم مفعول (نجوا) اسم مصدر مضاف | (خیر) محلا مرفوع فی محل الابتداء اسم (لا) (هو) فاعل (أمر) | (إلّا مَن) فی محل النصب مستثنی منقطع | (فی کثیر) متعلق محذوف (هم) مضاف الیه (من نجوا) متعلق محذوف صفت الکثیر (بصدقة) متعلق (بأمر) فعل (معروف) معطوف (علی صدقة) | (إلّا مَن) مستثنی منقطع ... (نجواهم) غیر مفرغ فی کلام غیر موجب (۱) قسم (۳) صورت ... (۲) قسم (۱) صورت (نجواهم) مستثنی منه |

## التمرین:

"فَلَوْلَا كَانَتْ قَرْيَةٌ آمَنَتْ فَنَفَعَهَا إِيمَانُهَا إِلَّا قَوْمَ يُونُسَ.. خَالِدِينَ فِيهَا مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ إِلَّا مَا شَاءَ رَبُّكَ.. وَلَا يُلَقَّاهَا إِلَّا الصَّابِرُونَ.. وَمَا هُمْ بِضَارِّينَ بِهِ مِنْ أَحَدٍ إِلَّا بِإِذْنِ اللهِ.. لَا إِلَهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمَنُ الرَّحِيمُ.. وَمَا يَكْفُرُ بِهَا إِلَّا الْفَاسِقُونَ.. لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا.. وَمَا مُحَمَّدٌ إِلَّا رَسُولٌ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ.. فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ إِلَّا إِبْلِيسَ.. فَلَبِثَ فِيهِمْ أَلْفَ سَنَةٍ إِلَّا خَمْسِينَ عَامًا".

## د نحو میر خلاصه:

لفظ مستعمل په کلام د عربو کي پر دوه قسمه دئ:

۱. اول لفظ موضوع دئ.

۲. دوهم لفظ مهمل دئ.

موضوع پر دوه قسمه دئ:

۱. اول مفرد دئ.

۲. دوهم مرکب دئ.

مفرد پر درې قسمه دئ:

۱. اول اسم دئ.

۲. دوهم فعل دئ.

۳. دریم حرف دئ.

مرکب پر دوه قسمه دئ:

۱. اول مفید دئ.

۲. دوهم غیر مفید دئ.

مفید ته جمله او کلام هم ویل کیږي.

جمله پر دوه قسمه ده:

۱. اوله جمله خبریه ده.

۲. دوهمه جمله انشائیه ده.

جمله خبریه پر دوه قسمه ده:

۱. اوله جمله اسمیه ده.

۲. دوهمه جمله فعلیه ده.

د اسمیه اول جزء ته مبتداء، محکوم علیه او مسند الیه ویل کیږي او دوهم جزء ته یې خبر محکوم به او مسند ویل کیږي.

او د فعلیه اول جز ته فعل او مسند ویل کیږي او دوهم جز ته یې فاعل او مسند الیه ویل کیږي.

اسم مسند او مسند الیه دواړه را تلای سي، فعل یوائې مسند را تلای سي او حرف نه مسند را تلای سي او نه مسند الیه.

جمله انشائیه پر لس (۱۰) قسمه ده:

امر، نهي، استفهام، تمنی، ترجی، عقود، ندا، عرض، قسم، تعجب.

مرکب غیر مفید پر دوه قسمه دئ:

۱. اول تقیدي دئ.

۲. دوهم غیر تقیدي دئ.

تقیدي پر دوه قسمه دئ:

۱. اول اضافي دئ.

۲. دوهم توصيفي دئ.

غير تقيدي پر درې قسمه دئ:

۱. اول بنائي دئ.

۲. دوهم منع صرف دئ.

۳. دریم صوتي دئ.

د اسم يوولس (۱۱) علامې دي، د فعل اووه (۷) علامې دي بطبق نحو مير او د حرف يوه علامه ده.

معرب پر ده قسمه دئ:

۱. اول اسم متمکن چي په ترکيب کي واقع سوی وي.

۲. دوهم فعل مضارع چي د نون جمع مؤنث او نون تاکيد څخه خالي وي.

مبني پر دوه قسمه دئ:

۱. اول مبني اصل.

۲. دوهم مبني غير اصل.

مبني اصل درې شيان دي:

۱. اول ماضي ده.

۲. دوهم امر حاضر دئ.

۳. دریم جمله حروف دي.

مبني غير اصل هم درې دئ:

۱. اول اسم غير متمکن دئ.

۲. دوهم فعل مضارع سره د نون د جمع مؤنث او د نون تاکيد سره.

۳. دریم اسم متمکن چي په ترکيب کي نه وي واقع سوی.

اسم غير متمکن اته (۸) قسمه دئ:

مضمرات (مضمرات پنځه دي: مرفوع متصل، مرفوع منفصل، منصوب متصل، منصوب منفصل، مجرور متصل)، اسماء إشارات، اسماء موصولات، اسماء افعال بمعنى ماضي، اسماء افعال بمعنى امر حاضر معروف، اسماء اصوات، اسماء ظروف، اسماء کنايات، مرکب بنائي.

اسم په عتبار د تعريف او تنکير سره پر دوه قسمه دئ:

۱. معرفه.
۲. نکره.
معرفه پر اووه (۷) قسمه ده:
(۱) اعلام. (۲) مضمرات. (۳) اسماء اشارات. (۴) اسماء موصولات. (۵) منادی. (۶) معرف باللام. (۷) مضاف الی احدها سِوی المنادی.
د جنس په اعتبار سره اسم پر دوه قسمه دئ:
۱. اول مذکر دئ.
۲. دوهم مؤنث دئ.
د تانیث علامې څلور دئ: الف مقصوره، الف ممدوده، تاء ملفوظه، تاء مقدره.
مؤنث پر دوه قسمه دئ:
۱. اول مؤنث قیاسي دئ.
۲. دوهم مؤنث سماعي دئ.
بیا مؤنث پر دوه قسمه دئ:
۱. اول مؤنث حقیقي دئ.
۲. دوهم مؤنث لفظي دئ.
د تعدد په اعتبار سره اسم پر درې قسمه دئ:
۱. اول واحد دئ.
۲. دوهم تثنیه ده.
۳. دریم جمع ده.
جمع د لفظ په اعتبار سره پر دوه قسمه ده:
۱. اول جمع تکسیره ده.
۲. دوهم جمع سالمه ده.
جمع سالم پر دوه قسمه ده:
۱. اول مذکره ده.
۲. دوهم مؤنثه ده.
د معنی په اعتبار سره جمع پر دوه قسم ده:

۱. اول جمع قلته ده.
۲. دوهم جمع کثرته ده.
د جمع قلت شپږ اوزان دي.
اسم متمکن پر شپاړس (١٦) قسمه دئ:
مفرد منصرف صحيح، مفرد منصرف جاري مجرای صحيح، جمع مکسر منصرف، جمع مؤنث سالم، غير منصرف، اسماء سته مکبره، تثنيه حقيقي، معنوي، صوري، جمع حقيقي، معنوي، صوري، اسم مقصور، مضاف الی ياء المتکلم غير جمع مذکر سالم، اسم منقوص، جمع مذکر سالم مضاف الی ياء المتکلم.
مضارع د اعراب په اعتبار سره پر څلور قسمه ده.
(۱) مفرد صحيح. (۲) مفرد معتل واوي، يايي. (۳) مفرد معتل الفي. (۴) تثنيه، جمع، واحده مؤنثه.
عامل پر دوه قسمه دئ:
۱. اول لفظي دي.
۲. دوهم معنوي دي.
بيا لفظي پر دوه قسمه دئ:
۱. اول حروف عامله دي.
۲. دوهم اسماء عامله دي.
حروف عامله پر دوه قسمه دي:
۱. اول عامله در اسم دي.
۲. دوهم عامله در فعل دي.
بيا عامله در اسم اووه قسمه دي:
حروف جاره (هغه اوولس دي)، حروف مشبه بالفعل (هغه شپږ دي)، "مَا" و "لَا" مشابهتان بليس، "لَاء" نفي جنس، حروف ندا (هغه پنځه دي).
عامله در فعل پر دوه قسمه دي:
حروف ناصبه (هغه څلور دي)، حروف جازمه (هغه پنځه دي).
افعال عامله پر شپږ قسمه دي:

فعل معروف (او د ده معمولات اووه (۷) دي: فاعل، مفعول مطلق، مفعول فيه، مفعول معه، مفعول له، حال، تميز. كه چيري فعل متعدي وي، نو مفعول به هم په معمولاتو كي شامل وي، نو د فعل متعدي اته معمولات سوه)، فعل مجهول، افعال ناقصه، افعال مقاربه، افعال مدح و ذم، فعل تعجب.

اسماء عامله يوولس (۱۱) دي:

اسماء شرطيه، اسماء افعال بمعنى ماضي، اسماء افعال بمعنى امر حاضر، اسم فاعل، اسم مفعول، صفت مشبه، اسم تفضيل، مصدر، اسم مضاف، اسم تام، اسماء كنايه.

عوامل معنوي دوه قسمه دي:

۱. اول ابتداء يعني د اسم خالي والى د عوامل لفظيه وو څخه.
۲. دوهم خُلوَ يعني د فعل مضارع خالي والى د نواصبو او جوازمو څخه.

توابع پر پنځه قسمه دي:

صفت بحال الموصوف، صفت بحال متعلق الموصوف، تاكيد لفظي و معنوي، بدل الكل والبعض والاشتمال والغلط، عطف بحرف، عطف بيان.

حروف غير عامله اوولس دي:

حروف تنبيه، حروف ايجاب، حروف تفسير، حروف مصدريه، حروف تحضيض، حروف توقع، حروف استفهام، حروف ردع، تنوين، نون تاكيد، حروف زيادت، حروف شرط، لولا، لام مفتوح براى تاكيد، "مَا" بمعنى "مَادَامَ" حروف عطف.

مستثنى پر دوه قسمه ده:

۱. اول مستثنى متصله ده.
۲. دوهم مستثنى منفصله دهٔ.

په دوهم اعتباره سره بيا پر دوه قسمه ده:

۱. اول مستثنى مفرغه ده.
۲. دوهم مستثنى غير مفرغه ده.

د مستثنى اعراب څلور قسمه دئ:

(۱) نصب. (۲) رفع او نصب دواړه، (۳) د مستثنى اعراب په اعتبار د عواملو سره (۴) جر دئ.

